# نور الایضاح
حوالی

مولانا ابو الفضل علامۃ الدہر

## محمد عبید اللہ الایوبی
القندھاری السلیمانخیلی الحنفی

کتبہ ورتبہ بقلمہ

## محمد فضل الحق حقانی
مدرس جامعہ تجوید القرآن کوئٹہ

پروپرائٹر
شمس الحق شمس

مکتبۃ القراۃ والتجوید
کانسی روڈ شالدرہ نزد مسجد نور کوئٹہ

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# نور الایضاح

## جلد ③ دوم

تصنیف


علامۃ الدھر فقیہ العصر علامہ ابو الفضل مولانا

محمد عبید اللہ الایوبی

النقشبندی ہاری السلیمانخیلی الحنفی مدظلہ العالی


وقد کتبہ بقلمہ

قاری فضل الحق حقانی

فاضل علوم اسلامیہ وقراءات سبعہ وعشرہ


الناشر

مکتبۃ القراءۃ والتجوید

کانسی روڈ نزد مسجد نور شالدرہ کوئٹہ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

محترمو لوستونکو!

تاسو ته بهتره معلومه ده چې د نن صباد مشکلاتو څخه د لته ژوند کې هیڅ یو کړی هم فارغه نه بنکاري او نه هم فارغه وي، ولې چې دا په تجربه مونږ او تاسو ته معلومه ده. چې زمونږ او ستاسو په نظر چې څومره فارغ خولک وي خود پوبنستنې وروسته معلومه سي چې دغه د دنیا د ژوند په زړ رګونو مشکلاتو او کړاوونو سره مخامخ دی، په هر صورت .... د نن صبا مشکلات دومره ډیر دي چې خولک د کتاب ویلو، او یا د وهمی کتنی (تلاوت) ته هم چمتو نه بنکاري دا خو لا څه چې خولک به قلم او کاغذ را او چتوي او کتاب به لیکي، او دغه هم دینی کتاب، او بیا دسی یو دیني کتاب چې د هغه د جوړولو لپاره د ډیرو لویو لویو کتابو کتنه او ورق ګردانۍ په کار وي. او که خولک هم په او سني زمانه کې تکل کوي او قلم کاغذ را او چتوي او دیو دیني کتاب مسائل خیري او کتاب جوړوي، او په دی دوره پُرفِتن کی یواځې او یواځې دامت عنه او د الله تعالی رضا یې مطلب وي او هیڅ دنیوی غرض نه وي نو زه خو وایم چې دا یو داسی سعادت او نیکبختی ده چې د هغه په باره کې شاعر وائی سه

*این سعادت بزورِ بازو نیست ؛ تا نه بخشد خدائے بخشندهٔ*

او حقیقت هم دغه دی چې حضرت علامه استاذ الاساتذه ابو الفضل محمد عبید الله الایوبي الله تعالی دی دده د سر سایه زمونږ د سرو څخه نه لیری کوي، آمین: د کلان سالی او ډیری حده مصروفیاتو سره د دین ودی خدمت ته ملاتړلې ده، الله تعالی دی ده ته صحت کامله او بنه ژوند نور هم ورکړی تر څو دین محمدیؐ نور هم په بنه توګه خدمت وکړی، او د امت د پاره دی الله رهنما او مقتدا وګرځوي، ددی کتاب د ویونکو څخه هیله ده چې وحضرت مصنفؒ او شارح مد ظله او ددی کتاب لیکونکی (کاتب) او چاپوونکی اداري ته دعاء خیر وکړي والسلام

ستاسو دیني ورور قاري **فضل الحق حقاني** فاضل علوم اسلامیه وقراءات متواتره





بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

والصلوة والسلام علی سید المرسلین قائد الغر المحجلین، سیدنا محمد وعلی آله الطاهرین وصحابته الکاملین وعلی جمیع الانبیاء والمرسلین وعلی عباده الصالحین الی یوم القیامة والدین:

اما بعد: باعث پر دروئیش څه دی. چې د عقائدو لبعض کتابونه او د فقهِ لبعض د مبتدیانو کتابونه په پښتو وطني ژبه ترجمه کوي. او علاوه بر ترجمه، ډیری کارآمد مسئلې د معتمدو کتابو څخه را انقل کوي.

**جواب:** غرض د فقیر خدمت دی د هم وطنانو خصوصًا طبقه د عوامو چې د هغو خو پښتو خط زده دی. او په عربي کتابونه پوهیږي. نو د روئش دا غوارې چې د غه عوام مستقیمًا د خپل دین اسلامی د عقائدو او عملی عباداتو سره آشنا کړم. او دروا او ناروا لار چې په قران کریم کی او په احادیث نبویه وو او په مذهب حنیفی بیان سوی ده و دوی ته په خپله مورنۍ ژبه بیان کړم. او بل غرض دا دی چې زمونږ د مسلمانانو کچنیان چونکه صفحه او کاغذ د ذهن یې د ټولو اسلامی او غیر اسلامی عقائدو څخه خالی ده. او طبعي ده چې پر ساده تخته هر نقش لیکل کیدای ی. نو زه غواړم چې د اول الامر څخه د اطفالو د ذهن پر تخته عقائد حقه اسلامیه نقش سي. تا چې د آینده د پاره د عقائد باطله وو څخه کافرانو به محفوظ وي: ان شاء الله:

او د او هر چا ته معلومه ده چې عمومی کافران په دی کوشان دي چې مسلمانان د اسلام د دین څخه و خپل دین ته دعوت کړي. په خوله تبلیغات فاسده ورته کوي او په دنیائی چاروکی کمکونه ورسره کوي. نو د افغانستان عمومی طبقه چونکه د اقتصادی حالت له کبله ډیر کمزوری دی نو شاید د پیسو په طمع به د کافرانو د غه دعوت و خپل دین ته قبول کړي او په بعض افرادو کی دا غسی هم پیښه سوې ده. نو که د غو عوامو ته د اسلامی دین عقائد او اعمال حقه او باطله معلوم سي. شاید په دی ګمراه کن تبلیغاتو به د دین څخه نه مرتد کیدای.

او د غریبی د کافرانو په معاوضه د اسلام نه قبولای،

**سوال**: کافران ولی یوه د لوبلی دلی ته دعوت د خپل دین نه کوی مثلاً نصاری ویهود یا نو ته و بالعکس وعلی هذا القیاس، بلکه ټول د اسلام په تخریب پسی هلی ځلی کوی **جواب** کفار د اسلام حقیقی او کامل په کارنا موخبردی، او د تاریخ په پاڼو کی دوی ته دا معلومه ده چی د حقانی اسلام سره هیڅ ابرقدرت مقابله نسی کولای لکه قرآن کریم چی هم دا غسی اعلان کړی دی او وائی: وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿ یعنی حقا نو ځکه کفار به دی لته کی دی چی مسلمانان د خپلو مادی مرستو د دین نه مرتد کړی نعوذ باالله، من ذالک، ولااقل یا یه داسی اعمالو اخته کړی چی د حقیقی اسلام نه مخالف وی تا چی دوی مصداق د «اِنْ کُنْتُمْ مُؤْمِنِیْنَ» ای حقا ونه ګرځی. نو د اسلام شان او شوکت او رعب به زړو کی د کفارو به کم سی، بلکه نیست او نابود به سی، چنانچه مونږ ته په تجربه د اخبره ثابته ده، چی چونکه افغانستان د قدیم نه یو غریب هیواد وو، نه ئی د کلاشنکوف د جوړولو کارخانی درلودی او نه ئی د توپو، طیاری خولاخو کوی، نو زمونږ د افغانستان لعض پا دشاهانو داو غوښتل چی خپل د وطن نو عمره ځوانان او نجونی، او نا رسیده کوچنیان ویوه داسی پرمخ تللی هیواد ته واستوی، چی هوری د کارخانو جوړولو زده کړه وکړی، او د پیش رفته الاتو صنعت زده کړی. هغه وو چی د دی غرض د پاره یه شوروی اتحاد ته چی و افغانستان نږدی هیواد وو او دنړی لوی ابرقدرت وو و یی استاکی. او خپل نور سره، او ننګی ځوانان یه هغه هیواد ته واستول، روسانو د افرصت غنیمت وباله. نو زمونږ د وطن ځوانانو ته یه معمولی سبوونه د اقتصادی پرمخ تللو ښیا نو یه کوله. او لوی همت خپل یه ودی ته مبذول کی چی د غو ځوانانو ته یه د دهریت تعلیم ورکړی چی دوی د خدائ نه منکر سی نو د اسلامه او د قرآنه نه په طریق اولی به منکر سی. هغه شاه د وخت انتظار درلودی چی محصلان د شوروی ه ومانه د کارخانو زده کړه راوړی هغوو وطن ته د دهریت ارمغان راوړی. او دده د شاهی خاندان په قلع او قمع سره مشغول سوه هغه وو چی قصه مختصره په شاهی خاندان باندی غالب سوه چی په نتیجه کی بعض شاهی خاندان و خارج ته فراره سوله، او بعض د کابل په





دارالحکومت کی په شهادت ورسیده. او د شوروی اتحاد هغه خام طمع پر ځای سوه چی دده داخیال وو چی د اسیا پرزړه چی افغانستان دی قابض به سی، او نوری نړی ته به لاره خلاصیږی، خصوصاً امریکا او نورو غربی ممالک. لکن د تقدیر الهی نه دا هیڅ نه وو خبر چی د افغانستان په قبض کی به ته خپل اتحاد شوروی د لاس ورکړی،

او ابرقدرت بردی په ذلت او بی عزتی او غربت بدله سی، دا قصه خو مشهوره ده او سره تر پایه معلومه ده وخلګوته چی د دغی واقعی تخمیناً دا ۲۲ کاله په افغانستان کی پاته دی، او خونخوا به تر او سه جاری ده، اَللّٰهُمَّ نَصْرًا وَفَتْحًا وَحَـلًّا، نو ددی زور ازیاتی نه د روسانو چی د افغانستان په نیولو کی ناکامه پاته سول بلکه برعکس عاقبت یه د روس خرابی سوه امریکا یان او نور د هم رایان لکه انګلیس، فرانس وغیره و ددی نتیجی ته ورسیده له چی پر افغانانو زور او طاقت د لاری خولک قبضه نه سی کولای. نو یه بله لاره خپله کړه چی افغانان خصوصاً په حاضر وقت کی ډیر، و سه او بی بسه دی او په عین حال کی د اسلام او دین په مفاد نه دو خبر ندی او خالی الذهن دي. نو د پیسو او د الرو په بسند نه لاس پوری کړی،

او ورسره یه تبلیغات د نصرانیت هم شروع کړه چی او س هم دا سلسله جاری ده. د یوی خوا یه پر دوی باندی سیاسی اقتصادی بندیزونه ولګول، چی سبه د فقر او مسکنت په اورکی کباب سی، د بلی خوا یه د خپلو مزدورانو افغانانو په توسط د ډالرو تقسیم یه شروع کړی. او تر یو حده په دی پالیسی کی دوی ته ځان کامیاب معلومیږی، لکن او س هم په افغانستان کی حق شناسه او حق پرسته مسلمانان موجود دي، زما په عقیده به د امریکایانو دغه په کروړو ډالرو او تبلیغات هم ناکاره او ناکام سي، او د امریکایانو زړه مراد چی د ټولی نړی د خلګو تهاژه دارکړی ده ور په برخه نه سی، دا وو باعث په دی رو بیش چی اسلامی کتابونه که د عقائدو په باره کی وه او که د حلال او حرام په باره کی وه ده افغان ملت و خلګوتی د عربی ژبی نه د دوی و خپلی مورنی ژبی ته را نقل کړه، او افغانانو تی د خطر زنګ وواهه چی د امریکایانو په مقابل دی تیارسی او سي، او د دوی د پیسو و ونه دی نه بیریږی. او د دوی د مزدورانو دی کره ځارنه کوی چی د دوستی او همکاری په

لاس کی څنډی نیږنه سی، اوهروخت په دجیل خانو په کنجانوکی واچوی اوکه یوافغان پلر اسلام د نصرانیت په دین سره ملوث سی. نو په له تحقیق اوثبوت دې ده ته دارتداد جزاء ورکړی یعنی د مرګ وکنده ته دی وغورځوی لکه چی دشریعت غراء چی دمرتد په باره کی دغه جزاء ده»

اوس نوزه ګرانو وطن والو! خپل اصلی مطلب پرمخ وړم. یعنی شرحه دنور الایضاح ستاسی په موری ژبه چی شروع په د باب سجدة التلاوة څخه کیږی. ګرانو وطن والو تاسی وفقیرته دصحت اوعافیت په دربارکی درب العزت دعاکوی. ولی که چیری زه دنورالایضاح دشرح څخه په توفیق دخدای جل سلطانه خلاص سوم اراده ممیمه لرم چی دقرآن کریم یوتفسیرهم په پښتو موری ژبه چی هم به آسانی وی، اوهم به سلیسه وی، اوهم پرتولو عقائدو او عملیاتوحسب الطاقت مشتمل وی. اللهم یا مولای وفقنی لما اردتُه من تفسیر القرآن الکریم واطل عمری مع الصحة والسلامة والعافیة الیٰ ان افوزبهذ المرام المقدس انك علیٰ کل شیٔ قدیر وبالاجابة جدیر وحسبی الله ونعم الوکیل وصلی الله تعالیٰ علیٰ سیدنا محمد واٰله وصحبه اجمعین.

# تفسیر ایوبی حنفی

لیکوال
محمد فضل الحق حقانی

ناشر
مکتبة القرأة والتجوید
کانسی روډ شالدره کوټه





# بَابُ سُجُوْدِ التِّلَاوَةِ

باب ثابت دی په بیان کی دسجده تلاوت **پوهسه**: چی اضافه دسجده وتلاوت ته اضافة دی دمسبب یعنی چی سجده ده وسبب ته چی تلاوت دی دبعض ایاتو دقرآن کریم. چی بیان بی وروسته راسی. ان شاء الله تعالیٰ: په عنایه کی وائی چی مصنف داسی نه وویل چی سجود التلاوة والسماع، اوسره ددی چی سجده پراوریدو نکی هم واجبه ده. دا ددی سببه چی مختاره مذهب دادی چی دسجدی اصلی سبب تلاوت دی فقط اوبل دادی چی تلاوت سبب دسماع دی ایضًا نوذکرد تلاوت شامل سماع لره هم دی، او سید شارح وائی چی ذکر کی دتلاوت اشاره ودی ته ده، چی که سړی آیت دسجدی ولیکی تلفظ یه نه په وکړی. اویا آیت دسجدی په ازګی ووایئ سجده نه ده پرلازمه، مصنف په مراقی کی وائی، چی شرط دسجده تلاوت، طهارت دی دحدث څخه اودنجاست څخه، اوتیمم بیله عذره نه دی ورته روا. اومخامخ والی وقبلی ته یه هم شرط دی، اوستر دعورت هم غواړی، اورکن دسجده تلاوت ایښودل دی دتندی پرځمکه اویا پرتابع دځمکی لکه بوریا، یا سترنجی وغیره، اودا سجده که صلاتیه وه واجبه ده اداء یه بالفور په لمانځه کی. اوکه خارج الصلوٰة لازمه سوی وه نووجوب یه علی التراخی دی یعنی هروخت چی کوی قضائی نه ده، اوحکم دسجده تلاوت وجوب دی په دنیا کی اوثواب دی په اخرت کی.

**مسئله**: بعض علماء وائی چی په سجده تلاوت کی صرف وضع دتندی پرځمکه غواړی که څه هم یه دواړی پښی پورته نیولی وی، اویا پرپوټ وی کافی ده لکن صحیح دا ده چی سجدة التلاوت پرقسم دلمانځه دسجدی ده»

**مسئله**: کی په لمانځه کی آیت دسجدی ووایه په یوه رکعت کی اوسجده یه تر دوه رکعت وځنډول یا پسله دیره قرائت په دغه رکعت کی وکړی ګناه کاردی. اوبعض وائی چی دا سجده یه قضائی ده، بلکه په شرح کی وائی چی ځنډول یه تر وخت دقرائته دآیت السجده مکروه تحریمی دی اوکه غیرصلاتیه وه نوځنډول خو یه روادی مګر مکروه تنزیهی دی،

**مسئله**: که ایت د سجدی چا ووایه په لمانځه کی د ستی رکوع ته ولاړی او په رکوع کی نیت د سجدی تلاوت وکړی هغه کفایت کوی که څه هم وضع د تندی په محکه د نسته، او یا مریض وو په اشاره یه سجده تلاوت وکړه هم کافی ده، او یا پر دابه آیت د سجدی وو ایه او سجده یه هم پر هغه دابه وکړه کافی ده،

**سوال**: د مصنف عبارت خو د رکوع او ایماء او سجده علی الدابة ته نه دی شامل

**جواب**: هو لکن مصنف هغه عمومی او رواجی صورت د سجده تلاوت راوړی دی

قال المصنف:

## وَسَبَبُهُ التِّلَاوَةُ عَلَى التَّالِي وَالسَّامِعِ فِي الصَّحِيحِ

او سبب د سجود التلاوة تلاوت د قرآن ایت السجده دی پر ویونکی د اخو اتفاقی. او پر سامع (اوریدونکی) باندی هم لکن پر صحیح مذهب، او بعض فقهاء وائی چی سبب د وجوب پر سامع کی سماع ده تلاوت نه دی او دا مختاره د فخر الاسلام ده. لکن کفایه والا وائی چی اصل پر سبب والی کی تلاوت دی او سماع بناء پر تلاوت ده، حتی که چیری کا نړه سړی ایت د سجدی ووایه او پخپلو غوږو یه نه واوریدی سجده پر لازمه ده. او که ایت د سجدی چا ووایه او بل سړی کوڼ وو هغه نه واوریدی پر کا نړه سجده نشته،

**فائده**: سجده تلاوت پر سامع هله لازمیږی چی ویونکی اهل د تلاوت وی. حتی که چا ومینا نه چی یو مرغه دی یولنی ایت د سجدی ور زده کړی وو او بیا دی مینا هغه ایت ووایه پر سامع یه سجده تلاوت نشته، او د غه رنګه دلیونی په تلاوت سره پر سامع سجده تلاوت نشته،"کفایه، **مسئله**: د رادیو نه که څوک د سجدی ایت واوری سجده تلاوت پر لازمه ده. ولی چی رادیو صرف آله د سماع ده لکه لاوډ سپیکر، او که په ټیپ کی ایت د سجدی ټیپ کړی وو، او سړی واوریدی په دی نو فکر وکړی. قال المصنف:

## وَهُوَ وَاجِبٌ عَلَى التَّرَاخِي إِنْ لَمْ تَكُنْ فِي الصَّلٰوةِ وَكُرِهَ تَأْخِيرُهُ تَنْزِيهًا

او سجده تلاوت واجبه ده پر تراخی یعنی هر وخت چی کوی که چیری د غه سجوده د لمانځه





په دوران کی نه وه لازمه سوی او مکروه تنزیهی دی، څنګه ولی یه د دلیل وجوب یه دا دی چی سجده تلاوت دری قسمه ده، په بعض ایاتو کی امر صریح په سجده سره موجود دی او بعض ایتونه متضمن دی منع لره د کفارو د سجودی څخه هغه وخت چی دوی په سجود امر سوله. او په بعض ایتو کی د غه سجود حکایت د امتثال د انبیاء علیهم السلام دی په دی سجده کی او ښک نشته چی امتثال الامر د امر الهی، او عدم منع د سجدی څخه لکه کفارو چی وکړه او امتثال د انبیاء علیهم السلام هر یو واجب دی نو سجود تلاوت واجب ده پر موږ باندی"

**سوال**: بناء پر د غو دلائلو باید سجده تلاوت فرض وای و اجاب عنه الطحاوی چی دلالت د د غو ایتو پر سجده باندی ظنیت دی. نو ځکه فرض نه سوه بلکه واجب مـ ۲۹۱

قال المصنف

## وَيَجِبُ عَلَى مَنْ تَلَا آيَةً وَلَوْ بِالْفَارِسِيَّةِ

او سجده تلاوت واجبیږی پر هغه چا چی ایت د سجدی ووائی که څه هم په فارسی ژبه یه ووائی

**پوهسه**: چی مراد د فارسی څخه غیر عربی ده حتی چی په پښتو، بلوڅی، وغیره ته هم شامله ښی، **فائده**: کی د قرآن مبارک عربی توری د ایت السجده ووئیله پر تالی او سامع دواړو سجده لازمه ده کی په معنا پوهیږی او که نه، او کی په فارسی ووایه پر تالی خو سجده لازمه ده اتفاقاً لانه قرآن من حیث المعنی،،

او که سامع په فارسی نه پوهید ی نو هم سجده پر لازمه ده په نیز د امام اعظمؒ، او په نیز د یارانو پر سامع سجده نشته که په معنا نه پوهیدی، او په بعض کتابو کی وائی چی حضرت الامامؒ و قول ته د یارانو رجوع کړیده،، **فائده**: که څه هم مصنفؒ کلمه د مَن مطلق وئیلی ده لکن بحر رائق کی وائی چی د اطلاق مقید دی په دی چی تالی به اهل د وجوب الصلوٰة وی یا اداءً یا قضاءً او تالی اهل د وجوب الصلوٰة نه وو نو ده په تلاوت سره سجده پر ده نه ده لازمه،، ولی سجده خو اصلاً جزء دی د اجزء د لمانځه نو سجده تلاوت خو پر هغه چا واجبیږی چی هغه اهل د وجوب الصلوٰة وی. نو تالی به مسلمان وی پر کافر تالی سجده نشته، او بل به عاقل بالغ وی چی آیت د سجدی هم ووائی سجده د تلاوت نشته، او بل به با لغ وی نو د کشنی په تلاوت سره پر ده سجده نشته

اوبل به تالی د حیض او نفاس څخه خلاص وی. کی فرضًا حائِض یا نفساء ایت د سجدی وواؤ سجدة التلاوة پر لازمه نه ده نه فی الحال او نه وروسته تر پاکی، او پر محدث او جنب چی ایت السجدة تلاوت سجده لازمه ده لکونهما مکلفًا بالصلوٰة،،

**مسئله**: پر سامع د دغو ټولو کسانو څخه په استثناء د لیونی سجدة تلاوت لازمه ده، ب، ع، د، ط،

**مسئله**: که مصلی په رکوع کی ایت د سجدی ووایه یا په سجده کی یا په قومه کی یا د تشهد ی په وخت کی پر ده سجده تلاوت نشته، ولی چی مصلی په دغو وختو کی د قرائت څخه ممنوع دی. او د محجور سړی تصرف حکم نه لری، ط، م، قال المصنف:

## وَقِرَاءَةُ حَرْفِ السَّجْدَةِ مَعَ كَلِمَةٍ قَبْلَهُ اَوْ بَعْدَهُ مِنْ اٰيَتِهَا كَالْاٰيَةِ فِى الصَّحِيْحِ

او قرائت د هغه توری چی پر سجده دلالت کوی سره د یوی کلمی د مخه تر هغه یا وروسته تر هغه چی د ایت د سجدی وی لکه پوره ایت د سجدی چی ووائی یعنی سجدهٔ تلاوت پر لازمه ده په صحیح روایت کی. نو مراد د حرف څخه معنای لغوی ده اصطلاحی نه ده، او صحیح مقابل د هغه قول د بعض فقهاؤ دی چی سجدهٔ تلاوت پر هغه چا لازمه ده چی اکثره حصه د ایت وی وهو روایة عن محمدؒ واختاره الزیلعی،، مر ط، او بعض فقهاء وائی چی شرط د لزوم د سجدهٔ تلاوت د ټولو ایت دی، او بعض وائی چی نیمی دا ایت دی سره د کلمی د سجدی او بعض چی السجده ووائی که د مخه تر حرف السجده وی او که وروسته وی او کی ایت د سجدی په مابین کی په فقط په تلاوت د کلمی د سجدی سجده لازمیږی، ق ط، قال المصنف:

## وَاٰيَاتُهَا اَرْبَعَ عَشَرَةَ اٰيَةً فِى الْاَعْرَافِ وَالرَّعْدِ وَالنَّحْلِ

او ایتونه د سجدی په دغو څوارلسو سورتو کی دی، یو هغه چی په سورة اعراف کی پر دی کلمه دی یَسْجُدُوْنَ

## وَالْاِسْرَاءِ وَمَرْيَمَ وَاُوْلَى الْحَجِّ وَالْفُرْقَانِ وَالنَّمْلِ

او په سورة رعد کی پر دغه توری دی اَلْاٰصَالِ او په سورة نحل کی پر دغه کلمه دی یُؤْمَرُوْنَ،





او په سورة اسراء کی پر دغه توری خُشُوْعًا. او په سورة مریم کی پر دغه توری وَبُكِيًّا او په سورة حج کی پر دغه ځای یَشَآءُ او په سورة فرقان کی پر دغه لفظ نُفُوْرًا او په سورة نمل کی پر دغه لفظ العظیم، قال المصنف:

## وَالسَّجْدَةِ وَصٓ وَحٰمٓ السَّجْدَةِ وَالنَّجْمِ وَانْشَقَّتْ وَاِقْرَأْ

او په سورة سجده کی پر دغه کلمه یَسْتَكْبِرُوْنَ او په سورة صٓ کی پر دغه کلمه وَحُسْنَ مَاٰبٍ. او د سورة حٰمٓ السجده کی پر دغو تورو لَا يَسْئَمُوْنَ، او په سورة النجم کی پر دغه کلمه وَاعْبُدُوْا او په سورة انشقت کی پر دغه ځای لَا يَسْجُدُوْنَ او په سورة اِقْرَأْ کی پر دغه کلمه باندی وَاقْتَرِبْ.

**اعتذار درویش** پوره پوره ایتونه د سجدو نه کړه نوشته تا چی پر مطالعه کوونکو دی کتاب څلور سجدی لازمی نه سی. او ده ته به تکلیف وی، ولی چی کاهی به د مطالعی په وخت به او د س لری او کاهی به نه لری. او کاهی به وائی چی دا سجدی به بیا وروسته وکړم ولی چی واجب علی التراخی دی. نو په تیریدو د وخت به هیری یاته سی او ګناه کار به کړی هم عبادت خودی لکن دا خطره سره سته. نو تر نوشتی د پوره ایتو د غه تعیین د سجدو د ځایو درویش ته ښه کار معلوم سو.

**فائده**: مصنفؒ واولی الحج وویل. ولی چی امام شافعیؒ وائی چی په سورة حج کی دوی سجدی دی. او زمونږ دلیل دا دی چی د ابن عباسؓ او د ابن عمرؓ څخه روایت دی چی سجدهٔ تلاوت په سورة حج کی اوله ده او دوهمی څخه مراد سجده د لمانځه ده،

**فائده**: مصنفؒ په مراقی الفلاح کی او امام طحطاویؒ په شرح کی د مراقی د پر لوی تفصیل کړی دی په باره کی د ایا تو د سجدی. او په باره کی د ځایو د سجدی په دغو ایتو کی. او په اختلاف زمونږ او د امام شافعیؒ په یوه سجده او دوو سجده کولو د سورة حج چونکه هغه تفصیل د مطالعی څخه د ویونکو د دی شرح لوړ وو، نو ځکه درویش صرف نظر وکړی. مَنْ شَآءَ فلیرجع الی الکتابین المذکورین، قال المصنف

## وَيَجِبُ السُّجُوْدُ عَلٰى مَنْ سَمِعَ

او واجبه ده سجود التلاوة پر هغه چا چی واوری ایت د سجدی لکن په تلاوت عربی.

## وَاِنْ لَمْ يَقْصُدِ السَّمَاعَ اِلَّا الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ

کہ څه هم دسامع قصد داوریدو نه وی، نوکی په ترجمه پوهیږي اوکه نه. قال الرّاقم: وهذا مروی عن اکابر الصحابة رضی الله تعالیٰ عنهم مګرنه حائض او نفساء بسځه چی پردوی باندی نه ده دوی په تلاوت سره اونه ددوی په اوریدو سره سجده سته، البته چی بل څوك ددوی څخه سجده تلاوت واوري بلکه کی دجنب څخه واوري اویا د صبی ممیز څخه واوري اویا یه دکافر څخه واوري پر اوریدونکو سجده تلاوت واجب دی.

## مُهِمَّه فَائِدَه:

ابن امیرحاج او صاحب فتح القدیر وائی. که یو سړی وو خالص عجمی اونوی اسلام یه راوړی وُو. او په فرائضو او واجباتو د اسلام هیڅ نه وو خبر او زمانه دخبرتیا م نه وه پرتیره سوی. نو پر هغه سجده تلاوت نه په ویلو د نظم قرانی دایت دسجدی اونه په اوریدو سره دایت مذکوره سجده لازمیږی. تر هغه وخته چی دی په پوهیږي چی دغه مقروء یا مسموع ایت دسجدی دی ط. فتح، او علم په معنا دایت شرط دوجوب دسجدهٔ تلاوت نه دی، دلیل په دادی چی پر دغه حدیث الاسلام باندی سجده نسته چی تکلیف په هغه شی چی سړي علم نه پر لری محال دی حتیٰ که دغه سړي د مخه تر علم په وجوب سره دسجدی مړ سی غاړی نه دی بندي.

## پُوښْتَنَه:

زمونږ ډیر عوام په دی نه پوهیږی چی فلانی ایت دسجدی دی نو پردوی باندی سجدهٔ تلاوت په ویلو یا اوریدلو سره سته.

## جَوَاب:

هو. دانا خبرتیا ددوی د پاره عذر نه دی. ولی چی پردوی دومره زمانه تیره سویده چی دوی باید په فرائضو او واجباتو تمامو نه خبر کړی وای. دا ددوی تقصیر دی عذر نه دئ.

## مَسْئَلَه

که فرضًا د پیری څخه سړي ایت دسجدی واوري سجده پر لازمه ده. حاصل دکلام دادی چی سجده تلاوت په ویلو یا په اوریدلو سره پر هغه چالازمیږی چی اهل دلمانځه وی اداءً یا قضاءً. ولی چی سجده خود لمانځه په اصل کی جزء ده. او حائض او نفساء خو اهل د لمانځه نه دی نه اداءً نه قضاءً بخلاف الجنب والکافر. ولی هغه مکلف دی لکن چونکه تلاوت دحائض او نفساء او د جنب او کافر په صحیح ډول دی نو ځکه پر سامع یه سجده واجبه ده،





## وَالْاِمَامُ وَالْمُقْتَدِیْ بِه

قال المصنف رح: او د غه رنګ سجده نسته پر امام او مقتدی په ده لیتی. په سبب دسماع دایة السجدة د مقتدی څخه، پر مقتدی د دی سببه چی دی خو د قرائت څخه مجور وو ولا اعتبار لتصرف المحجور" او پر امام چی نسته ولی چی امام تبع د مقتدی نسی کیدلای.

## مَسْئَلَه:

که دغه ایت دسجدی چی مقتدی وو ایه" بل سړي چی پر لمانځه نه وو ولاړ واوریده. اویا پر لمانځه یوازی ولاړ وُ. اویا د الته بل جماعت هم ولاړ وو، او هغو دغه ایت دسجدی د هغه بل جماعت د مقتدی څخه واوریدی پر هغو ټولو سجده تلاوت سته، ولی چی حجر او منع پر دا خاص امام او مقتدی یا نو ده چی په دغه معین جماعت کی شامل وي. نو بل چا ته تجاوز نه کوی کذا فی الهدایة والطحطاوی. قال المصنف

## وَلَوْسَمِعُوْهَا مِنْ غَيْرِهِ سَجَدُوْا بَعْدَ الصَّلٰوةِ وَلَوْسَجَدُوْهَا

او که واوریدی ایت د سجدی امام او مقتدی یا نو د بل چا څخه یعنی چی د دوی سره په جماعت کی نه وو

## فِيْهَا لَمْ تُجْزِهِمْ وَلَمْ تُفْسَدْ صَلٰوتُهُمْ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ

شامل که منفرد لمونځ کوی او که داغیږ ناست وی. نو دوی ټول به سجده تلاوت وروسته تر لمانځه کوی ولی سبب دسجدی چی سماع وه پیدا سوه. او مانع دسجدی کول چی دوی پر لمانځه وه زائل سُو. او که دوی په لمانځه کی سجده تلاوت وکړی هغه کفایت نه کوی. ولی چی دغه سجده په لمانځه کی په سبب د نهی د هغې څخه ناقصه ده، نو چی تر لمانځه وروسته راګرځوی تا چی په وجه کامله اداسی دلیل د نقصان او نهی په دادی چی دغه سجده بیګانه ده. د دغه لمانځه څخه، ولی چی د قرائت څخه د دغه لمانځه نه ده پیدا سوی ولا ید خل فی الصلوٰة ما هو خارج عنها. او لمونځ ددوی په دغه سجده سره فاسدیږی هم نه، ولی چی نفس سجده د لمانځه د جنس څخه ده، او دا هم ظاهر روایت دی او بعض فقهاوو وه امام محمدؒ ته داخبره منسوب کړیده چی لمونځ یه فاسدیږی لکن ظاهر روایت د امام اعظمؒ څخه عدم فساد نقل کړي دی. ولی په نهایا تولو دیوی سجدی تحریمی دلمانځه نه باطلیږي ط،

اللهم اغفر لمولفه ولکاتبه ولجمیع المومنین امین

قال المصنفؒ **وَتَجِبُ بِسَمَاعِ الْفَارِسِيَّةِ إِنْ فَهِمَهَا عَلَى الْمُعْتَمَدِ**

او واجبیږی سجدهٔ تلاوت په اوریدو د قراءت فارسی که په فارسی پوهیدی، پر معتمد مذهب چې قول دیارانو دی چې قراءت په فارسی ژبه هغه چاته چې قادر پر عربي قراءت وی نه دی روا، خو په نیز د امام اعظمؒ چې قراءت په فارسی روا بولی وقادرته پر عربي قراءت نو سجده تلاوت پر ده غه فارسی قراءت پر اوریدونکی باندی واجبه ده کی څه هم په معنا نه پوهیږی. مګر چې خولک په خبر کړی چې دا ایت د سجدی وو.

**پوهـــه**: که څه هم دا اختلاف دا امام اعظمؒ او یارانو په قراءت فارسی کی په ډیرو کتابو کی د فقه شریفی ذکر سوی دی لکن محققین د حنفیانو پردی خبره دی چې امام اعظمؒ وقول ته دیارانو رجوع کړیده: کذا فی الجوهرة وفتح القدیر والطحطاوی وغیرها وعلیه الاعتماد. فارتفع الاختلاف فی السجدة ایضا یعنی چې سجدهٔ تلاوت بیله فهم د لغت فارسی نسته، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ وَمِنْ اَخْتَارَ الزَّبِیْنَ

قال المصنفؒ **وَاخْتُلِفَ التَّصْحِيْحُ فِيْ وُجُوْبِهَا بِالسَّمَاعِ مِنْ نَائِمٍ أَوْ مَجْنُوْنٍ**

او اختلاف دی په صحیح والی کی د وجوب د سجدهٔ تلاوت په سبب د اوریدو د بیده سړی څخه یا د لیونی څخه یعنی بعض فقهاءؒ والی چې وجوب یې صحیح دی او بعض وائی چې عدم وجوب یې صحیح دی. چنانچه شیخ الاسلام وائی چې سجدهٔ تلاوت د دغو دوو کسانو په اوریدو سره نه واجبیږی ولی چې په دوی کی تمیز نسته، وفی التتارخانیه سمع من نائم قیل تجب والصحیح انها لا تجب، وفی الخانیه الصحیح هو الوجوب، درویش وائی چې احتیاط په دی کی دی چې سجده وکړی.

**مســـئله**: په ذخیره کی وائی که لیونتوب د سړی لند وو یعنی یو شبانه روز وو او یا کم او دی په حال کی د جنون سجدهٔ تلاوت ووایه هم پر سامع سجده لازمه ده او هم پر لیونی لکن وروسته تر دی چې پرسد سی، ولی چې دغه لیونی اهل د قضاء دی یعنی قضاء د لمونځو د لیونتوب د حالت پر لازمه ده بخلاف ما جاوزا لجنون الیوم واللیلة.

اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهِ وَلِكَاتِبِهِ وَلِمَنْ سَعٰى فِيْهِ وَلِجَمِيْعِ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ





قال المصنفؒ **وَلَا تَجِبُ بِسَمَاعِهَا مِنَ الطَّيْرِ وَالصَّدٰى** او نه ده واجب سجدهٔ تلاوت

په اوریدو سره د مرغه څخه پر صحیح روایت او بعض فقهاءؒ وائی واجبیږی. وفی فتاوی الحجة والحجة هو الصحیح لانه سمع کلام الله. او د غږ رنګ سجده نه لازمیږی په اوریدو د ایت د سجدی تلاوت د ازانګی څخه یعنی یوچا په غره کی ایت د سجدی وواېه او هغه سړی دا ایت د سجدی نه وا وریدی لکن په غره کی ازانګه سوه هغه ازانګه یې واوریدله، وفی الخلاصة که سړی ایت د سجدی د مرغه څخه واوریدی سجده تلاوت نه ده پر واجبه وهو المختار. او کی د بیده سړي څخه واوریدی، صحیح دا ده چې سجده تلاوت پر سامع لازمه ده او د غږ رنګ پر بیده هم لازمه ده که چا ورته وویله چې تا په خوب کی سجده تلاوت وواېه. وهو الاصح، وفی الدرایة لا یلزمه وهو الصحیح.

**مســـئله**: که مست په شرابو وغیره سره ایت د سجدی وواېه هم پر ده سامع په سجده واجبه ده.

**مســـئله**: پر ګونګی یا کاڼه باندی سجدهٔ تلاوت نسته په لید لو سره د من سجد.

**مســـئله**: که کاتب ایت د سجدی نوشته کړی او تلفظ یې نه په وکړی سجده پر واجبه نه ده لعدم التلاوة والسماع، یعنی په ګونګی او کاتب، او کاڼه د رو سره کی. قال المصنفؒ:

**وَتُؤَدّٰى بِرُكُوْعٍ أَوْ سُجُوْدٍ غَيْرِ رُكُوْعِ الصَّلٰوةِ وَسُجُوْدِهَا**

او اداکیږی سجده تلاوت په رکوع سره او سجدی سره چې غیر د رکوع څخه د لمانځه وی او غیر د سجدی څخه د لمانځه وی. یعنی یو سړی ایت د سجدی وواېه او وروسته په صرف رکوع وکړه او بیرته راپورته سو او یا یې سجده وکړه او یا و لاړ سو د سجدهٔ تلاوت غاړی په خلاصی سوی په مراقی کی وائی چې سجده کول افضل کاردی. ولی چې په سجده کی هم صورت د سجدی پیدا سو او هم په معنا یعنی الخضوع او په رکوع کی صرف معنا د سجدهٔ تلاوت پیدا سوه یعنی الخضوع او صورت یې نسته، ولاریب ان اجتماع الصورة والمعنی افضل من محض المعنی. قال المصنفؒ

**وَيُجْزِئُ عَنْهَا رُكُوْعُ الصَّلٰوةِ إِنْ نَوَاهَا وَسُجُوْدُ الصَّلٰوةِ وَإِنْ لَمْ يَنْوِهَا**

او کافی ده د سجدهٔ تلاوت څخه رکوع د لمانځه کی نیت د سجدی په کښی وکی او

سجده د لمانځه م داني ده کفه هم نيت د سجدة التلاوة نه په کښې وکړي **پوه سه**: چې په رکوع کې نيت د سجدة التلاوة هغه وخت په اتفاق کافي دی چې رکوع ته ځي نيت د سجدهٔ تلاوت وکړي. اوکه رکوع ته ولاړي بيا په نيت د سجدهٔ تلاوت وکړي. په هغه کې دوه قوله دي ځولك وائي چې کافي دی ځولك وائي نه دی، اوکې پس ر ابو رته کيدو د رکوع څخه نيت وکړي نو په اجماع کافي نه دی، او پر اشتراط د نيت په رکوع کې خو امام محمدؒ سره دي چې تصريح کړې لکن بيا هم حلبيُ دده څخه روايت کړي دی چې بيله نيته هم کفايت کوي،

**فائده**: مراد د نيت څخه په دې توګه حتوکې قصد قلبي دی د خولې نيت به نه کوي مراقي دکفايت د رکوع په باره کې دا وائي چې معنا د تعظيم په رکوع او سجده دواړو کې شريك ده، لکن چونکه صرف معنیٰ تعظيم په رکوع کې موجود دی. او صورةً نه وو او په سجده کې صورةً ومعناً وو، نو ځکه په رکوع کې نيت غواړي او په سجده کې نه غواړي»

**مسئله**: که قوم يعنې مقتديان ډير وه. نوکه امام په سري لمانځه کې ايت د سجدې ووايه نو په رکوع کې دې نيت د سجدهٔ تلاوت وکړي. اوکه په جهري لمانځه کې ايت د سجدې ووايه نو دې په سجدهٔ صلاتيه کې نيت د سجدة التلاوة هم وکړي. يعنې رکوع مستقله يا سجده مستقله دې نه کوي تاچې نو مقتديان لمونځ فاسد نه کړي. او يا اشتباه پيدا نشي چې امام داخو څه وکړي خصوصًا زمونږ پښتانه عوام چې سجدهٔ تلاوت د لمانځه خو بيخي نه پيژني.

**واقعه**

يو حاجي حج ته تللی وو د بازګشت په وخت کې زه مبارکۍ ته ورغلم، نو د حج د سفر په دوران کې نه راته وويل چې په حج کې مې داپلا عجبه وليدل.... ما ورته وويل څه دې وليده. حاجي صاحب وويل چې زه د کور پرخوا ر اتلم د سحار لمونځ مې په جده کې په يو مسجد کې کاوه. نو امام د سحار لمونځ دره رکعت وکړي. او د مينځ په رکعت کې يو سجده وکړه دريم رکعت ته را پورته سو، نو ده وويل ما خپل لمونځ بيرته را وګرځاوه، ما ورته وويل چې هغه يې سجده تلاوت کړې وه. دره ۳ رکعته يې نه دي کړي» **فائده**: په مختار کې وائي که امام په رکوع کې نيت د سجدهٔ تلاوت وکړي يعنې په جهري لمانځه کې





اوکه مقتدي نيت په رکوع کې نه وکړي مقتدي به چې د امام سره په سلام وګرځاوه سجده تلاوت دې وکړي. او قعدهٔ اخيره دې بيرته را وګرځوي. ولې چې د امام سره اخيره نست په سبب د سجدهٔ تلاوت پورته سول. او کې قعده نه را وګرځول د مقتدي لمونځ فاسد شو.

**بښهانه ښوونه** هغه علماء چې په رکوع او سجده د دواړو کې نيت شرط نه بولي هغه دا دليل وائي چې رکوع او سجده مطلقا د سجدة التلاوة په ځای کې دريږي ولې چې مقصود د سجدة التلاوة څخه تعظيم لامر الله دی. او هغه په رکوع کې لمانځه او په سجده کې د لمانځه موجود دی که نيت وکړي او که نه. او هغه چې په دواړو يعنې رکوع او سجده کې نيت شرط بولي هغه فقهاء وائي چې سجده التلاوة او رکوع او سجده د لمانځه دوه جنس مختلف دي نو يو جنس عمل چې د خلاف الجنس عمل په ځای کې دريږي. نيت خو ا ضرور غواړي، او هغه فقهاء لکه مصنفؒ چې د رکوع او سجدې فرق وائي د هغو دليل هغه دی چې مونږ عنقريب ذکر کړی. قـال المصنفؒ:

# إِذَا لَمْ يَنْقَطِعْ فَوْرُ التِّلَاوَةِ بِأَكْثَرَ مِنْ ايَتَيْنِ

دا يعنې نيت د سجدة التلاوة هله صحيح دی که دستی کول د سجدهٔ تلاوت په بالاسره تر دوو ايتو نه وو قطع سوي. **پوه سه**: چې فور د سجده تلاوت په يوه ايت ويلو سره يا په دوه ايت ويلو سره پرته له سجدهٔ تلاوت د ايت خو اجماعًا نه قطع کيږي. او په څلور ايت ويلو سره اتفاقًا قطع کيږي. او په دره ۳ ايتو کې اختلاف دی. امام خواهرزادهؒ وائي چې فور په قطع کيږي او امام حلواني وائي چې قطع کيږي. قال الامام الطحطاويؒ چې د امام حلوانيؒ قول اصح دی د جهته د روايت کما قال الحلبيؒ» او قول د خواهرزادهؒ اصح دی د سببه د درايت. ولې چې احتياط په دغه قول کې دی ولذا اختاره المصنفؒ:

**فائده**: مصنفؒ په مراقي الفلاح کې تر عنوان د **تنبيه مهم** لاندې يوه په اوږد بيان کړی دی چې قدر ضروری د هغه او بزده بيان چې عمومي خلګو ته فائده ده. دا دی چې څه وخت چې فور د سجدهٔ تلاوت قطع سي نو سجده تلاوت د سړي په ذمه کې پوره ګرځي»

نو دهغه د پاره به جلا رکوع یا سجده په لمانځه کی کوی او دا اوږد بیان به تردری مخه
پوری رسولی دی فاعرضنا عنه لصعوبته فهمه علی المتعلم بل علی بعض المعلمین، قال المصنف

## وَلَوْسَمِعَ مِنْ اِمَامٍ فَلَمْ يَأْتَمَّ بِهِ اَوْ اِئْتَمَّ بِهِ فِيْ رَكْعَةٍ

او که چیرته واوریدی یوسړی ایت د سجدی د امام څخه نو اقتداء یې نه ېی وکړه. او یایې اقتداء په بل رکوع

## اُخْرٰى سَجَدَ خَارِجَ الصَّلٰوةِ فِى الْاَظْهَرِ

کی ېسی وکړه دا سړی به سجده تلاوت دباندی تر لمانځه کوی په اظهر روایت کی، **پوښتنه**: چی په اوله مسئله کی چی ایت د سجدی یې د امام څخه واوریدی او اقتداء یې ګرڅړه ېسی ونه کړه. چونکه سبب د سجدی چی سماع ده محقق سوه نو پرسامع سجده تلاوت لازمه سوه. چونکه دده د پاره دا سجده صلاتیه نه ده نو حکماً به خارج الصلوة کوی، مصنف ددوهمی مسئلی په دلیل کی وائی: صَونًا عن الضیاع د پاره ددی چی وساتل سی هغه سجده چی پر ده لازمه سوی ده د ضائع والی څخه کی خارج الصلوة هم وسه کړی. وَالصَّلٰوةُ عَنِ الزَّائِد، او لمونځ وساتل سی د زائد شی څخه یعنی کی په لمانځه کی وکړی. قال المصنف:

## وَاِنْ اِئْتَمَّ قَبْلَ سُجُوْدِ اِمَامِهِ بِهَا سَجَدَ مَعَهُ

او که چیری اقتداء وکړی د غه سړی چی ایت د سجده خوییه د امام څخه قبل الاقتداء اوریدلی وو مخکه تر سجدی د امام د غه ایت له نو مقتدی مذکور دی سجده وکړی سره د امامه. ولی چی سبب چی سماع وه پیدا سو او مانع هم ونسته، قال المصنف

## فَاِنْ اِقْتَدٰى بِهِ بَعْدَ سُجُوْدِهَا فِيْ رَكْعَتِهَا صَارَ مُدْرِكًا

او که اقتداء وکړه د غه سامع د ایة السجدة دباندی تر لمانځه په امام پسی وروسته تر سجدی

## لَهَا حُكْمًا فَلَا يَسْجُدُهَا اَصْلًا

د امام هغه ایت نه سجدی لکن په د غه رکعت کی





نو دغه مقتدی مدرک سو د سجده تلاوت حکماً، یعنی په دی اعتبار چی هغه رکعت د سجدی یې وینوی ګویا سجده یې هم ونیوله نو دغه مقتدی به سجده تلاوت نه کوی په هیڅ حال یعنی نه په داخل کی د لمانځه ولی چی مخالفت د امام څخه لازمیږی، او نه خارج الصلوة ولی دا سجده صلاتیه ده حکماً دده د پاره. قال فی المراقی باتفاق الروایات، قال المصنف:

## وَلَمْ تُقْضَ الصَّلٰوتِيَّةُ خَارِجَهَا

او قضاء نه راوړه کیږی د سجده صلاتیه یعنی چی ایت د سجدی یې په لمانځه کی ویلی وی دباندی تر لمانځه، لِاَنَّ الکامل لا تتقضی بالناقص، لکن ګناه کار دی توبه دی وکاږی.

**مسئله**: که څوک په لمانځه ولاړ وه او ایت د سجدی یې وویه او د مخه تر سجدی حیض ورغلی. نو سجده تلاوت څنی ساقطه سوه لکه لمونځ چی څنی ساقط سو، قال المصنف

## وَلَوْتَلٰى خَارِجَ الصَّلٰوةِ فَسَجَدَ لَهَا ثُمَّ اَعَادَ فِيْهَا سَجَدَ

او که چا ولوستی ایت د سجدی دباندی تر لمانځه نو سجده یې د هغه د پاره وکړه، او بیا یې هغه ایت

## اُخْرٰى وَاِنْ لَّمْ يَسْجُدْ اَوَّلًا كَفَتْهُ وَاحِدَةٌ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ

په لمانځه کی هم وواییه نو بیا یې په لمانځه کی بله سجده کوی، ولی دا سجده خو صلاتیه ده او قوی ده نو تابع د هغی خارجی سجدی چی نسبتاً ضعیف ده نه سی کیدلای، او که د خارجیه د پاره سجده نه وکړه نو یوه سجده یې په لمانځه کی کافی ده. ولی چی صلاتیه قوی ده. د دواړو تلاوتو ځای نسی، په ظاهر روایت کی، او په نوادرو روایتو کی وائی چی د اول د پاره دی خارج الصلوة سجده وکړی، **مسئله**: که یو سړی په لمانځه کی ایت د سجدی وواییه او سجده یې هم وکړه او بیا وروسته، تر لمانځه بیا هغه ایت د سجدی وواییه نو بله سجده به کوی په ظاهر روایت کی، م.

قال المصنف

## كَمَنْ كَرَّرَهَا فِيْ مَجْلِسٍ وَّاحِدٍ لَا مَجْلِسَيْنِ

لکه څوک چی مکرر کړی یعنی څو واره وائی یو ایت د سجدی په یوه مجلس کی او نه په دوه مجلسه کی، مجلس په مطلق

وو ایه اشاره ودی ته ده چې مجلس که اوږدوي او که لنډوي، **پوښتنه**: چې یو ایت دسجدې چې په یوه مجلس کې هرڅو واره مکرر سي. یوه سجده یې کافي ده. نو دا سجده که په ابتداء کې دتلاوت وي او که په مابین کې وي او که په اخیر کې وي، په سبب دتداخل او که په دوه مجلس کې یوایت دسجدې مثلاً دوه واره وواي. نو دهرې پلاده پاره جلا جلا سجده غواړي، په حدیث کې راغلي دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به واصحابو ته یوایت څوواره مکرر وواېه او سجده به کوله،

**پوښتنه**: آنحضرت صلی الله علیه وسلم ولې یوایت دسجدې واصحابو ته مکرر وایه **جواب**: چې دوي په زده کړې او پیادیه کې. نو که دهرواره پاره سجده لازمه سي نو حرج دی. وحرج په دین کې نسته، او برخلاف ددې دی چې مجلس بدل سي، او یا ایت دسجدې بدل کړي په هغه کې حرج نسته لعدم الضرورة»

**فائده**: مصنف په مراقي کې وائي: وهذا تداخل في السبب فتنوب عما قبلها وبعدها» حاصل دا چې دیوې سجدې کفایت په صورت کې د تکرار تداخل په سبب کې دی چې ایت دسجدې دی، نه په حکم کې چې سجدهٔ تلاوت دیٔ، یعنې دغه ډیر واره ونه دسجدهٔ تلاوت ویل چې په حقیقت کې خو ډیر دي، لکن سره دهغه لکه یو وار تلاوت دی حکماً لاتحاد الاٰیة المتلوة والمجلس نو یو تلاوت سبب دی هغه نورې یې تبع دي. ولې خو یو جنس دي، پس واجب یو حکم دی یعنې یوه سجده لان اتحاد السبب یستلزم اتحاد المسبب نو وروسته او د مخه تلاوتونه سره یوځای کیږي او یوه سجده یې په ځای کې دگردو دریږي. قال المصنف:

## وَيَتَبَدَّلُ الْمَجْلِسُ بِالْاِنْتِقَالِ مِنْهُ وَلَوْ مُسَدِّيًا

او بدلیږي مجلس په نقل کیدو سره د هغه مجلسه څخه که په صحراء یا لار کې وي نو درې گامه چې نقل سي یعنې په صرف ولاړه یا یو گام یا دوه گامه مجلس نه بدلیږي که څه هم دکښې تار ونه دیوه سره څخه بل سره ته ورې یعنې په دي سره هم دکښې باف مجلس بدلیږئ،

کتبه ورتبه احقر الخلق فضل الحق حقاني مدرس بجامعة مرکزیه تجوید القرآن





قال المصنف **وَبِالْاِنْتِقَالِ مِنْ غُصْنٍ اِلٰى غُصْنٍ** او دغه رنگه مجلس بدلیږي چې سړی په درخته کې دیوه ښاخه څخه بل ښاخ ته یو ته کیږي یا دیوه ښاخ څخه بل ته راښوه کیږي. قال في المراقي في ظاهر الرواية» او بعض فقهاؤ وائي چې څونکه یخ د درختې یودي نو په انتقال دیښاخو څخه تبدیل د مجلس نه راځي. بلکه یوه سجده یې کافي ده» قال المصنف:

**وَعَوْمٍ فِيْ نَهْرٍ اَوْ حَوْضٍ كَبِيْرٍ فِي الْاَصَحِّ** او دغه رنگه مجلس بدلیږي چې سړی اوبازي کوي په رود کې. او یا په لوی حوض کې. لوی حوض هغه دی چې لس په لس کې وي او تر دې کم صغیر دی. په صحیح روایت کې. دا راجع فقط ولو مذکوره مسائلو ته دی. ولې چې په ما سوا د انتقال په نورو مسئلو کې اختلاف سته، قال المصنف:

## وَلَا يَتَبَدَّلُ بِزَوَايَا الْبَيْتِ الصَّغِيْرِ وَالْمَسْجِدِ وَلَوْ كَانَ كَبِيْرًا

او نه بدلیږي مجلس په کنجانو سره دخونې چې کوچني وي یعنې که ایت دسجدې په یوه کنج د خونې ووائي او بیا یې په بل کنج کې ووائي یوه سجده کافي ده. ولې مجلس په سره نه بدلیږي» بخلاف بیت السلطان چې یوه خونه لوړه او بله کښته وي. او یا په مابین کې دیوه طاق او بل طاق په ډیر غولي وي په هغه سره مجلس بدلیږي او په قدر د تلاوت سجدې پر لازمیږي، او دا غه رنگه مجلس نه بدلیږي په کنجانو سره د مسجد که څه هم مسجد ډیر غټ وي، سبب دا دی چې مسجد که هرڅو غټ وي دیوه جانب څخه ئي اقتداء دبل جانب په امام پسې روا ده نو په دې سبب مسجد که لوی وي او که کچني وي بُقعة واحدة گنړل کیږي» قال المصنف:

**وَلَا بِسَيْرِ سَفِيْنَةٍ** او نه بدلیږي مجلس د تلاوت او د سماع په تگ د کښتي یعنې چې سړی په کښتي ناست وي او کښتي روانه وي، نو هرڅو واره چې یوایت دسجدې سړی ووائي یوه سجده یې کافي ده، ولې چې مجلس نه دی

بدل سوي، درویش والئ چې حکم د موټر او تیارې هم داغه دی. زوبا ئیسکل او موټر کا ته
هم دغسې نه دی فتدبر" قال المصنفؒ:

**ولا برکعة وبرکعتین** اوداغه رنګه نه بدلیږي دیوه رکعت په کولو سره مثلاً په یوه رکعت کی دوه یا دری واره یو ایت دسجدې
ووایه یوه سجده کافي ده، او په دوه رکعته سره هم مجلس نه بدلیږي،" یعني په یوه رکعت کی
ایت دسجدې ووایئ او په دوهم رکعت کی هغه ایت مکرر کړي مجلس نه دی بدل نو یوه
سجده کافي ده،" لکن دا مذهب دی دابویوسفؒ او امام محمدؒ وائی چې مجلس بدل سو نو
دوه سجدې به کوي،" قال المصنفؒ:

**ولبشربة واکل لقمتین ومشی خطوتین ولا باتکاء**

اونه بدلیږي مجلس دا وبو په څښلو سره یعنی سړي ایت دسجدې ووایه او بیا اوبه وڅښلې، او بیا

**وقعود وقیام ورکوب ونزول في محل تلاوته**

په هغه ایت ووایه مجلس نه دی بدل یوه سجده به کافي ده، دغه رنګه په خوراک د دوو ګولو
هم مجلس نه بدلیږي یعنی سړي د مخه تر خوراک ایت دسجدې ووایه او بیا دوې ګولې دوه
وخوړلې مجلس نه دی بدل بلکه یوه سجده به کافي ده او دغه رنګه په دوه ګامه تګ سره
مجلس نه بدلیږي یعني سړي ایت دسجدې ووایه او بیا یه دوه ګامه واخستل بیا یه هغه
آیت ووایه یوه سجده کافي ده،"
اوکه تر دوی ګولې بالاوي مجلس بدلیږي نو بیا دوې سجدې غواړي، او دغه رنګه نه بدلیږي
مجلس په تکیه کولو سره یعنی سړي ناست وي او ایت دسجدې ووائی او بیا تکیه وکړي او بیا
هغه ایت دسجدې ووائی مجلس نه دی بدل یوه سجده به بس ده، او دغه رنګه مجلس نه
بدلیږي په ناست سره او په ولاړ سره یعنی سړی ناست وی ایت دسجدې ووائی او بیا
دی ولاړ سي هغه ایت دسجدې او بیا د ولاړ وی ایت دسجدې ووائی او بیا کښیني هغه





هغه ایت تکرار کړي مجلس نه دی بدل او یوه سجده به کافي ده، او دغه رنګ مجلس نه
بدلیږي په سپریدو سره پر خره یا آس وغیره یعني سړي کښېنسته ایت دسجدې ووایه
او بیا په هغه ځای کی پر خره باندی سپور سو، او بیا یه هغه ایت دسجدې ووایه، یوه
سجده یه کافي ده، او دغه رنګه مجلس نه بدلیږي په راکښته کیدو د ابي څخه یعني سړی
پر خره مثلاً سپور وو او ایت دسجدې یه ووایه. او پر هغه ځای را کښته سو او بیا یه
ایت دسجدې پر هغه ځای ووایه یوه سجده یه کافي ده. ددی سببه مصنفؒ وویل فی
محل تلاوته" قال المصنفؒ:

**ولا بسیر دابته مصلیا** اونه مکرریږي مجلس په تګ د دابې که آس وي که خر په داسې حال چې دی لمونځ پر دابه کوي
نو ایت دسجدې په هغه لمانځه کی مکرر ووائی " مجلس یوه دي په سبب ددې چې لمونځ روادی
او سره ددې چې یو لمونځ په مختلفو ځایو کی نه دی روا **پوه سه**: چې د مصلیا
قید یه ددې دپاره ووایه که دغه سپور سړي پر لمانځه نه وي او دابه روانه وي ایت دسجدې
مکرر ووائی نو په قدر د تکرار سجدې پر لازمي دي، ولې چې تګ د دابې منسوب وه راکب ته دی
ګویا دی روان دی"

**درویش والئ** چې په دی سره حکم د بائیسکل موټر کا ته بنه ښکاره سو. او که سړي
لمونځ پر دابه کاوه د خارجي سړي څخه ایت دسجدې واوریدی. او بل واریې واوریدی، مکرری سجدې
پر لازمي دی او تر لمانځه وروسته بی اداء کوي" مرط، در **پوه سه** چې په موټر کی او
یا طیاره کی د موټر چلوونکی او طیاری چلوونکی، او دسواریانو حکم سره جلا دی تر په طیاره
کی په سبب د حرج یه یو دی" در " قال المصنفؒ:

**ویتکرر الوجوب علی السامع بتبدیل مجلسه وقد اتحد**

او مکرریږي وجوب دسجده تلاوت پر اوریدونکی په بدلولو سره د مجلس دده او حال

**مجلس التالی لا بعکسه علی الاصح** داوی چې مجلس د تالی یو وي

مثلاً تالی یو ځای ناست وو او ایت د سجدی یې تلاوت کړی او سامع هم واوریدی، بیا سامع بل ځای ولاړی او بیرته د تالی مجلس ته راغلی تالی بیا هغه ایت د سجدی ووایه پر سامع دوې سجدی واجب دی» لتبدل مجلسه، او پر تالی یوه سجده ... نعدم التبدل او په عکس کی یعنې چې د تالی مجلس بدل سی او سامع پر هغه اول ځای ناست وی نو پر تالی که څه هم دوې سجدی واجبی سولی. ولې خو مجلس یې بدل کړی. اما پر سامع یوه سجده لازمه ده، لعدم تبدیل مجلسه»، لکن پر صحیح مذهب» قال ط وعلیه الفتوی» نهر، واختاره صاحب الهدایة وقاضیخان»، قال الحلبی وبه نأخذ، او بعض فقهاء وائی چې په دی صورت پر سامع هم دوې سجدی واجبی دی. قال ط وهو المختار للاسبیجابی وعلیه الفتوی وهو قول فخر الاسلام»، ولې چې مجلس د تالی چې بدل سی نو د سامع وجوب پر سامع هم مکرر ریږی ولی اصلی سبب خو تلاوت دی لکه مذهب د جمهورو چې دی»، والحکم چې سجده د اضافت او نسبت یې و سبب ته کیږی چې تلاوت دی نه و شرط ته چې سماع دی، او د اصح مذهب دلیل دا دی لکه په المنح کی وائی چې صحیح دا دی سبب د سجدی په حق کی د سامع سماع دی تلاوت نه دی، او په ما نحن فیه کی خو مجلس د سامع نه دی بدل سوی»

**پوه سه**: چې د اولی مسئلې حکم اتفاقی دی یعنی هغه خولک چې سبب د وجوب پر سامع باندی سماع بولی نو خو ظاهره ده چې مجلس د سماع خو متعدد دی، او پر مذهب د جمهورو چې سبب د وجوب د سجدی تلاوت تلاوت بولی هغوئ وائی چې اتحاد د مجلس د تالی خو د تالی په حق کی تعدد المجلس باطل کی نو د اتحاد په حق د بل چا چې سامع دی، تاثیر نه لری»

قال المصنف **وَكُرِهَ اَنْ يَّقْرَءَ السُّوْرَةَ وَيَدَعَ اٰيَةَ السَّجْدَةِ لَاعَكْسُهٗ**

او مکروه دی چې یو څوک نوره سوره تلاوت کوی او تر ایة السجدة تیر به اړوی یعنی نې وائي، او دا کراهت یې تحریمي دی کما فی النهر»، ولې چې په دی کی مشابهت دی د منع کولو د کفارو خپل ځانونه د سجدی څخه او دا منع خو خوی د مؤمن نه دی» ولې چې دا خو کفر دی» نو ما یشبه به لکه د غه فعل د مؤمن مکروه تحریمي دی کذا فی البنایة شرح الهدایة. او عکس یې مکروه نه دی.





ولې چې په دی عمل کی مبادرت دی و سجدی ته پر خلاف د فعل د کفارو، قال المصنف

**وَنُدِبَ ضَمُّ اٰيَةٍ اَوْ اَكْثَرَ اِلَيْهَا** او مستحب دی چې هغه سړی چې یوازی آیات د سجدی وائی - چې وهر ایت ته د سجدی دی یو ایت بل یا دوه ایت نور دی و د جوت کړی یعنی ور سره و دی وائی»، تا چې تو هم د دی دفع سی چې دا ایتونه د سجدی تر نور قران تفضیل لری، سره د دی قران مبارک من حیث انه کلام الله تعالی ټول سورتونه او ایتونه یې سره برابر دی که څه هم په اعتبار د پړو صفاتو د خدای پاك په بعض سورتو او ایتو کی تفضیل یو پر بل سته، فتح القدیر» قال المصنف

**وَنُدِبَ اِخْفَاءُهَا مِنْ غَيْرِ مُتَاهِبٍ لَّهَا** او مندوب دی یعنی د مشا څخول طرفه څخه کرار ویل او پټ ټول د ایة السجدة د هغه چا څخه چې هغه ار استروی نوی سجدی ته یعنی یا او د سونه نه لری او یا پر تکلیف وی سجده او دا شفقة دی پر دوی.

**فائده**: په محیط او عنایه کی وائی که تالی د قران یوازی وو نو د ده خوښه ده که قراءت په جهر وائی او که قرار» او که نور خلک سامعین موجود وه. نو که دوی په خیال د تالی و سجدی ته اماده وه یعنی او د سونه یې درلوده، او تالی په دې هم پوهیدی چې سجده د تلاوت پر دوی تکلیف نه ده نو ایت د سجدی دی په جهر ووائی، تا چه ټوله د اسی څلی عبادت وکړی. او که د قاري په خیال ټوله یا بعض بې او د سه په کنبی سته، او یا پر نه ولو یا بعضو سجده کول تکلیف دی نو دی کرار وو وائی د دی سببه چې بل ورور په گناه کی د نه سجدی کولو واقع نه سی»، هذا ما هذب المتاخر

**مسئله**: که قاری ته د خلکو حال نه معلومیدی بیا هم اخفاء ښه کار دی کذا قال الحموی والطحاوی»، **مسئله**: که یو سړی په قصد ځان په یو کار اخته کړی وو، او د قران مبارك د اور یدو څخه یې ځان غافله کړی وو او ایت د سجدی قاري ووایه پر هغه سړي زجرا سجده د تلاوت وه واجبه ده، س، در، ط، قال المصنف

**وَنُدِبَ الْقِيَامُ ثُمَّ السُّجُوْدُ** او مندوب ده، ولاړه او بیا سجده کول یعنی که سړی په ناستی ایت د سجدی ووایه نو

مندوب دا ده چې وَلاړشي اوبيا دې سجده وكړي، د دې روايت عائشه رضي الله عنها كړي دى، او دغه رنګ مندوب دى هغه ځاى ته چې د ابي يوشا ايت د سجدې تلاوت كړي چې رالبنته دې سي او سجده دې بيرته ځكه وكړي. او امام طحطاوي وائي كه ذمه پر ذمه كې ډيرې سجدې وي نو هر يوى د پاره وَلاړېدل مندوب ده، قَالَ المصنف:

## وَلَا يَرْفَعُ السَّامِعُ رَأْسَهُ مِنْهَا قَبْلَ تَالِيهَا

اونه دې پورته کوي سامع سر خپل د سجدې څخه د مخه تر تالي د ايت د سجدې. وفي الشرح او دغه رنګ به سامع تر تالي د مخه سجدې ته نه ځي لكن دا هلته مندوبه ده چې تالي او سامع پر يوه ځاى سجده كوي، مندوبيت سبب دا دى چې تالي اصل دى نو سامع دې د ده متابعت وكړي، لكن دا ګمان دې خوك نه كوي چې سامع د تالي مقتدى دى حيقتاً، قَالَ المُصنف:

## وَلَا يُؤْمَرُ التَّالِي بِالتَّقَدُّمِ وَالسَّامِعُونَ بِالْاِصْطِفَافِ

اونه دى امر كړى شوى تالي د ايت د سجدې په د مخه والي سره او نه سامعان په صف كيدو سره ولې دا ته خو حقيقت اقتداء نسته، بلكه دوى دې سجده تلاوت

## فَيَسْجُدُوْنَ كَيْفَ شَاؤُوْا

وكړي څنګه چې خوښه وي، كه خوك ورو سته وي كه خوك د مخه وي تر تالي، قَالَ المُصنف:

## وَشُرِطَ لِصِحَّتِهَا شَرَائِطُ الصَّلٰوةِ اِلَّا التَّحْرِيْمَةَ

او شرط دى د صحت د سجدې تلاوت د پاره شرطونه د لمانځه: يعنى طهارت د حدث او خبث څخه او ستر العورة او استقبال القبلة وغيرها مما مر في باب الصلوٰة مګر تكبير تحريمه چې هغه په سجده تلاوت كې شرط نه دى بلكه سنت دى، قَالَ المُصنف:

## وَكَيْفِيَّتُهَا اَنْ يَّسْجُدَ سَجْدَةً وَّاحِدَةً بَيْنَ تَكْبِيْرَتَيْنِ هُمَا

او كيفيت د سجده تلاوت دا دى چې سجده دې وكړي يوه سجده په مابين كې د دوو تكبيرو يعنى





## سُنَّتَانِ بِلَا رَفْعِ يَدٍ وَلَا تَشَهُّدٍ وَلَا تَسْلِيْمٍ

يعنى يو تكبير د وضع د پاره او بل تكبير د رفع د پاره بيله لاس پورته كولو او بيله التحيات، او بيله سلامه ګرځولو، لعدم ورود الشرع بها،

# فَصْلٌ

فصل دى په بيان د سجده شكر كښى،

## سَجْدَةُ الشُّكْرِ مَكْرُوْهَةٌ عِنْدَ الْاِمَامِ لَا يُثَابُ عَلَيْهَا

سجده شكر مكروه ده په نيز د امام يعنى امام اعظمؒ، وفي نسخة عند ابي حنيفة رحمه الله تعالى عليه نه ثواب وركول كيږي پر هغې بانذې كې وكړي او نه ئې پرېږدي هغې كې ونه كړي، قَالَ المُصنف:

## وَقَالَا هِيَ قُرْبَةٌ يُثَابُ عَلَيْهَا وَهَيْئَتُهَا مِثْلُ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ

او امام محمد او امام ابو يوسفؒ يعنى په يوه روايت كې وائي چې سجدهٔ شكر د ثواب كار دى. او كيفيت د دې سجدهٔ شكر لكه كيفيت د سجدهٔ تلاوت دى يعنى وقبلته دې مخامخ شي او تكبير دې ووائي او حمد د خداى او شكر دې ووائي، او تسبيح دې ووائي، او شرطونه هم د سجدهٔ تلاوت شرطونه دي،

**پوښتنه:** چې كه څه هم امام طحطاويؒ د كراهت څخه كراهت تنزيهي اخستى دى خو بيا هم د حضرت الامامؒ مذهب و توجيه ته ضرورت لري، قدوري وائي او كمالؒ وائي چې په نيز د ابي حنيفهؒ او ابي يوسفؒ په يوه روايت كې كم نه رعت قربت يعنى د ثواب نه دى، مګر هغه ځاى چې په هغه كې نص وارد وي لكه سجدهٔ تلاوت، درويش وائي چې دا روايت خو نسبتهٔ مشكل دى، لكن امام محمدؒ د امام اعظمؒ څخه د اسې روايت كوي چې مكروه دى،

بعض فقهاؤ چې د امام اعظمؒ د مذهب داسې توجیه کړیده چې حضرت الامامؒ مراد دا نه دی چې سجدهٔ شکر مشروع نه ده او ثواب نشته په کښې بلکه دا دی چې دا سجده واجبه نه ده. ولې نعمتونه د خدای غیر متناهیه دی» فتکون مباحة، او دا توجیه د عبارت نه د کراهت یا عدم قربت ډیره لیرې ده، کما لا یخفی علی ذی لب» او بعض فقهاؤ وائي چې د امام اعظمؒ مذهب دا دی چې یوه سجدهٔ پوره شکر نه دی بلکه پوره شکر په دوه رکعت لمانځه کې دی لکه چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په ورځ کې د فتح د مکې وکړه کذا فی السیر الکبیر»

درویش وائي چې دا توجیه هم د کراهت د لفظ سره چې امام محمدؒ یې روایت کړې دی موافقت نه لري، ولې چې دا خو صحیح ده چې یوه سجده خو پوره او کامل شکر نه دی بلکه کامل شکر دوه رکعته لمونځ دی، لکن د لفظ د کامل نه خو دا نه معلومیږي چې فی الجمله شکر خو دی نو مکروه بیا ولې ده، یعنی سجدهٔ شکر فافهم، مصنفؒ په مراقی کې وائي چې اکثر فقهاؤ پر دې رایه دي. چې سجده شکر هیڅ قربت نه دی په نیز د امام اعظمؒ بلکه مکروه ده» بیا مراقی وائي چې هغه چې په بعض حدیثونو کې راغلي ده. چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې په یو بد مرض مبتلا خوارکي به ئې ولیدی لکه، شل، پیس، بونډ، وغیره نو سجده د شکر به ئې وکړه چې شکر دی چې زه د دې آفت او مرض نه خدای جل سلطانه سالم یم، هغه حدیث منسوخ دی»

لکن دا دعوی د نسخ امام طحطاویؒ رد کړیده» ولې چې اکابرو د صحابهؓ وو بیله علیه الصلوٰة والسلام نه دا سجده کړیده، لکه په صحیح روایت سره چې ثابته ده چې سیدنا ابوبکر رضی الله تعالی عنه په وخت د فتح د یمامې او د قتل د مسیلمة الکذاب سجده د شکر وکړه. او دا غه رنگه په صحیح روایت سره ثابته ده چې حضرت عمر رض په وخت د فتح د یرموک چې یوه وادی ده په ناحیه کې د شام سجده د شکر وکړه. او چې علی رضی الله تعالی عنه ذی الندبة کافر قتیل ولیدی. په نهر کې سجده د شکر یې وکړه او په صحیح روایت کې داسې هم راغلي دی چې ابوداؤدؒ یې روایت کړې دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم درې واره یو وخت سجده وکړه. او داسې وفرمائیله: انی سئلت ربی وشفعت لامتی فاعطانی ثلث امتی فخررت ساجدا شکرا یعنی ما خواست وکې د خدای نه او شفاعت می وکړه د امت د پاره. نو ده یوه دریمه شفاعت می قبول شو:





نو زه پر سجده پریوتم د شکر د پاره: ثم رفعت رأسی فسألت ربی لامتی فاعطانی ثلث امتی فخررت ساجدا شکرا: ثم رفعت رأسی فسألت ربی لامتی فاعطانی الثلث الاخیر فخررت ساجدا لربی» شیرازی وائي ــه

عطائی شفاعت چنانچش دهند: کرامت تمامی زدوزخ رهند: . اللهم ارزقنا شفاعته نبیک صلی الله علیه وسلم» دیارانو سره د مذهب امام طحطاوی لیکی وعلیه الفتوی، وفی الدر به یفتی. وفی کتاب ابن امیر الحاج وهو الظاهر. او څرنګه به ظاهر نه وي چې په سجده کې ډیر حدیثونه راغلي دی،، وفی الدر سجدة الشکر مستحبة به یفتی، کیف وقد جاء فی الحدیث الصحیح چې څه وخت چې د ابوجهل لعنه الله سر په غزا کې د بدر د علیه الصلوٰة والسلام په مخ کې کښیښول سو پنځه واره یې سجده شکر وکړه. او په حدیث کې راغلي دی: چې څه وخت چې جبرئیلؑ و آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته دا زیری راوړی، ان الله تعالی یقول لک من صلی علیک صلیت علیه ومن سلم علیک سلمت علیه،

نو علیه السلام سجده شکر وکړه او په تاتارخانیه کې وائي چې صاحب الحجة وائي زما په نیز قول د امام اعظمؒ محمول پر ایجاب دی، یعنی سجده د شکر د پاره د هر نعمت واجبه نه ده، او قول د امام محمدؒ محمول پر جواز او استحباب دی» درویش وائي چې دا خو ډیره صحیح خبره ده لکن د کراهت توجیه نه په کیږي. نو صحیح توجیه نه په کیږي» نو صحیح توجیه د کراهت که هغه روایت ثابت وي هغه ده چې صاحب الدر کړې ده. چې د کراهت محمل هغه دی لکه بعض عوام چې کوي متصل په لمانځه پسې. ولې چې د بعض جاهلانو دا خیال کیږي چې دغه سجده متصله په لمانځه پسې یا سنت یا واجب ده. نو دا قانون دی چې هر مباح شی او عمل چې ورته توهم ته مفضی سي هغه مکروه دی» دا وو محمل د کراهت المروی عن امامنا الاعظمؒ: هدیت الیه بنور التوفیق والله المستعان وعلیه التکلان» قال المصنفؒ:

# فَائِدَةٌ مُهِمَّةٌ لِدَفْعِ كُلِّ مُهِمَّةٍ قَالَ الْإِمَامُ النَّسَفِيُّ

یعنی دا یوه فائده ده مهمه چې باید سړی د دې تعلم او تعلیم غم وخوري او ډیر غمخوري په وکړي

دپاره ددفع دهغې نازلې چې پرسرې نازله سي. یعنی د دغې برکت به خدای پاک هغه ناز
دسرې څخه دفع کړي هغه داده، چې وئیلي دي امام نسفیؒ په کافي کې که څوك ووائي اتیوښار
سجده تلاوت ټولې په یوه مجلس کې. اوده ټولې دپاره یعنې په هغه مجلس کې سجدۀ تلاوت
وکړي خدای جل جلاله به کفایت وکړي د هغه شي چې دی په غم کې اچولی وو.
یعنې که بلاوي خدای به ئې څنډی دفع کړي، او که تصنیف وو خدای به ئې ورته راجلب کړي"

**فائده پوهسه**: چې دامهمه که دامورو څخه ددنیاوي او که داخرت وي
بعض علماؤ وائي چې ټوله څورلس ایته دې پوره کړي اوبیا دې څوارلس سجدې وکړي. لکن افضل
داده چې څرنګه یوایت ووایه د هغه دپاره دې سجده وکړي. اوبیا دې بل ایت ووائي او سجده
دې وکړي وهکذا. ولې چې څنډول دسجدۀ تلاوت ترتلاوت مکروه تنزیهي دی" اوکمال
هغه ټول به هم دفع سي چې ووائي چې د ایت السجدة او سجدې فصل نه دی بنه کار" کذا
قال ... طحطاوي" **دارولش** وائي چې دا کار خو ډیر آسانه کار دی لکن شیطان ددې کار څخه
خلګ معروف کړي دي.

## ایټولې بیشکه

نه بیشکه چې وارث الانبیاء دا یقیني ده
دعلومو ... مول خو ... زمونږ دنبي ده

انبیاؤ خپل امت ته بیله شکه حق بیان کړ
... ښتودی دین بیان کړ خوشحالی ده

... دي ... څخه زده کړي
... حقاني ده،

حقاني بقلم خود





# بَابُ الْجُمُعَةِ

داباب دی په بیان کې دجمعې:
في المراقي لفظ الجمعة بسکون المیم، اوقراء القرآن په مضموم وائي یعنې په پیښ دمیم ط. وفي المصباح
پیښ دمیم لغت دی داهل حجاز ط وائي دا لغت مشهوره او فصیح دی. پردي تقدیر دالفظ په
معنی د مفعول دی،، ولې چې په سکون سره وزن د فعلة بمعنی المفعول" ای الیوم المجموع
فیه الناس" اوپه زوږد میم دبني تمیم لغت دی نوپه معنی دفاعل دی: ای الیوم الجامع
اوتاء په دمبالغه دپاره ده لکه تا د علامة اوسکون دمیم په لغت د بني عقیل"

**فائده**: قرائة متواتره په قرآن کې پیښ دمیم دی. اوقرائت دسکون اوفتح په دقراءات
شاذه وو څخه دی، **دنقل ورخبره**: پوهسه: چې فراؒ اوزجاجؒ اوابو عمرؒ وائي
چې عرب قدیم د جاهلیت څخه د اسلام ترراتلو پورې دورځو نومان په دې ډول وه،، دشنبې
ورځ په شیار بلل، اود یکشنبې ورځ اول بلل، اود دوشنبې ورځ په اهون بلل، اود سه
شنبې ورځ په جبار بلل، اود چهارشنبې ورځ په دبار بلل، اود پنجشنبې ورځ په مؤنس بلل،
اود جمعې ورځ په عروبة بفتح العین وضم الراء، ثم نقلت الایام الی الاسماء الاسلامیة: ای
الجمعة، و السبت، والاحد، والاثنین، والثلثاء، والاربعاء، والخمیس

**دجمعې ورځې مناسبت**: څوك وائي چې ورځ دجمعې چې په دې نام مسمٰی سوه: لاجتماع الناس
فیه، اوابن حجرؒ په فتح الباري کې دا وجه اصح الاقوال بللې ده یعنې چې خلق دآدمؑ
په دغه ورځ کې جمع سوی دی، اوبعض وائي چې اجتماع دآدمؑ اود حواؑ په ځمکې کې هم په دغه
ورځ سوی ده، اوبعض کسان وائي چې په ورځ دجمعې دخدای پاك بندګان اورحمت سره یوځای کوي
اودغې ورځې ته عید المؤمنین هم وائي، اویوم المزید په هم بولي، لتزاید الخیرات فیه، اوپه
دغه ورځ کې رحمان دمړو سره یوځای کیږي، اوقبر وزیارت په دغه ورځ ډیر ښه دی، اوهم په دغه
ورځ کې مړی دعذاب القبر څخه خلاص وي. اوپه حدیث صحیح کې راغلي دي چې که څوك په

وړ کې دجمعې اویا په شپه کې دجمعې مبارکې مړ سي دعذاب قبرڅخه به خلاص وي،

## دعوامو غلطیا:

بعض عوام چې فکر کوي چې دا په پنجشنبې دورځې ترزوال وروسته مړسي نو هغه دجمعې شپې ته ځنډوي. او دجمعې په ورځ نه تان کینې او دجهنم دجمعې په ورځ اهل الجنة په ملاقات د رب العزت مشرفه کیږي. او دجمعې په ورځ سورة کهف ډیر ثواب لري، او په صحیح حدیث کې راغلي دي» خَیْرُ یومٍ طَلَعت فیه الشمسُ یومُ الجُمُعة، فیه خلق آدم وفیه اهبط، وَفیه تِیبَ علیه، وفیه مَاتَ، وفیه تقوم الساعة الی اخر الحدیث، یعنې بنه دورځو چې لمر په کښې راختي ورځ دجُمعې ده. په ورځ کې آدم علیه السلام پیدا سوی دی، او هم په دغه ورځ دی ځمکې ته راکښته کړه سوی دی هم په ورځ دجمعې دده توبه قبله سویده. او دجمعې په ورځ دی وفات سوی دی. او دجمعې په ورځ به د صور شپیلی پوه کول کیږي یعنې لوی قیامت به جوړیږي.، قَالَ المُصَنِّفُ:

## صَلٰوةُ الجُمُعَةِ فَرْضُ عَیْنٍ عَلٰی مَنْ اِجْتَمَعَ فِیْهِ سَبْعَةُ شَرَائِطَ

دجمعې لمونځ فرض معین دی یعنې پرهرسړي جلاجلا فرض دی چې د بعض په کوم سړي دنور څخه نه خلاصیږي پر هغه چا چې په هغه کې جمع سي اووه شرطونه وي، په مراقی الفلاح کې وائی: بالکتَاب والسنة والاجماع »، ونوع من المعنیٰ: قرآن «اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ یَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰی ذِکْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَیْعَ: الایة صَدَق الله العظیمُ» ترجمه: چې اذان وکړه سي دپاره د لمانځه دورځې دجمعې تاسي په شوق ځئ وذکر ته د خدای او پرېږدئ خرڅول، ترپایه پورې.«

**پوهسئ**: چې د ذکر الله څخه بعض فقهاء لمونځ مراد وي، نو دا ایت مذکوره فرضیت د لمانځه دجمعې خو دلالت ظاهر دی، او بعض فقهاء مراد ځنې خطبه بولي پر هغه تقدیر هم په فرضیت د لمانځه کوي ولې چې خطبه خو شرط د لمانځه ده، او شرط هلته فرض ګرځي چې مشروط یې فرض وي، او په تفسیر کې ددې ایت بعض مفسران خطبه او لمونځ دواړه مراده وي. او خدای جل سلطانهٗ دپاره د تاکید د امر دسعي یو مباح شی چې بیع ده حرامه ګرځولې ده: وهو





لایکون الا الامر واجبٌ» مرط در»

**حدیث**: قال علیه الصلوة والسلام: وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللهَ تَعَالٰی فَرَضَ عَلَیْکُمُ الْجُمُعَةَ الی اَن قَالَ م فَمَنْ تَرَکَهَا تَهَاوُنًا بِهَا وَاسْتِخْفَافًا بِحَقِّهَا، وَلَهٗ اِمَامٌ عَادِلٌ اَوْجَائِرٌ فَلَاجَمَعَ اللهُ شَمْلَهٗ وَلَا بَارَکَ اللهُ لَهٗ فِی اَمْرِهٖ اَلَا فَلَا صَلٰوةَ لَهٗ اَلَا فَلَا زَکٰوةَ لَهٗ اَلَا فَلَا صَوْمَ لَهٗ»، الحدیث»

**ترجمه**: پوهسئ په دې سره چې خدای پاک فرض کړیده پرتاسي لمونځ دجمعې نو که څوک لمونځ دجمعې پرېږدي د کهالی دوجهې او د سپکاوی د سببه په حق کې دجمعې دلمانځه، او ده لره امام عادل یا ظالم وي. نو دی خدای نه جمع کوي دده متفرق احوال او نه دی خدای برکت اچوي دده په کار کې، خبردار اوسئ، چې دغه سړي لره نه لمونځ سته، اګاه اوسئ چې دغه سړي لره زکوة نسته، او خبر اوسئ چې دغه سړي لره روژه نسته، ولې چې په سبب د استخفاف دده په جمعه سره کافر سو، او کافر لره هیڅ عبادت نسته،

**اِجماع**، په احادیثو شریفه ووکې راغلي دي چې مسلمانانو اجماع کړیده دوخت څخه د علیه الصلوة والسلام الی یومنا هذا پر فرضیت دجمعې دلمانځه بې انکاره د هیڅ چا، او هغه خبره چې ابن کج کړیده د اتباعو څخه د امام شافعیؒ چې دجمعې لمونځ فرض کفائی دی" هغه غلطه ده، نوع من المعنیٰ" هغه معنیٰ دا د، چې مونږ امر سوي یو په پرېښودو ماسپښین دلمانځه، دپاره دجمعې دلمانځه، ولا یجوز ترک فرض الا لفرض، ط »، قال فی المراقی والجمعة فرض آکد من الظهر» ولې چې ظهر د دې په سبب پاتیږي.» قال المُصَنِّفُ:

## اَلذُّکُوْرَةُ وَالْحُرِّیَّةُ

اول شرط نروالی دی، په دې شرط سره ښځې ووتې یعنې پر ښځه دجمعې لمونځ فرض نه دی، قَالَ اللهُ تَعَالٰی: وَ قَرْنَ فِیْ بُیُوْتِکُنَّ، او بل شرط حروالی دی یعنې ازادوالی پر مریې باندې لمونځ فرض نه دی دا واوره په کتابو کې وائي چې بادار ته دا روا ده چې مریې دجمعې دلمانځه څخه او دجماعت دلمانځه څخه او داخترو د لمونځو څخه منع کړي» اختلاف په دې کې دی چې که مولیٰ اجازه د جمعې دلمانځه مریې ته وکړي. آیا پر ده دجمعې لمونځ بیا فرض دی او که نه! صحیح دا ده چې په

اجازه دمولي خوپر مرئي دجمعې لمونځ نه فرضيږي که څه هم اداء يې صحيح ده، قال المصنف

اوبل شرط دفرضيت دَجمعې دلمانځه دادي چې سړي په مقيم وي

**وَالْاِقَامَةُ بِمِصْرٍ** په ښار کې، په دې قيد اوشرط سره هغه څوک ووتل چې مقيم وي خوپه قريه کې، اويا په ښار کې خووي لکن مسافروي: لقوله عليه الصلوة والسلام: الجمعة حق واجب على كل مسلم فى جماعة الا اربعة مملوك اوامرأة، اوصبي، اومريض، وزاد فى رواية البخاري اومسافر، قال عليه الصلوة والسلام: لاجمعة ولاتشريق، ولاصلوة الفطر لاالضحى، الافى مصرجامع، اومدينة عظيمة، يعنى نشته دجمعې لمونځ اونه تكبيرونه د تشريق اونه دکښتي اختر لمونځ اونه دلوی اختر لمونځ مګر په مصرجامع کې اويا په لوی ښار کې

**پوهه**: چې داحديث امام ابويوسف اوامام محمد په **مبسوط** کې وَعليه الصلوة والسلام ته مرفوع راوړي دي. اوابن ابي شيبة پرعلي موقوف يعنى دَروَلى دى،

لکن د قانون سره دمحدثينو سم په حكم کې چې دعقل لاره ورته نه وي. موقوف حديث لکه مرفوع دی اوکمال وائي چې کافي دی دقول دعلي داقتداء دپاره، قال المراقي، اونه ده نقل سوې دصحابه رضی الله تعالى عنهم نه چې دوی فتح دَوطنونو دکفارو وکړه. چې دوی په مشغوله سوي ځایونو کې دمنبرو په ایښوولو سره يا په آبادولو دَجمعې دلمانځه مګر په ښارونو کې او کړی وي نه په قريو کې او که چيرې پوچا دصحابه نه په يوه قريه کې لمونځ کړی وای. نوهغه به ترمونږ را رسيدلی وای که څه هم په خبرواحد سره وای،

**پوهه**: چې مصرجامع او مدينة عظيمة سره يوشی دی نوکلمه د"او" ياشک دراوي دی اويا د تخيير فى العبارة ده **تنبيه**، په تعريف کې دمصرجامع په پخوانی زمانه کې او په اوس عصرکې لوی اختلاف او طويل طويل بحثونه سته چې دَهغو تحقیق په دې مختصرو شرح کې دپيرګران دی نوځکه دروليش اکتفاء په شرح دنورالايضاح وکړه. اوبعض خبرې دَمراقي اود طحطاوي هم رانقل کړي، که څوک غواړي چې په تفصيل ځان خبر کړي نو دفتاواو و کتابونه دې مطالعه کړي، او دَروليش داګمان نه دی چې يوه تعريف دمصربه په اتفاق سره څوک پيداکړي، لهذا كُلٌّ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ، يومجرب اومنل سوي خبره ده،





خصوصًا په عصرحاضرکې، دَخلګو ترمنځ بين تعصبات قومي، مذهبي، علمي، جاهلي جاري ده

قال المصنف **أَوْفِيمَا هُوَ دَاخِلٌ فِي حَدِّ الْاِقَامَةِ فِيْهَا فِي الْاَصَحِّ**

اويا سړي اقامت لري په داسي محل کې چې هغه داخل وي په حد د اقامت په مصرکې، يعنى داسي ځای وي دَښار نه دباندي چې تردغه ځای سړي تيريږي هغه دښاره نه مسافر نه بلل کيږي. اوچې ودغه ځای نه د سفره نه راسي ځان مقيم په ښار کې بولي. نو دَغه ځای هغه محلي دي چې اطراف دښار په عرف کې دَخلګو نبلل کيږي، چې دهغه په باره کې دامام محمد نه يوه غلوه روايت راغلی دی، چې هغه غلو سره ګرد دي په اصح روايت کې وفى النوادر، وهو المختار، وفى المنهاية عن التمرتاشي انه الاشبه، وفى النهاية وهوالاصح لكن امام طحطاوي وائي:

**تنبيه** چې داتقدير په غلوه سره چې مصنف مختار کړی اود امام محمد نه هم يو روايت راغلى دى، اوماذكرمن الائمة په هم تصحيح کړيده، اويا بعض فقهاؤ په اميال سره تقدير داطرافو دښار کړی دی چې دجمعې لمونځ پرسړي واجبيږي، اوبعض علماء په سماع النداء سره تقدير کړی دی. اويا په بدائع کې وائي که دسړي کوردونه دښار نه ليری وو چې سحار کور ته اوتلای وای او جمعې لمونځ يې په ښار کې کړی وای ماښام ته بيرته کورته رسيدی بې تکليفه په هغه سړي دجمعې لمونځ په ښار کې فرض دی، داقوله ليس بشئ دی کې څه هم فقهاؤ په تصحيح کړيده. ولې چې د نص نه دحديث اود روايت نه زمونږ د ائمه ثلاثه مخالف دی اود مختار نه داهل الترجيح دعلماوو دمذهب هم داقوله تقدير ونه مخالف دی **سوال**: اخير طحطاوي او اهل الترجيح دمذهب تقدير داطرافو دښار چې دجمعې لمونځ پرواجب بولي، په څه شي سره کوي؟ **جواب**: داښاء په عرف دخلګو دی لکه حضرت الامام الاعظم چې په دې و مسئلو کې رأې دمبتلي به معتبره وي، قال المصنف

**وَالصِّحَّةُ** اودغه رنګه شرط دَ وجوب دصلوٰة الجمعة جوړوالی دَبدن دسړي دی. نو په دې شريطه سره مريض دوجوب خلاص دی،

ف مرة: سپین ږیری چې ډیر ضعیفه وي په حکم کې د مریض دی، م، خواه مریض جامع مسجد ته بیخي تللای نه شي، او یا تللای خو شي مګر په زیاتې د مرض سبب به شي.

**مسئله:** کوم سړی چې د مریض خدمت په کاوه که دی د جمعې لمانځه ته ولاړ شي نو مریض ضائع پاتیدی د هغه څخه هم د جمعې لمونځ ساقط دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَالْأَمْنُ مِنْ ظَالِمٍ** اوبل شرط دوجوب د جمعې د لمانځه امن د سړي دی ظالم څخه نو پر هغه سړي د جمعې لمونځ نسته چې د ظالم څخه پټ وي **پوښتنه:** چې مصنف چې تعبیر په ظالم وکړي د دې معنا داده چې سړی خو مظلوم وي، او که سړي یو جنایت وکړي چې سبب د حدود وي لکه زنا چې یې کړې وي، او یا ناحقه یې مړی کړی وي، او دی پټ وي پر هغه سړي د جمعې لمونځ فرض دی زجرًا، **مسئله:** کوم سړی چې مفلسه وي یعنې نه دینار لري او نه درهم او پور ورته پرې باندې وي، او دی بیریږي چې پور وړی مې بندي کوي پر هغه سړي هم د جمعې لمونځ نسته په حکم کې د مختفي من ظالم دی، م، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَسَلَامَةُ الْعَيْنَيْنِ** اوبل شرط یې دوجوب سلامتیا د سترګو ده نو پر ړانده باندې د جمعې لمونځ واجب نه دی په نیز د امام اعظم ابوحنیفه، او په نیز د یارانو کې چیرې قائد در لودی که هغه قائد تبرعًا یې جامع مسجد ته بیائی او که په مزدوري بیائي او دی یعني ړوند هم مزدوري لري، نو پر هغه ړانده هم د جمعې لمونځ فرض دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَسَلَامَةُ الرِّجْلَيْنِ** اوبل شرط دوجوب د جمعې د لمانځه جوړوالی د پښو دی نو پر شل باندې د جمعې لمونځ واجب نه دی ولې چې دی عاجزه دی د تګ څخه او دا حکم اتفاقي دی، او ط وائي چې د وارې پښو یې پرې وي پر هغه هم وجوب د لمانځه د جمعې نسته **مسئله:** که د سړي یوه پښه فلج وه یا پرې وه او بې تکلیفه په لکړ باندې تللای شوای پر هغه هم د جمعې لمونځ واجب دی، ط، په مراقي کې وائي چې ډیر زور، آور، باران چې د سړي اغوستي کالي سره ورلنده وي. او د هغه





تنګ زور، آور واوره او یا څپکړه هم عذر دی. او مسقط د جمعې د لمانځه د وجوب دی

**سوال:** د جمعې د وجوب دپاره خو عقل او بلوغ هم شرط دی. نو مصنف هغه ولې نه کړه ذکر **جواب:** عقل او بلوغ خو خاص په جمعې پورې نه دی بلکه هغه دوه مدار د نفس مکلف ولی دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّتِهَا سِتَّةُ أَشْيَاءَ الْمِصْرُ وَفِنَاؤُهُ** او شرط دی دپاره د صحت د لمانځه د جمعې شپږ شیان، یا ښار او یا اطراف د ښار چې د هغه به تفصیل تیر سو، قال في المراقي چې صحیح دی د جمعې لمونځ په ډیرو ځایو د ښار او د فناء د ښار کې، في الاصح، قال الامام السرخسي وبه نأخذ وعليه الفتوى كمافي شرح المجمع للبدر العيني وكذا في الفتح، او په بدائع کې وائي چې ظاهر الروایت دادی چې د جمعې لمونځ په دوه ځایه کې د ښار روادی. او بالا تر دوه ځایه نه دی روا، قَالَ وعليه الاعتماد، درولیش وائي چې قول د بدائع د هغه زمانې د مسلمانانو برابر دی یعني چې د عبادت شوق خصوصًا د جمعې د لمانځه محبت د عامو مسلمانانو په زړو کې وو. او په اوسنی زمانه کې چې ښارونه ډیر غټ سوه او په میلو مسافت یې په برکې نیولی دی او ورسره د هغه مسلمانانو د زړه څخه د عبادت کولو عشق او محبت هم کم سو.

نو که لمونځ د جمعې فقط یو ځای روا شي. لکه شیخ علامه مقدسي چې په نور الشمعة کې د امام اعظم څخه داسې روایت کړی دی. لا تجوز صلوة الجمعة الا في موضع واحد من بلد واحد، او یا امام زاهد عتابي وائي او صاحب البدائع هم وائي. چې د جمعې لمونځ په یوه ښار کې نه دی روا مګر په دوه ځایه کې. نو دا په سبب د ګناه کاره کید وسې د زړو مسلمانانو چې په هغو کې شرائط د وجوب پیدا وي. او دونه مزل د جمعې په لمانځه کښې نه کوي. یعني هغه یو ځای یا دوه ځایه چې د جمعې لمونځ کیږي. او دا یو لوی حرج دی په دین کې. نو ځکه مصنف جواز د تعدد د لمانځه د جمعې په یوه ښار کې مطلقًا روا وه باله. او امام طحطاوي هم وائي چې اصح دا ده چې مطلقًا تعداد د ځایو د لمانځه د جمعې روا دی، لاطلاق الدليل، **فرع**، چې تعدد مطلقًا روا سو بیا نو یو ځای والی د ټولو جامع مسجد و په لمانځه کې د جمعې هم ساقط دی.

اوبناء پر قول ضعیف چې وائي تعداد د ځایونو دی رَوا، نو بعض علماء وائي که ځایونه متعدد وه نو د هر جامع مسجد خلک به احتیاطًا څلور رکعته لمونځ وروسته د جمعې د لماځه په نیت د اخر الظهر علیه به کوي. ولې چې تعدد نه سي رَوا او څو ځایه د جمعې لمونځ کیږي. نو چې اول ځای د جمعې لمونځ اداء سو هغه صحیح دی نور گرده فاسد دي، او که ځایونه په یوه وخت کې سره وکړي د ټولو لمونځ فاسد دی، نو د دی کبله دی څلور رکعته په نیت داخر الظهر اداء کوي.

مصنف د علامه په رد کې د دی قول وائي: وَلَيْسَ الاحتياط فِي فِعلها بل الاحتياط في العمل باقوى الدليلين وهو جَواز تعدد الجمعة» درولیش وائي چې د لیل قوي اطلاق دی د حدیث لاجمعة وَلا تشريق الا في مصرٍ» نو مصر شرط دَ کولو دَجُمعې دی او هغه حَدیث مطلق دَی نو بناءً علیه که د جمعې لمونځ یو ځای وي په ښار کې او که مثل ځایه وي مصر خو پیدا دی، قال المراقي که علامه څلور رکعته احتیاطي څوک کوي او یا عوامو ته هم دا تبلیغ کوي نو د بعض جاهلانو به دا خیال سي چې د جمعې لمونځ فرض نه دی، نو بیا به ئې نه کوي. او د بعض جاهلانو به دا خیال سي چې ده جمعې په ورځ دوه لمونځه فرض دی،

درولیش وائي: چې هغه خبره چې برهان حلبي کړیده چې کول د څلورو رکعتو وهو الاحتياط لان الاختلاف في جواز التعدد قوي لان الجمعة لا تصلي في زمان السلف الا في موضع واحد من المصر وكون التعدد صحيحًا للضرورة يعني كما ذكرنا سابقًا لا يمنع شرعية الاحتياط انتهى مع تغيير داخبره د اعتبار وړ نه ده. ولې چې په دی احتیاط کې دوه لویه مفسده سته چې تر خیر یې شر ډیریږي كما ذكرنا انفا من ظن العوام» بلکه صحیح خبره هغه ده چې ط د شرح څخه د مراقي نقل کړیده چې کول دَ دغو څلورو رکعتو احتیاطًا بوصف الاشتهار» او یا عوامو ته په دغه احتیاطي څلور رکعته سره فتوې ورکول ممنوع دی اشد المنع، بَل ندل على ذالك والاحتياط للخواص في بيوتهم الذين يحتاطون في امور دينهم، الذين يتركون ما يريبهم الى تحصيل تيقنهم آه درولیش وائي چې د اسی خواص محتاطين في امور الدين په عصر حاضر کې عزّ وجود هم کالكبريت الاحمر والمسك الاذفر آلامن وفقه الله،





عبدالرحمن بابا وائي

بیت: چو بینم دین احمدؐ در غریبی ۞ دلم سوزان ز چشم خون جاری ۞
کله کله خو نادر گوهر پیدا سی ۞ نور هم جهان د تورو کا نړو غردی ۞ وان شئت مزید التفصيل في هذه المسئلة فارجع الى رد المحتار» قال المصنف في نور الايضاح:

**وَالسُّلطَانُ اَوْنَائِبُه** اوبل شرط د شروطو څخه د صحت د لماځه باچا دی د مملکت یعني چې دی پخپله به لمونځ ورکوي. او یا نائب ده باچا یعني چې د ه امر د اقامت د جمعې ورکړی وي او عیدین هم پر جمعه قیاس دی: قال الحسن البصري: اربعٌ الى السلطان وذكر منها الجمعة والعيدين **مسئله** ابن المنذر وائي که سُلطان یا نائب نه وو موجود نو دی خلک د ماپښین لمونځ وکړي **مسئله**: که یو چا په زور یو ملک ونیوی بیله بیعته د اهل الحل والعقد او ده په رعیت کې حکم د نورو امیرانو کاوه هغه ته هم اقامت د جمعې روادی» ط،

**مسئله**: که چیری غلبه وکړي کافرانو پر مسلمانانو او کافران والیان یه مقرر کړه مسلمانانو هلته د جمعې لمونځ او د اخترو لمونځ کولای سي. او یو قاضي دی وَدَروی په اتفاق د دوي او پر دوی واجب ده چې والی مسلمان دی د ځان د پاره غوره کړي. لکه په هغه وخت کې چې لوی په وچه د هند او پاکستان د انګریزانو په قبضه کې وه نو مسلمانانو د ځانو د پاره به هر ښار کې قاضیان ټاکلي وه. او د هغو په امر به د جمعې او اخترو لمونځونه کوله.

**مسئله**: په هغه ځای کې چې امیر المؤمنین ته د خلکو لاس نه رسیږي چې اجازه د جمعې د لماځه ځنی واخلی هلته د لوی قاضي د هغې ناحیې اجازه هم کافی ده، او په پاکستان کې نه د سرې رسیدگې و رئیس جمهور ته کیږي او شرعي قاضیان به حکومت کې هم نسته او مسلمانانو د ځانو د پاره قاضي هم نه دی ټاکلی نو دوی کید لای سي چې د یوه ښه عالم چې په علومو دینیه وو خبر وی او متقي وی د جمعې دَ لماځه اجازه واخلي» در» قَالَ المصنف.

## وَوَقْتُ الظُّهْرِ فَلَا تَصِحُّ قَبْلَهُ وَتَبْطُلُ بِخُرُوجِهِ

اوبل شرط د صحت د لماځه د جمعې وخت د ماپښین دی، نو نه دی صحیح لمونځ د جمعې د مخه تر دخول

د ماپښین دوخت اوبا طلېږی دجمعې لمونځ په وتلوسره دماپښین دوخت، یعنی چې امام شروع د لمانځه دجمعې وکړه خود ماپښین وخت باقی وو لکن په ما بین کی د لمانځه دماپښین وخت ختم سو نو دجُمعې لمونځ باطل سو، قال علیه الصلوٰة والسلام اذا مالت الشمس فصل بالناس الجمعة ،

او دلیل د بطلان یې پسله خروجه دوخت فوات دشرط دی، مر او امام مالکؒ وائي چې دجمعې لمونځ تر غروب الشمس پورې ړوادی. ولېچې دماپښین اود مازدیګر وخت دده په نیز یو دی. موږ وایو چې دجمعې لمونځ خلاف القیاس مشروع سوی دی ولې چې دوه رکعته دماپښین د لمانځه په کښې ساقط دي، نو باید چه ټوله هغه خصوصیات چې په شرع شریفه کې وارد دی باید دجمعې په لمانځه کې مراعات سي، او په هیڅ حدیث کی نه ده راغلی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم دې دجمعې لمونځ د مخه دماپښین تر وخت یا وروسته د ماپښین تر وخت کړی وی. وکذا الخلفاء الراشدین رضی الله تعالیٰ عنهم، هم نه ده مخه او نه وروسته کړي. وکذا من بعدهمُ الیٰ یومنا هذا ، نو که چیرې وروسته یا د مخه ړوا وای. نو بو واد خوبه علیه الصلوٰة والسلام دپاره دبیان دجواز داغسی کړی وای. قَالَ الامام الطحاویؒ ناقلاً عن الامام الحلبیؒ ،

**مسئله**: که دماپښین وخت تیر سو پسله دی څخه چې امام په قدر د تشهدی قعده کړې وه هم یې جمعه باطله سوه لفوات الشرط ، مثال یې دسحار لمونځ دی چې په طلوع سره دلمر باطلیږی ولو بعد التشهد **پوښتنه**: دجمعې لمونځ چې په خروج دوخت باطل سو آیا څلور رکعته دی پوره کړی چې د ماپښین لمونځ څندی جوړ سي **جواب**: لا لان الباطل لایکون مبنیً للصحیح، **سوال** کی سړی دا دجمعې لمونځ چې باطل سو څلور یې کی چې نفل سی روا ده او که نه! **جواب**: په نیز د شیخینوؒ نفل کیدای سي ولې چې دوی وائي د لمانځه اصل باطل سو چې فرضیت وو او وصف یې نه دی باطل سوی او امام محمدؒ وائي چې اصل او وصف یې دواړه باطل سوه

اَللّٰهُمَّ اغفِر لِمُؤلِفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِمَن سَعیٰ فِیهِ





قَالَ المُصنفُ **وَ الخُطبَةُ قَبلَهَا بِقَصدِهَا فِی وَقتِهَا وَحُضُورِ**

او بل شرط دصحت د لمانځه دجمعې خطبه ده یعنی که څه هم ډیره لنډه وی مثل سُبحَانَ الله وَ الحمد لله

**اَحَدٍ لِسَمَاعِهَا مِمَّن تَنعَقِدُ بِهِمُ الجُمعَةَ وَلَو وَاحِدًا فِی**

او که څه هم په فارسی وی اګر که قادر پر عربي هم وي، او دا خطبه به د مخه تر لمانځه

**الصَّحِیحِ** وی، ولې چې خطبه خو شرط ده او شرط تر مشروط د مخه وی لزوماً، **پوښتنه** چې خطبه دجمعې په ابتداء کی داسلام وروسته تر لمانځه وه لکه داختر خطبه او بیا هغه منسوخه سوه او د مخه تر لمانځه سوه » ط ، کذا ذکره المفسرون فی تفسیر قوله تعالیٰ: وَاِذَا رَاَوا تِجَارَةً اَولَهوَا نِ انفَضُّوا اِلَیهَا وَتَرَکُوكَ قَآئِمًا الآیة: ففی ذالك الیوم من الجمعة کانت الخطبة بعد الصلوٰة و بعد ذالك نسخت بعد یتها الیٰ قبلیتها » او دا خطبه به په قصد دخطبې وی » که سړی یعنی امام ونږل او په قصد د نږولو یې وویل" الحمد لله» دخطبې په نیّت ی کی نه دریږی» او هغه خطبه به په وخت کی دجمعې وی یعنی د ماپښین» نو کی دوخت تر دخول د مخه خطبه وویل دخطبې په ځای کی نه دریږی، ولې چې منقول قدیماً وحدیثاً داغسی ده، او یو څوك به هم حاضر وی داورېدو دپاره که څه هم هغه سامع کڼروی او یا بیده وی، او یا ډیر لیری ناست وي»

او د غه حاضر سړی به هم د هغو کسانو څخه وي چې په دوی سره جمعه کیدای سی» نو حضور د ښځی یاد کشنی کافی نه دی» البته حضور د مریض یا مسافر یا مریض کافی دی. که څه هم هغه حاضر یو سړی وی پر صحیح روایت لیعنی دخطبې دپاره حضور دجماعت شرط نه دی» او بعض فقهاءؒ چې کم از کم حضور د دریو کسانو شرط دی. او په درایت کی وائي چې دغه روایت صحیح ده. او په منتقی کی هم وائي چې دغه روایت صحیح دی، او شارح الکنز هم دغه روایت خوښ کړی دی، او د ائمه ثلثه وو څخه داسی هم روایت راغلی دی چې خطبه صحیح ده که څه هم هیڅ نه وي، او مصنفؒ په مراقی کی وائي چې شرط دصحت دخطبې هم دا دی چې په مابین کی د خطبې او د لمانځه به جلا

والی نه کوی پـه خورلـک یابل عمل چې قاطع د اتصال وی،

**مسئله**: که خطیب خطبه وَوَیل او بیا یې د جمعې لمونځ شروع کړی. او په لا مخکې قضائی لمونځ و، پیا د سوچې واجب الترتیب وو، نو د جمعې لمونځ به پریښو او قضائی لمونځ به را اوګرځاوه. او یا د جمعې لمونځ څُندی فاسِد سو هغه یه بیرته را اګرځاوه، او یا تر خطبې وروسته دوه رکعته نفل وکړه په دی ټولو صورتو کی خطبه نه با طلیږی او د اعمل قاطع نه بَلل کیږی. لکن په بحر او خلاصه، او محیط او سراج، او فتح کی وائی چی اولی را ګرځول د خطبی دی په مذکوره صورتو کی»، قَالَ المصنف:

## وَالْاِذْنُ الْعَامُّ

او بل شرط د صحت دَلمانځه د جمعې اجازه عامه دَه وَخلګوته وَرتګ و لمانځه ته، او د صاحب الکنز مختار هم دا غه ده. دلیل یه دادی چی د جمعې لمونځ دَشعائرو څخه د اسلام دی. او د خواصو څخه د دین نبوی دی نو لازمه داده چی اداء به یه په طریقه دَشهرت او اذن عام وي: قَـال المَراقی: ولم یذکر هذا الشرط فی الهدَایه لانه غیر مذکور فی کتب ظاهِر الروایته وانما هو روایة النوادر»

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصواب والیه المرجع والمآب: قَـالَ المُصنف:

## وَالْجَمَاعَةُ وَهُمْ ثَلٰثَةُ رِجَالٍ غَیْرَ الْاِمَامِ وَلَوْ کَانُوْا عَبِیْدًا

او بل شرط د صحت دَلمانځه د جمعې جماعت دی او هغه کم از کم دری کسه وی غیر د امام څخه

## اَوْمُسَافِرِیْنَ اَوْمَرْضٰی

که څه هم جماعت وَالا مریان وی او یا مسافروی یا ناجوړیان وی یعنی چی د جمعې لمونځ پر فرض نه وي

**پوهـسـه**: چه پر دی خو اتفاق دی چی منفرد سړی خو جمعې لمونځ نسی کولای لکن په مقدار د جماعت اختلاف سته د حنیفیا نو په نیزد دری کسه یه مقدار دی، غیر د امام څخه او دا مذهب د امام اعظمٌ او امام محمّد دی او امام ابو یوسفٌ وائی چی دوه کسه ماسواد امام څخه کافی دی، ولی په دوو کی هم معنیٰ د اجتماع موجوده ده. او طرفینٌ وائی چی جمع صحیح او اصطلاحی دری کسه دی، او د غه رنګه په قرآن شریف





فَاسْعَوْا اِلٰی ذِکْرِ اللّٰهِ» په واوچی ضمیر د جمع مذکردی را غلی دی، او بَل دا چې صیغه مفرد او تثنیه او جمع سره جَلا دی نو باید مصداق یه هم سره جَلا وي، حتیٰ چی اراده د دوو د صیغه څخه د جمع مجاز دی والحقیقة هو الاصل»

**سوال**: په میراث کی دوی لونړی یا دوی خوندی مثلاً تله د ړې دي **جواب** هوری خو نص موجود دی نو هغه قرینه د مجاز دی، ولی چی دغه کسان یعنی مریان مسافر وغیره خو صالح د امامت هم دی په جمعه کی بامثالهم بعد للخطبة من غیرهم» قَـالَ المُصنف:

## وَالشَّرْطُ بَقَاؤُهُمْ مَعَ الْاِمَامِ حَتّٰی یَسْجُدَ وَاِنْ نَفَرُوْا بَعْدَ سُجُوْدِه

او شرط ای عند الامام الاعظمٌ با تَو الی دی یعنی په تحریمه کی د امام سره که څه هم دوی اقتداء په حال کی د رکوع پسی کړی وی تر څو چې سجده کوی یعنی اوله سجده. او که مقتدیان چې دری وه و تښتیدل او یا یو څُندی ولاړسی یا دوه پسله سجدی څخه دَامام. نو دی پوره کړی امام یوازی دَجمعې لمونځ په اتفاق د ائمه ثلاثه وو د مذهب **پـوهـسـه**: چی بقاء د ښځو او کشنیا نو اعتبار نه لري»م» قَال الامام المصنفٌ:

## اَتَمَّهَا وَحْدَهٗ جُمُعَةً وَاِنْ نَفَرُوْا قَبْلَ سُجُوْدِهٖ بَطَلَتْ

پوره دی کړی جمعه یوازی، او که مقتدیان وَتښتیدل یعنی کلهم او بقی اثنان، د مخه تر سجودی د امام د جمعې لمونځ یـه با طل سُو. یعنی په نیزد امام اعظمٌ ولی په نیزد د امام اعظمٌ جماعت شرط د اداء د جمعې دئ. او یاران وائی که ټول ولاړه امام دِیوازی د جمعې لمونځ وکړی» ولی چی جماعت په نیزد دوی شرط د انعقاد دَتحریمی دی فقط، او امام زفرٌ وَائی چې جماعت د ابتداء څخه تر انتهاء پوری شرط دی نو په اول صورة کی د ده په نیزهم جمعه باطله سوه قَـالَ المصنفٌ

## وَلَاتَصِحُّ بِامْرَئَةٍ اَوْصَبِیٍّ مَعَ رَجُلَیْنِ

یعنی نه صحیح کیږی د جمعې لمونځ چې یوه ښځه او کشنی وی سره د دوو کسانو. ولی چی د ښځی حضو

یا دکشنی دجمعې په لمانځه کې اعتبار نه لري، نو نصاب دجماعت نه دی پوره. پر مذهب دطرفینو او پر مذهب دامام ابو یوسف ؒ جمعه صحیح ده نصاب برابر دی کما مرّ» قال

## وَجَازَ لِلْعَبْدِ وَالْمَرِيضِ اَنْ نُؤُمَّ فِيهَا

اوروا ده مریض له او مریض لره چې امامت دجمعې د لمانځه وکړي. مراقي وائي که اذن وو، یا اصالةً یا نیابةً یادلالةً» قال المصنف ؒ:

## وَالْمِصْرُ كُلُّ مَوْضِعٍ لَهُ مُفْتٍ وَاَمِيرٌ وَقَاضٍ يُنَفِّذُ الْاَحْكَامَ

و ښار په نیزد امام ابوحنیفهؒ هر هغه ښار دی چې مفتي لري چې خلک رجوع ورته کوي په حوادثو کې او امیر وي چې مظلوم دظالم نه خلاصوي او قاضي وي یعنی دادري سره په ښار کې وي، چې چلوي به احکام د دین» قال المصنف ؒ:

## وَيُقِيمُ الْحُدُودَ

## وَبَلَغَتْ اَبْنِيَتُهُ اَبْنِيَةَ مِنًى فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ

او برپا به کوي حدود لکه حد الزناء وشرب الخمر وحد القذف وغیرها، په دی قید سره احتراز وسو د محکم نه او ښځې نه ولې هغه دا کارونه نشي کولای. اورسیږي به بناوي دهغه ښار و مقدار ته د بناوو مِنیٰ یعنی په څوان زمانه کې په ظاهر روایت کې. قال قاضیخانؒ وعلیه الاعتماد امام طحطاويؒ وائي: چې مکه مکرمه او مدینه منوره ښارونه دي دجمعې لمونځ پکښي کیږي د زمانې نه د علیه الصلوٰة والسلام الیٰ یومنا هٰذا. نو هر ځای چې په مثل دیوه ددوی وي یعنې په څوان زمانه کې هغه مصر دی، یعنی د ابادی په اعتبار سره»

او بعض فقهاءؒ وائي چې مصر هغه ځای دی چې ټول خلک په سره جمع سي په هغه لوی مسجد کې د هغه ځای نه ځائیږي. او بعض فقهاءؒ وائي چې مصر هغه ځای دی چې هر کسب کاره لکه نجار بنّاء آهنگر رنګریز وغیرهم په هغه ځای کې خپل په کسب ګذاره کولای سی او نورې تفسیرونه داټول د ظاهر الروایة څخه خلاف دی. او دا مذهب دی دامام اعظمؒ ددی تصریح تحفه والا کړیده، او حسن هم د امام اعظمؒ څخه دا روایت نقل کړی دی وبه اخذ ابو یوسفؒ»





او هدایه وائي چې هم دا هر ظاهر المذهب دی. واختاره الکرخيؒ والقدوريؒ وفي العنایه وعلیه اکثر الفقهاءؒ

**فائده:** په افغانستان یا پاکستان کې چې په بعض لویو قریو کې د جمعې لمونځ کیږي. لکه سنځري، خوشاب، نهر کاریز، وغیره په قندهار کې هغه په بل تفسیر د مصر دی چې د هغه تفسیر ملاتړ بعض متاخرینو کړی دی» والله اعلم بالصواب

**پوښته:** چې مراد د تنفیذ دا حکامو او د اقامت الحدود څخه صرف قدرت دی پر دغه کارو او اقامت بالفعل نه دی شرط کما صرح به في التحفة عن الامام الاعظمؒ» قال العلامة نوح د دفع د ظلم د مظلومینو څخه لیس بشرط في تحقق المصریة بل الشرط في تحققها القدرة علی الدفع» او دلیل ددی چې دفعه بالفعل شرط نه ده، دا دی چې صحابه وو بلا نکیر د جمعې لمونځ په حجاج بن یوسف پسې کاوه، مع انه اظلم خلق الله کما صرح به اهل التاریخ الاسلامي طحطاويؒ وائي چې صدر الشریعةؒ چې هغه تعریف مذکور په متن کې ضعیف ګڼلی دی، دلیل یې دا وائي چې اوس خو په امورو کې ددین سستي راغلې ده. خصوصاً په اقامت کې دحدودو په امصارو کې امام حلبيؒ دا خبره دده ضعیفه بولي.

ولې مراد قدرت دی فقط فعلیت نه دی شرط»، او امام حمويؒ وائي چې بعض رومي ملایان چې وائي چې په اوس وخت کې د جمعې لمونځ په هیڅ ځای کې روا نه دی، ولې چې شرط د صحت یې فوت دی یعنی مصر، ولې دی وائي چې مصر خو هغه ځای دی. او هغه ښار دی چې په هغه کې والي وي او قاضي وي چې چلوي احکام ددین او برپا به کوي حدود» او دا سې بلد خو په ټوله اسلامي نړۍ کې نسته فلا تصح الجمعة وتعین صلوٰة الظهر» چې دا قول ضلال في الدین دی» ولې چې مونږ وویل چې شرط د مصریة چې هغه شرط د جمعې د لمانځه دی صرف او صرف قدرت دی پر مذکوره کارو او قدرت خو په ټوله اسلامي مملکتو کې سته، که څه هم فعلیت په بعض اسلامي نړۍ کې نسته، او بله خبره دا ده چې دی سلب کلي ولې کوي. ایا په سعودي عربستان کې حدود او قصاص نه دی جاري، او دغه رنګه په افغانستان کې چې د طالبانو تر قدرت لاندې ښارونه دی په هغوی کې په ډکه پیمانه حدود او قصاص او دفع د ظالمانو نه ده جاري،

**پوښتنه**: تاشارح پخپله ۱۲ دوولس کاله په سنځری کی دجمعی لمونځ کاوه او په خوشاب کی دی ۵ پنځه کاله دجمعی لمونځ کاوه پرځه بناء دی کاوه او سره ددی چی ظاهر المذهب هم درته معلوم وو!

**جواب**: زما مستند قول د صاحب در مختار چی په مینځ کی وائی په تعریف کی د مصر: وهو ای المصر مَا لَا يَسَعُ اَكبرُ مساجده اهله» یعنی هغه ځای دی چی لوئی ځای په ولای هغه لوئی د مسجد و د هغه ځای خلګ چی مُکَلَّفِين خلګ د هغه ځای چی مکلف وی په لمانځه دجمعی یعنی بنځه او کشنی ناحسابه دی. وعليه فتوى اكثر الفقهاء. او پدغه تعريف د مصر فتوی د ډیرو فقهاوو ده مجتبیٰ» لظهور التوانی فی الاحكام. وفی رد المحتار صفحه مذکوره، وقال ابوشجاع هذا احسن ما قيل فيه» دا هغه ترټولو ښه تعریف دی چی د مصر په تعریف کی ویل سوی دی. وفی والولوالجية وهو صحيح. بحر، وعليه مشى فى الوقاية، ومتن المختار وشرحه، وقدمه فى الدرر على القول الآخر وظاهره ترجيحه، وايده صدر الشريعة بقوله لظهور التوانى فى احكام الشرع سيما فى اقامة الحدود فى الامصار»

وروستۍ وائي: چی زما مقصد صرف د ځان د پاره یو مستند پید اکاوه او خلګو ته می خپل عذر په باره کی دجمعی د لمانځه په دوه ځایه بیانوه، نور دچا سره په دی باب کی جګړه او سوال او جواب ته حاضر نه یم چی بیانو یو په بل پسی رسالی جوړووه اوپه هغو رسالو کی د علماوو د شان سره نامناسبه الفاظ استعمالوو. ولی چی هغه تسلسل بیا پای نه لري بلکه یه عمومی توګه په ننی زمانه کی د اختلافه څخه د علماوو بله فائده نه پید اکیږی بیله دی چی ایمان پوری خاندی، او د دوی ترمابین د غیبت بلکه د بهتان دروازه خلاصیږی. نوبنه حبو داده» عمتر دیدی.. جواب نه دیدم»

حاصل دا چی سه نه مفتی یم نه قاضی یم» نه ملا یم نه امی یم»

بلکه په طلب د علم کی اخته یم» که محسود یم حاسد نه یم» مشک آنکه خود ببوید. نه آنکه عطار بگوید:

قليلٌ عمرنا فى دار دنيا ÷ ومرجعنا الى بيت التراب ÷ ولوړځای تی بولی مه کړه ÷ چی ځای خلګی تا ته پاشل کیږی. غیبت یا بهتان مکړه ÷ چی حسنات دی نقل کیږی ÷ حسد مه کړه ÷ چی زړه دی په سو ځیږی ÷





داستا ذانوانکار مه کړه ÷ که غر لوړوی لار سر بیره پر تیریږي. که تاویل زه یم ماویل نه یم ÷ نه به ته یه سه به زه یم ÷ اوکه تاویل ته یه ماویل ته یه ÷ هم به ته یه هم به زه یه ÷ کبر او لوئی مه کړه سه تکبر عزازیل را خوار کرد ÷ بزندان لعنت گرفتار کرد. چی علم دی په اندازه د قدوری او مستخلص وی حوالی ورد المحتار، او قاضیخان وعالمگیری وغیرها مه کوه. والا تکذب ابن اخت خالتک ÷ او لویه حصه د علم لَا اَدْرِی ده چی نه پوهیږی په لَا اَدْرِی مه شرمیږه او په کذبت و شرمیږه» قال المصنف

# وَاِذَا كَانَ الْقَاضِىُ اَوِ الْاَمِيْرُ مُفْتِيًا اَغْنٰى عَنِ التِّعْدَادِ

یعنی که قاضی او یا امیر عالم وو او په امور شرعیه او احکام دینیه وو بنه خبر وو چی صالح د فتوی ورکولو و نو دی اغناء راولی د تعدد څخه یعنی چی خواه مخواه به په محکمه کی امیر وی، او بل به مفتی او بل به قاضی وی. ولی ضرورت وفیصلی ته د احکامو دی نه و تعدد ته د اشخاصو» قال

# وَجَازَتِ الْجُمُعَةُ بِمِنٰى فِى الْمَوْسِمِ لِلْخَلِيْفَةِ اَوْ اَمِيْرِ الْحِجَازِ

او روا دی دجمعی لمونځ په منیٰ کی. چی هغه دیو ځای نوم دی چی پر دوه فرسخه د مکی شریفی څخه واقع دی، پر مذهب د امام اعظم او امام ابویوسف او امام محمد وائی نه دی روا. ولی منیٰ قریه ده او شیخان وائی چی منیٰ په موسم کی د حج مصر ګرځی، او د لمونځ دجمعی به یا خلیفة الاسلام ورکوی او یا به ئی امیر الحجاز وهو امیر مکه، حاصل دا چی امیر الموسم چی د حاجیانو د کارو بار د پاره خلیفه مقرر کړی وی» هغه دجمعی لمونځ به نه ورکوی ولی چی دی د بلی وظیفی د پاره ټاکل سوی دی مګر که خلیفة الاسلام اجازه ورته کړی وه. بیا دجمعی لمونځ ورکولای سی»

**سوال**: چی په موسم الحج کی منیٰ مصر ګرځی او د جمعی لمونځ پرکښی کیږی نو د لوی اختر لمونځ ولی نه پکښی اداء کیږی

**جواب**: د جهت د عذر د مصروفیت د حاجیانو په دی ورځ په مناسکو د حج لکه جمرهٔ عقبه ویشتل او قارنان حاجیان او تمتع والا حاجیان د شکرید لیسه وغیره حلالول او طواف زیارت کول او ځانونه د احرام څخه خلاصول مشغول دی

نود اختر لمونځ څُندی ساقط دی» کذا فی الهدایة ، او بعض علماء وائی چی په مِنیٰ کی تهوله کال د جمعی لمونځ کول صحیح دی ، ولی چی په فناء کی د مکی شریفی واقع ده» امام طحطاوی وائی چی سره د دووف نخوفا صلی څرنګه مِنیٰ په فناء د مکی کی حصا بول کیږی ،
درویش وائی: چی دا ټول اختلافات بناء پر پخوانی زمانه دی، او س چی بناوی د مکی شریفی د ښار د منیٰ پر خوا غزیدلی دی او بیخی لږ فاصله تر ما بین پاته ده، او په عین حال کی په منیٰ کی اسواق او بازارونه جوړ سوی دی . او شرط هلته همیشه موجوده وی. او یو لوی جامع مسجد چی د مسجد خیف په نامه مشهوره دی هم جوړ دی نو دی حالاتو په نظر کی نیولو سره په منیٰ کی بلا ریبه د جمعی لمونځ روادی، قال المُصنفُ:

## وَصَحَّ الاِقتِصَارُ فِی الخُطبَةِ عَلیٰ نَحوِ تَحمِیدَةٍ اَو تَسبِیحَةٍ مَعَ الکَرَاهَةِ

اوصحیح دی کوتاه والی په خطبه کی پر مثل د الحمد لله ویلو یا د سُبحان الله ویلو لکن مکروه دی» لِـتَرکِ السنة» او دا مذهب دی د امام اعظمؒ» او یارانؒ وائی: لابد من ذکر طویل یسمیٰ خطبةً» او کمه مرتبه مقدار د تشهد دی تر عَبده ورسوله پوری ، چی د غه خطبه مشتمله وی پر حمد او درود او پر دعا د مسلمانانو

**پوهـنه**: چی کراهت د اقتصار هم تنزیهی دی» ط ، او د حضرت الامامؒ دلیل دا قول د خدایؑ» فَاسعَوا اِلیٰ ذِکرِ اللهِ» بیله فرقه په ما بین کی د ذکر طویل چی خطبه یه بولی او ذکر قصیر» او بل دلیل دا دی چی امیر المؤمنین عثمان رضی الله تعالیٰ عنه چی خلیفه سو په اوله جمعه کی چی منبر ته وختی اذان وسوا ودی ولاړ سوا و دا قدر چی وویل الحمد لله نو سام پر پریوتی. او ټولی خبری څندی ور کی سوی نو راکښته سو د منبر څخه او لمونځ یه ور کړی. او صحابهؓ ټول موجود وه او یا انکار نه پر وکړی. فکان اجماعاً منهم علیٰ جواز الاقتصار فی الخطبة؛

**سوال**: نو چی مکروه دی نو ولی حضرت عثمان رضی الله تعالیٰ عنه دا مکروه کار وکړی. **جواب** چی مونږ ذکر کړه چی کراهت تنزیهی دی او حضرت عثمان رض ته عذر د سام پری وتلو ور پیښ سو او سره د عذر کراهت هم پوره نه سو» در،





قال المصنفُ

## وَسُنَنُ الخُطبَةِ ثَمَانِیَةَ عَشَرَ شَیئاً

او سنتونه د خطبی اتلس شیان دی او مراقی یو دا سنت هم زیات کړی دی چی خطیب ښچپل ځای کی دی کښینی د منبر پر استه طرف به وی یا توره لنګوټه به ئی تړلی وی او یا سپینه» ط » او قهستانیؒ وائی چی مکروه دی لمونځ د خطیب د مخه تر خطبی په محراب کی » درویش وائی په دی کار ډیر خطبا نه مبتلا دی په افغانستان او پاکستان کی چی تر خطبی د مخه سُنت په محراب کی کوی» قال المُصنفُ

**اَلطَّهَارَةُ** یو پاکی ده د حدث او جنابت څخه په حال کی د خطبی، نو کی پر بی او دس یا او یا جنابت وویل مکروه ده او اعاده یه بیله طهارت څخه مستحب ده»

**مسئلهٔ** مکروه ولی ده باید نا جائزه وای **جواب** خطبه خو نه لمونځ دی او نه جزء د لمانځه دی بلکه ذکر دی . او جنب او محدث خو خو د ذکر څخه منع نه دی» دلیل پر دا دی چی د خطیب مخ خو په حال د خطبی کی قبلی ته نه وی. او په لمانځه کی خو استقبال القبلة شرط دی. او بل دلیل دا دی چی خطبه په خبرو سره نه فاسدیږی او لمونځ فاسدیږی»

**وَسَترُ العَورَةِ** او بل سنت پټوالی د عورت دی. ولی چی خطبه په تواترسره اداغلی ده **پوهـنه** چی ستر د عورت خو فی نفسه فرض دی لکن د خطبی په باره کی سُنت دی» قَالَ المُصنفُ:

## وَالجُلُوسُ عَلَی المِنبَرِ قَبلَ الشُّرُوعِ فِی الخُطبَةِ

او بل سنت دا دی چی خطیب به کښینی پر منبر باندی د مخه تر شروع په خطبه کی دا ناسته لبعض وائی چی د اذان د پاره ده . نو د اختر و په خطبه کی سنت نه ده . ولی چی په هغو کی اذان نسته ، او لبعض وائی چی د استراحت د پاره ده نو په اخترو کی هم غواړی : والاول هو الاولیٰ» عینی علی البخاری

## وَالاَذَانُ بَینَ یَدَیهِ کَالاِقَامَةِ ثُمَّ قِیَامُهُ

او بل سنت اذان دی په حضور کی د خطیب لکه اقامت یعنی ور وسته تر خطبی په تشبیه کی غرض دا دی ، چی

مؤذن به ډیرلیری دخطیب څخه نه دریږی، اوبل سُنت دُولاړه دخطیب یعنی په دوارو خطبوکی **مسئله**: کهچیری خطیب په ناستې یوه یادواړه خطبی ووئیلی کافی خودی لکن بیله عذره مکروه دی» ط، قـال المصنف":

## وَالسَّيْفُ بِيَسَارِهِ مُتَّكِئًا عَلَيْهِ فِي كُلِّ بَلْدَةٍ فُتِحَتْ

اوبل سنت دخطبی دادی چی دخطیب په لاس کی به توره وی اوپرهغی بی تکیه کړی وی پرهغو ښارکی

## عُنْوَةً وَبِدُوْنِهِ فِي بَلْدَةٍ فُتِحَتْ صُلْحًا

چی په زور نیول سوی وی اوخلگو وروسته اسلام قبول کړی وی. **حکمت دتوری دادی**، چی دوی ته وښیی چی تاسی په توره سوفتح سوی یاست، اوکه داسلام څخه بیرته رجوع وکړی توره زموږ مسلمانانو په لاس کی ده بیرته به په داغه توره جنگ درسره کوو څو بیرته واسلام ته رجوع کوی. اوبعض فقهاء وائی چی په توره کی اشاره ودی ته ده چی داسلام ددین پر مخ تگ په توره سره دی.

**پوښتنه** چی مدینة الرسول صلی الله علیه وسلم په قرآن فتح سوی ده» یعنی دحضرت قدوم دعلیه الصلوة والسلام اهل المدینه ته تعلیم القرآن کیدی. اودوی په اسلام مشرف سوله اومکه مکرمه دتوری په زوره نیول سویده، **درویش وائی** چی په نړی کی ډیر ښارونه دتوری پرزور نیوله سوی دی چی د ښا ریخ دکتابو دمطالعی څخه څرگندیږی لکن پرتوره تکیه کول په عمومی اسلامی نړی کی اوس نسته. البته که بعض بلاد اوښارونه داسی وي چی اوس دی هم خطیب پرتوره تکیه کوی امکان لری. نودی سنت دپاتید وسبب څه دی! ددرویش په عقیده په نجوازمانه کی لمونځ دجمعی په ښارکی یو یادوه ځایه کیدی اودجمعی لمونځ به هم ولاة المؤمنین ورکاوه، نود هغوسره به توره ورسره وه په هغو ښاروکی چی عنوةً به نیولی سوی وه. لکن چونکه په مرور دزمانو په هرلوی ښار کی ترڅلورو ځایه ډیرلمونځ دجمعی اداء دعذر داسنت پاته سوٚ لان الضرورات تبیح المحظورات، اویا بل کوم سبب داوی چی.





طحطاوی سبب دتوری دتکیه چی نن دی ذکرسوهغه په هغوخلگوکی راځی وچی نوی به مسلمان سو نواوس چی په سوو بلکه په زروکلونه پرهغو ځایوتیرسوه چی عنوةً به نیول سوی وه. دتوری ښکاره کول به جمعی کی هغه خلگ یه په فائده نه پوهیږی اوسریږ نه خلاصیږی چی د خطیب سره د څه دپاره توره ورسره ده "

**فائده** مصنف وائی چی بیله توری به خطبه وائی په هغو ښاروکی چی صلحًا فتح سوی وی خلاصه والاوائی چی تکیه پرغیرد توری مکروه ده لکه لکړه وغیره لانه خلاف السنة آه محیط لکن ابن امیرحاج داخبره رد کړیده او وائی چی په حدیث صحیح کی چی روایت یه ابوداؤد کړی دی راغلی دی چی علیه الصلوة والسلام په مدینه منوره کی خطبه وئیله اوتکیه یی کړی وه پر لکړه وکذا رواه البراء بن عازبؓ عنه صلی الله علیه وسلم، **درویش وائی** چی هم داوجه ده چی په ټولو جامع مسجدو کی دافغانستان اوپاکستان دخطباء دخطبی لکړی موجودی وی البته چی هم دااوس چی لاوډ سپیکر په بعض ځایوکی په جامع گانوکی نصب سوه خطیبانو هغه لکړی پریښوولی بلکه دلاوډ سپیکر لکړه په لاس کی نیسی» والله اعلم وعلمه اتقن واحکم،

**مسئله**: امام سرخسیؒ وائی چی دخطبی په وخت دی ټوله خلگ وقبلی ته مخامخ کښینی اود خطیب وحواته دی مخ نه گرځوی لکه شمس الائمةؒ چی وائی ولی چی که دوی لکه خطیب مخ اړولی وی. نوچی خطیب دخطبی څخه فارغه سی اودلمانځه وخت راسی په سبب د ډیرازدحام په سمولوکی د صفو ډیرلوی حرج راځی» قال المصنف":

## وَاسْتِقْبَالُ الْقَوْمِ بِوَجْهِهِ وَبَدَائَتُهُ بِحَمْدِ اللهِ وَالثَّنَاءِ

اوبل سنت دخطبی دادی چی خطیب دی مخامخ وخلگوته دریږی (کذکذ لفعل النبی ﷺ وقت الخطبة) اوبل سنت دخطبی

## عَلَيْهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ وَالشَّهَادَتَانِ وَالصَّلوٰةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دادی چی خطیب دی اعوذ بالله کراره ووائی اوبیادی شروع دخطبی په حمد سره کوی دخدای پاک اوصفت دوکړی دخدای جل وعلی په هغو صفاتو سره چی دی یه اهل دی اودوی شهادتین دی ووائی اودرود پر علیه الصلوة والسلام دی ووائی اودادوه هم سنت دخطبی دي،

قَالَ المصنفؒ **وَالعِظَةُ وَالتَّذْكِيرُ** او بل سنت د خطبې عظة او تذکیر دی درویش وائی اګرچه د عظة او تذکیر په عرف کې فرق نشته بلکه دواړه په معنا د نصیحت دی لکن مراقي د عظة څخه زجر د ګناهو څخه او بیرول د خدای پاك د عذابو څخه مراد کړی. او د تذکیر څخه بلنه د خلګو ده د خدای پاك و عبادت ته

قَالَ المصنفؒ **وَقِرَاءَةُ آيَةٍ مِّنَ الْقُرْاٰنِ** او د غه رنګه سنت دی په خطبه کې ویل د یوه ایت د قران پاك، ولې چې په حدیث شریف کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام په خطبه کې د جمعې دا ایت مبارکه ووایه «وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ» **مسئله**: فقهاء وائی چې ترایت د مخه دی اعوذ بالله هم و وائی او بسم الله نه غواړی مګر هغه وخت کې پوره سورة و وایه نو بیا دی بسم الله هم ووائي: قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَالْخُطْبَتَانِ وَالْجُلُوْسُ بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ** او د اغه رنګ سنت دی د دوو خطبو ویل ولې چې د عصر نبوی څخه تر دی او سه پورې د دوو خطبو ویل جاری دی؛ او د اغه رنګه سنت دی کښینستل په مابین کې د دوو خطبو لکن ټول فقهاء وائی چې دا جلسه دی سپکه وی» ظاهر الروایة دادی چې په قدر د درې ایتو قصارو دی کښینی» په قهستانی کې وائی چې تارك د دغې جلسې ګناه ګار دی ولې دا سنت ده. او دا جلسه په اصل کې د استراحت د پاره وه» چې په حدیث شریف کې راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به په ابتداء کې یوه خطبه په ولاړې وئیله وروسته چې دی مبارك کلان ساله سو نو هغه یوه خطبه په دوه کړی او په مابین کې به ئې جلسه خفیفه کوله»

**فائده** بعض اهل حدیث وائی چې د جمعې په ورځ کې» په قرار د فرموده د علیه الصلوٰة و السلام چې یو کم ساعت د قبلید و د دعا سته هغه د غه ساعت دی یعنی مابین الخطبتین» نو سړی ته نبائی چې د امام د جلسې په وخت کې دی یوه مختصره دعا وکړی

قَالَ المصنفؒ **وَاِعَادَةُ الْحَمْدِ وَالثَّنَاءِ وَالصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** او راګرځول د حمد او ثناء د رب جل سلطانه، او بیا د درود پر علیه الصلوٰة والسلام ویل





**فِي اِبْتِدَاءِ الْخُطْبَةِ الثَّانِيَةِ** په شروع کې د دوهمې خطبې هم سنت دی. **مسئله**: په درود وئیلو کې دی خلفاء راشدینؓ او د علیه الصلوٰة والسلام دوه اکاګان یعنی حمزهؓ او عباسؓ هم ورضم کړی. درویش وائی چې قدیم توارث د دغو کسانو ؓ جاری وو لکن وروسته خطباء و ذکر د امام حسنؓ او امام حسینؓ او فاطمة الزهراءؓ هم ورسره ضمیمه کړی او شك نشته چې دا ښه کار دی

قَالَ المصنفؒ **وَالدُّعَاءُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِالْاِسْتِغْفَارِ لَهُمْ** او د غه رنګه سنت دی چې په دوهمه خطبه کې دعاء کوی و مؤمنین یعنی نرو ته والمؤمنات یعنی ښځوته د بخښنې غوښتنه او دعا کوی. په مراقی کې وائی چې با، په باالاستغفار کې به معنا د مع ده یعنی سره د استغفار و دوی ته، نو معنیٰ دا ده چې دعا دی ورته کوی مؤمنینو او مؤمناتو ته په ډیر والی د نعمتو. او په دفع د بلاوو او ضررو، او په برې پر د ښمنانو او نوری ورته دعا ګانی سره د طلب د بخښنې د دوی د پاره، قَالَ المصنفؒ:

**وَاَنْ يَّسْمَعَ الْقَوْمُ الْخُطْبَةَ** او بل سنت دا دی چې خطیب دی په قوم خطبه اوری. او په درایة کې وائی کې نه واوری هم کافی ده، او په دوهم خطبه جهر تر اولی کم کوی» مر» قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَيُخَفِّفُ الْخُطْبَتَيْنِ بِقَدْرِ سُوْرَةٍ مِّنْ طِوَالِ الْمُفَصَّلِ**

او لنډی دی وائی مجموع دواړی خطبې په اندازه د یوه سورة د طوال مفصل د سورتو څخه، ابن مسعودؓ وائی چې اوږد والی د لمانځه د جمعې او کوتاه والی د خطبو د هوښیاری څخه د خطیب ده، او په فتح القدیر کې وائی چې هوښیاری او سنت نبویؐ د خطیب دادی چې اوږد والی د لمانځه او کوتاه والی د خطبې دی، لکن فقهاء وائی چې خطیب دی حال ته د سامعانو ګوری که په قدر د طوال المفصل ورته تکلیف وه بیا دی په قدر د قصار المفصل خطبه وائی د خطیبانو غالب عادت دا دی چې خطبو ته زور ورکړی چې بعض خلګو ته خوب ورسی. ولې اکثر د دوی

خوامیان دی اوخطبه عربي ده نودوی پـه هیڅ نه پوهیږی چې خطیب څه شی وائی. او لوئیځ نوبـه قصار مفصل سره اداء کړی" قـال المصنفؒ:

**وَيُكرَهُ التَّطْوِيلُ وَتَركُ شَيْءٍ مِنَ السُّنَنِ** اومکروه دی اوږدول دخطبو یعنی تر سورة دطوال مفصل ،هم په ژمی کی ولی زمانه لنډه ده اوهـم پـه دوبی کی ولی چې گرمی ده، اود غـه رنګ مکروه دی پریښول دیو شی دسُنتو یعنی چې بیان یـه تیر سو، قـال المصنفؒ:

**وَيَجِبُ السَّعْيُ لِلْجُمُعَةِ** اوواجب دی یعنی فرض دی تګ دجمعی لمانځه ته پیاده کی پر پیاده تګ قدرت وولپوه سه چې دسعی لغوی معنیٰ ده څغاسته ده لکن مفسرین ټوله وائی چې مـراد نفس تګ دی بلکه پـه ارام اوعزت سره اوپـه ایت شریف کی چې» فـاسْعَوا اِلیٰ ذِکْرِ اللهِ،« راغلی دی مراد څندی سعیه ده دزړه یعنی په کمال شوق او محبت سره دجمعی لمانځه ته ځه» اومصنفؒ چې لفظ د سعی وویـه موافقـةً للقرآن الکریم، اونبی علیه الصلوٰة والسلام پـه عمومی لمونځو کښی د څغاستی څخه نهی کړی دی: وقـال: اذا اقیمت الصلوٰة فلا تأتوها وانتم تسعونَ و أتوها تَمْشُون وعلیکم السکینة » فما ادرکتم فصلوا وما فاتکم فاتموا، ترجمه: نوهرڅه وخت چې ودرېږی لمونځ یعنی جماعت نوتاسی ورځی لمانځه ته چې تاسی څغلی بلکه لمانځه ته ورځی پـه عادی تګ سره نوهرڅه لمونځ چې تاسی یـه دامام سره وتسی هغه اداء کړی اوچې درڅخه تیرسوی وی هغه بـه وروسته پوره کړئ،

**پـوه سـه**: چې دجمعی لمانځه ته ورتګ اوورو ستـه څندی تګ یوشی دی یعنی دواړه دی پـه عادی تګ سره وی وَهُوَالاصح **مسـئـله** پـه عمومی لمونځو کی چې سړی پـه اول ساعت کی مسجد ته ولاړسی هغه بـهتر کار دی ثم ما یلیها» اودجمعی پـه لمانځه کی مخصوص ډیراحادیث مبارکه راغلی دی،» چې یوحدیث هغه دی چې امام مالکؒ یـه پـه مؤطاء کی روایت کړی دی سره دترجمی حدیث واوری: مَنْ اِغتَسَلَ یَومَ الجمعَةِ غسل الجنابـةِ، که چا وکړي پـه ورځ دجمعی کی یعنی د لمانځه دپاره کما یدل علیه ما بعده،، اوغسل یـه لکه دجنابت وُو"





یعنی پوره غسل لکه دجنابت څخه چې سړي غسل کوی. ثم راح فی السّاعة الاولیٰ فکانما قرب بدنه، اوبیا ولاړی دجمعی لمانځه ته پـه اول ساعت کی دونه ثواب خدائ ورکوی لکه اوبن چې خیرات کړي: وَمَنْ رَاحَ فی الساعة الثانیه فکانما قرّب بقرةً: اوکه څوک ولاړی پـه دوهـم ساعت کی نودومره ثواب یـه دی لکه چې غواړې خیرات کړی: ومن راح فی السّاعَة الثالثة فکانما قرب کبشا اَقرن، اوکه څوک ولاړسی پـه دریم ساعت کی گویا ده خیرات کړي پسـه ښکروَر،» وَمَنْ رَاحَ فی الساعة الرابعَة فکانما قرّب دجاجَةً ،» اوکه څوک ولاړسی پـه څلورم ساعت کی گویا ده خیرات کړه یوه چرګه، وَمَن رَاحَ فی الساعة الخامسَة فکانما قرب بیضةً» اوکه څوک وَلاړسی پـه پنځم ساعت کی گویا ده خیرات کړه یوه دانـه اګی،

اوامام مالکؒ اواکثرو ده شاګردان اوامام الحرمَین ابوالمعالی عَبد الملکؒ اوقاضی حسینؒ وائی چې مراد دغو ساعتو څخه ساعات شبانه روزی چې ۲۴ نـه دی بلکه مراد څندی لحظات خفیفه دی چې داول څخه دزوال شروع کیږی، ترهغه وخته پورې چې امام دخطبی دپاره پر منبر کښینی **پـوه سـه** چې دغه ثوابونه دجمعی ترلمانځه بالا خدائ ورکوی اوچې امام پرمنبر کښینی نوراپـه ثوابونه ختم سی اود لمانځه ثواب یـه ستـه. اوامام طحطاوی دجمهورو فقهاوؒ مذهب دا سی نقل کړی دی چې مراد ساعات شبانه روزی دی چې ۲۴ دی لکن پـه دی اختلاف دی چې اول دَدغو ساعتو دکومه وخته څخه شروع کیږی برهان حلبیؒ وائی چې اول ساعت یـه دراختو څخه دلمر شروع کیږی لود سپیدو څخه بـه سړی پـه غسل، کالی بَدلولو، دخوشبوئی پـه لګولو وغیره وغیره اخته وی چې څرنګه لمر راوختی دجمعی لمانځه ته اول ساعت دتګ شروع کیږی،

دَدرولش وائی: چې دساعاتو دبیان څخه مقصود باعث کول دمسلمانانو دی پر وختی تګ د جمعی وَلمانځه ته خصوصًا پرمذهب دجمهورو وَلی پـه دونه ډیر وخت کی یعنی دلمر ختو څخه پـه جامع مسجد کی سړی هـم نفل لمونځ کولای سی اوهـم تـلاوت دقرآن کریم کولائ سی. اوهـم تسبیح وَتهلیل او تکبیر اوذکر کولای سی وغیرها من العبادات حتی الاعتکاف ان نواه" اوپـه صف اول کی ځای پیدا کولای سی، لکن محققین د فقهاوؒ د مذاهب اربعه وو پر اول

مذهب متفق دی یعنې چې مراد د ساعاتو څخه لحظات خفیفه دی. ولې پر مذهب د جمهورو په عصرِ حاضر کې به په اسلامي نړۍ کې خدای خبر دی چې څومحدود مسلمانان پر دغه مذهب د جمهورو عمل کوي. ونقل الامام الطحطاويؒ عن الکشاف، چې اول بدعت چې په مسلمانانو کې رونما سوي دی پریښول د پړوخت تګ د جمعې لمانځه ته» قَالَ المصنفُؒ:

## وَتَرْكُ الْبَيْعِ بِالْاَذَانِ الْاَوَّلِ فِي الْاَصَحِّ

اوداغه رنګه واجب دی پرېښول د خرڅولو د شي په اول اذان سره په صحیح مذهب کې. اوداغه رنګه حرام دی هرهغه کار چې سړی د جمعې د تګ څخه باسي په نیزد د اذان اول لکه خوړلئ، خوب، مجلس وغیرها من الافعال. اومراقي وائي چې مراد ده اذان اول څخه هغه اذان دی چې پسله زواله کیږي. ولې چې عمومي اعلام خو په هغه اذان سره کیږي. نه هغه اذان چې په نیزد منبر چې خطیب پرمنبر کښیني. ولې که سړی وهغه اذان ته انتظار کوي نو څه سنت د تلو الی الجمعة پاته سو، بلکه شاید د جمعې لمونځ به څندې تیرسی کې کوږ لیري وو، وهو اختیار لشمس الائمة السرخسيؒ، اوفقیه ابوجعفر الطحاويؒ وائي چې مراد د اذان څخه ثاني دی. ولې چې اول اذان په عصرِ نبويﷺ او په زمانه کې د خلافت د ابوبکر الصدیقؓ اود خلافت د عمرؓ هو دغه اذان وو چې اوس ثاني دی» قال في البحر وهو ضعيفٌ:

**فَائِدَه** په زمانه کې د علیه الصلوٰة والسّلام او په زمانه کې د خلافت د شیخینؓ چونکه شوق اوذوق د جمعې د لمانځه ډیر وو اود مسلمانانو مشاغل هم کم وه نو ټول مسلمانان به تر اذان ثاني مخکې په مسجدنبويﷺ کې حاضر وه نو اعلام عمومي ته ضرورت نه وو بلکه د حاضرینو خبرولو ته ضرورت وو هغه ضرورت په اذان عند المنبر سره پوره کیدی، او په خلافت کې د عثمانؓ چې خلګ د مدینې منورې ډیر سوه اوبعض اعراب او عجم هم په مدینې کې مقیم سوه. اود خلګو مشاغل هم د شراء وغیره ډیر سوله چې بیله اعلام عمومي خلګ د جمعې د لمانځه په وخت سره نه پوهیدل نو حضرت عثمانؓ په حضور کې د صحابه کرامو دغه اذان چې په نیز د زوال د لمر کیږي زیات کې چې پریولو په مقام چې زوراء یه تبلله هلته به دا اذان کیدی»





اودغه اذان د کولو څخه هیڅ یو صحابيؓ انکار و نه کړی فکان اجماعًا منهم»

**فَائِدَه**: په بعض کتابو کې دغه اذان ته اذان ثالث وائي ولې چې آمتروعیت کې دریم دی، اول اذان عند المنبر دی، دوهم اقامت دی، اودریم دغه اذان اول دی، او په نورو کتابو کې ودغه اذان ته اول اذان وویل سو په اعتبار د الایضاح کې او په ډیرو نورو کتابو کې

**فَائِدَه**: مصنفؒ ترك البيع په دغه وخت کې واجب وبالله چې مقابل په مکروه تحریمي دی» اودرولیش وړ ته حرام و وایه هغه په دی سبب چې وجود په دغه ورځ د جمعې کې چې اطلاق د حرام پر مکروه تحریمي روا دی کما وقع في الهدایه،،

**مَسْئَله**: که چا پسله اذان اول څخه بیع وشراء وکړه نو عقد خو یې صحیح دی حتی یجب الثمن ویثبت الملك قبل القبض في المبیع» مګر سره د ګناه. اودغه بیعه که حرام اصلي وای نو عقد به فاسد وای ملک په مبیع کې به قبل القبض نه وای اوثمن به هم په نفس عقد لازم نه وای. وهذا هو مذهبنا ومذهب الجمهور

**تَنْبِيْهُ**: په نهایه کې وائي که دوه کسه د جمعې و لمانځه ته روان وه اوپر لاری بیله توقف بیع سره وکړه فلا بأس به آه او مصنفؒ په مراقي کې وائي چې بیع ماشیًا هم مکروه ده» اوامام طحطاويؒ یه وجه دا وائي چې په دی جواز کې تخصیص د اطلاق ده قرآن کریم د آیت یعنې" فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ" او په اصولو د فقهې وائي چې تخصیص د اطلاق د قرآن نسخه ده او نسخه په رایه سره نه ده روا» درویش وائي چې دغه حکم د مراقي چې بیع ماشیًا هم مکروه ده په مقابل کې د ډیرو کتابو د فقه حنفي واقع سویده» والله اعلم بالصواب» قَالَ المُصنفُؒ:

## وَاِذَا خَرَجَ الْاِمَامُ فَلَا صَلٰوةَ وَلَا كَلَامَ وَلَا يُرَدُّ سَلَامًا

اوهرکله چې راووزي امام یعنې د حجرې څخه نو هیڅ لمونځ نسته نه نفل اونه د جنازې لمونځ اونه سجده تلاوت اونه قضائي

## وَلَا يُشَمِّتُ عَاطِسًا حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ صَلٰوتِهٖ

لمونځ اونه به سلام اود سلام جواب اونه به نږونکي ته جواب ورکوي ترڅو چې دی د لمانځه څخه فارغ سي

مګرهغه وخت قضائی لمونځ کولای سی که سړی صاحب الترتیب وو او په عین حال کی دره
قضائی لمونځ ورپیاد سو نو هغه قضائی لمونځ دی وکړی که څه هم وتروی په سبب د دی
چی د جمعی لمونځ یې نه صحیح کیږی،

**مسئله**: که امام په حجره کی نه وو بلکه په مسجد کی وو نو چی دی ولاړسی د پاره د منبر د ختو نو دغه مذکوره شیان منع دي، او دا مذهب د امام اعظمؒ دی. او ابویوسفؒ او محمدؒ وائی چی د مخه تر خطبی شروع کولو خبری پروا نه لري، او چی د منبره راکښته سو د الله اکبر وئیلو د مخه هم خبری پروا نه لري، او نه بد خبری کوی په حدیث کی راغلی دی که چا خبری او ناورته وویل چی خبری مه کوه فقد لغوت، یعنی تا هم لغوه کار وکړی یعنی د خطبی په وخت کی دی خبری وکړی بلکه ته چی هغه منع کوی اشاره به ورته کوی یعنی په خولو لاس کښیږده،

**حکایت**: خلک وائی چی دری کسه په مسجد کی جلاجلا په لمانځه ولاړه وه. دیوه سړی د دغو درو څخه لوړ اغله. او خپل پلار ته ئی ناری کړه چی بابا خو ولاړی، بابا یې ورته وویل تیره سه زه په لمانځه ولاړیم، هغه بل سړی ورته وویل ملا دی ماته سه په لمانځه کی خبری کوی لمونځ دی فاسد سو. او هغه بل سړی یعنی دریم ورته وویل چی ستاسی خو د دواړو لمونځ فاسد سو شکر دی ما خو خبری نه دی کړي، مصنفؒ وائی او نه دی د چا د سلام جواب ورکوی، او نه دی ونږونکی ته یرحمک الله وائی، تر هغو چی امام د لمانځه څخه فارغ کیږی،

**مسئله**: که د سړی څخه لمونځونه ډیر قضا سوی وه یعنی ترتیب پر واجب نه وو نو د خطیب تر راوتو د مخه یو قضائی لمونځ یې شروع کړی وو نو بیا خطیب خطبه شروع کړه دی دی هغه قضائی لمونځ لپسی پوره کړی هیڅ کراهت نسته "
او کی نفل شروع کړي وه. نو دوه رکعت چی شفع ورته وائی پوره کړی او سلام دی وګرځوی او خطبی ته دی غوږ ونسی. او که دریم رکعت ته ولاړ سوی وو. نو چونکه دوهمه شفع هم پر ده لازم سوه نو هغه دی هم لپسی پوره کړی.

**مسئله**: که سړی پر سنتو ولاړ وو او امام خطبه شروع کړه لعض فقهاء وائی چی پر دوو رکعتو دی سلام وګرځوی. لکن صحیح هغه خبره ده چی بحر الرائق کی وائی چی سنت دی





پوره کړی. ولی دغه څلور سره رات لکه یو لمونځ دی. او په دی څخه کی وائی چی قرئت دی کوتاه کړی، یعنی په قدر د واجب د پاره داوریږد و د خطبی څخه هم واجب ده او تسبیح د رکوع او سجود او درود پر علیه الصلوٰة والسلام پر اخیره ناسته کی دی چړیږ دی ولی چی د اتولو خوسنت دی او استماع واجبه ده، وقیل لا یترك الصلوة علی النبی صلی الله علیه وسلم
خبری که دنیوی وی هغه خو اتفاقاً مکروه تحریمی دی او که اخروی وی امام اعظمؒ هغه هم مکروه تحریمی بولی

**مسئله**: صاحب البحر د نهایه څخه نقل کړی دی چی په حال کی د خطبی لکه خبری چی مکروه دی دغه رنګه تلاوت د قرآن کریم او لمونځ او تسبیح، خط نوشته کول وغیره الک، چی څخل داوریدو څخه د خطبی وی مکروه دی بلکه واجبه ده چی غوږ ونسی که د خطبی په معنا پوهیږی او که نه. ساکت دی کښینی

**پوهسه**: چی راهدیؒ او خلاصه والاخیره ډیره سخته کړیده چی وائی کل ما حرم فی الصلوة حرم حال الخطبة یعنی خوړل او څښل او شاوخوا کتل، او بیا رنګونه جګ ونسی او لاسونه پر او وګرځوی، الی غیره الک"

**مسئله**: امام طحطاویؒ د سید شارح څخه داسی نقل کړی دی چی لکه اوریدل د خطبی د جمعی سړی باندی واجب دی دا غه رنګه د خطبة النکاح اوریده هم واجب ده

**مسئله**: بعض فقهاء وائی چی د جمعی د خطبی په وخت کی سړی دی ډیر لیری کښینی تا چه مدحه د ظالمانو پادشاهانو چی خطیب یې کوی وا نه وري، لکن صحیح دا ده چی افضل دا ده چی امام ته نږدی کښینی او په صف اولی کی دی کښینی او خولك دی نه آزاره وی"

**مسئله**: که امام امر وکړی په درود وئیلو یعنی هغه آیت یې وواېه: یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَیْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِیْمًا نو مقتدیان دی درود ووائی کرار چی څخپل ځان یې واوری. او په حسامی کی وائی چی تلفظ دی نه کوی بلکه په زړه کی دی درود ووائی. او فتح القدیر د امام ابویوسفؒ څخه هم دا نقل کړی دی چی په زړه کی دی ووائی. ولی چی داخلل و استماع ته د خطبی نه سوی. نو دوه فضیلته به پر ځای سی چی استماع د خطبی دی، او امتثال د امر قرآنی دی"
وهو الاصح هذا فی الطحطاوی مع زیادة " در

قال المصنف: **وَكُرِهَ لِحَاضِرِ الْخُطْبَةِ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ وَالْعَبَثُ**

اومکروه دی، وهغه چاته چې په خطبه کې حاضروي خوړل او څښل او عبث کارکول او شا وخوا

**وَالْاِلْتِفَاتُ وَلَا يُسَلِّمُ الْخَطِيْبُ عَلَى الْقَوْمِ اِذَا اسْتَوٰى عَلَى الْمِنْبَرِ**

اوخطیب چې پر منبر کښېني او خلګو ته دی السلام علیکم نه وائي ولې چې دا بدعت دی په خیر القرون کې نه وو. قال المصنف في المراقي: والمروى من سلامه صلى الله عليه وسلم عندنا غير مقبول: یعنې چې د علیه الصلوة والسلام څخه په یو حدیث کې نقل راغلی دی چې علیه الصلوة والسلام چې به پر منبر کښېنستی خلګو ته بی سلام وایه هغه حدیث مقبول نه دی، ولې چې بیهقي وائي چې دغه حدیث قوي نه دئ،" ط، او دغه رنګه چې حدادي او بعض مشائخ وائي چې سلام دی خطیب وائي هغه هم په مذهب کې ضعیف ده،" والله اعلم بالصواب

قال المصنف: **وَكُرِهَ الْخُرُوْجُ بَعْدَ النِّدَاءِ مَا لَمْ يُصَلِّ** اومکروه دی وتل یعنې د ښار څخه او کراهت هم تحریمي دی لکن هغه چاته چې د جمعې لمونځ پر فرض وي او هغه سړي ته چې د جمعې لمونځ پر فرض نه وي هغه ته هیڅ کراهت نشته. و روسته تر اذان یعنې اذان اول او بعض وائي چې اذان ثاني، تر هغو چې د جمعې لمونځ په نه وي کړي على الصحيح كما في شرح منية المصلي، ولې چې دغه سړي ته امر دهٔ "فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ" شامل سو د مخه تر وتو. او که سړي د مخه تر زوال د ښار ووزي نو بیا کراهت نشته.

**مسئله**: که مسافر ښار ته داخل سو او ده ۱۵ ورځو د اقامت نیت یې نه وو کړي پر هغه د جمعې لمونځ فرض نه دی که څه هم دا قصد یې کړي وي چې زه به د جمعې په ورځ په ښار پر ښار کې یم، او که سړي د ښار د قریو څخه راغلی وي نو دی لکه د ښار سړي د رسی ګرځي. یعنې که د مخه تر زوال قصد د وتو د ښار څخه وو او ونی نو لمونځ د جمعې نشته بانديٰ یعنې غاړې یې نه دی بندی او که د فروی نیت خو د وتو وو قبل الزوال لکن دی ونه وتی او وخت د جمعې د





لمانځه پر راغلی یعنې بعد الزوال جمعه پر لازم ده کذا في الخلاصة،" ط، او قاضیخان فقط دا خبره کړیده که د فروی نیت د وتو وو قبل الوقت یا بعد الوقت د جمعې لمونځ نه دی پر لازم او کې دغو ورځ د جمعې د تېریدو په ښار کې وو بیا نو دی حکم د اصلي ښار لري،" قال المصنف:

**وَمَنْ لَا جُمُعَةَ عَلَيْهِ اِنْ اَدَّاهَا جَازَ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ**

او هغه څوک چې پر هغه د جمعې لمونځ فرض نه وي لکه مریض مسافر مریي، ښځه، ړوند، شل، که چیری د جمعې لمونځ وکړي روا دی د فرض الوقت څخه یعنې د ماپښین د لمانځه څخه، ولې چې شرع شریفې چې دوی مکلف د جمعې په لمانځه نه وه ګرځولي د پاره د تخفیف د دوئ څخه په سبب د دوئ د عذر، و نو ده چې تکلیف وکړي او سره د عذره د جمعې لمانځه ته راغی نو ځما د ماپښین د لمانځه په ځای کې د رېږي،"

**نکته**: د فرض الوقت څخه دا معلومیږي چې فرض الوقت د معذور او غیر معذور د پاره د ماپښین لمونځ دی. لکن غیر معذور مکلف دی چې دا فرض الوقت به د جمعې که لمانځه ساقطه وي او معذور اختیار لري که فرض الوقت یعنې د ماپښین لمونځ کوي او که په جمعه یې ساقط وي، **خیال فاسد** د بعض خلګو دا خیال دی چې د جمعې لمونځ بدل دی د ماپښین د لمانځه څخه. لکن دا خیال غلط دی، ولې چې بدل په اصطلاح د شرع هغه عمل ته وائي چې اصل عمل متعذر سي نو بدل نه تګ کیږي. لکه چې تیمم د اودا سره بدل دی د جمعې لمونځ خو داغسي نه دی ولې چې د ماپښین لمونځ کول خو متعذر نه دی،" او نه ظهر د معذور بدل د جمعې د لمانځه دی. ولې ظهر خو فرض الوقت دی لکه صحیح خبره دا ده چې جمعې لمونځ فرض مستقل دی په دغه ورځ اما فرض الوقت په ساقطیږي،" قال المصنف:

**وَمَنْ لَا عُذْرَ لَهٗ لَوْ صَلَّى الظُّهْرَ قَبْلَهَا حَرُمَ** او هغه چاته چې عذر مانع د حضور څخه د جمعې نه وي، کې د ماپښین لمونځ د مخه تر جمعې وکړي نو دغه کار حرام دی،"

یعنې د ماپښین د لمانځه تحریمه خو به صحیح ده، ولې اصل وقت چې د ماپښین دی په حق د ټولو هغه موجود دی لکن چونکه غیر معذور مامور دی په کولو د جمعې د لمانځه نو ځکه ده ظهر اداء به حرام ده»، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## فَإِنْ سَعَى إِلَيْهَا وَالْإِمَامُ فِيهَا بَطَلَ ظُهْرُهُ وَإِنْ لَمْ يُدْرِكْهَا

«که دغه غیر معذور چې د ماپښین لمونځ یې کړی وو کې د جامع مسجد په خوا روان شو د پاره د جمعې د لمانځه او حال دا وو چې په دغه وخت کې چې دی روان شو امام د جمعې په لمانځه ولاړ وو. نو د دې سړي د ماپښین لمونځ باطل شو که څه هم د امام سره د جمعې لمونځ ونه مومي، لکن د بطلان معنا دا ده چې وصف د فرضیت یې باطل شو یعنې نفل شوله»

**فائده:** مصنفؒ لفظ د سعي ووایه ولې که دغه غیر معذور به جامع مسجد کې د ماپښین لمونځ یوازې وکړي هغه د ماپښین لمونځ به یې ترهغو نه باطلیږي چې د امام سره د جمعې په لمانځه کې داخل نه شي، نو که دی داغسې ورته ناست وو د جمعې لمونځ امام وکړي نو د ده د ماپښین لمونځ خو صحیح شو لکن ګناه کار به دی. په سبب د عدم رغبت و لمانځه ته د جمعې **فائده:** مصنفؒ لفظ د إِلَيْهَا ووایه اشاره ورته وکړه که دغه سړي چې د ماپښین لمونځ یې وکړي به په یو بل کار پسې د کوره ووځي ظهر یې نه باطلیږي که څه هم د جامع مسجد د څنګه سره تیر شي، او بعض فقهاء وائي چې دغه سړي یعنې چې د ماپښین لمونځ یې یوازې وکړي د وه ګامه په فراخه ځای کې په نیت د جمعې د لمانځه واخلي ظهر یې باطل شو،

**مسئله:** که دغه سړي ورته د جمعې د لمانځه د فراغت سره یوځای وو نو ظهر یې نه دی باطل لکه چې وروسته تر فراغ د جمعې د لمانځه دی ور روان وي یعنې ظهر یې نه دی باطل، او که چې دی ور روان شوی دی هنوز امام په لمانځه شروع نه وه کړی هم یې ظهر صحیح شو، او دا ټوله بیان پر مذهب د امام اعظمؒ مبنی وو، او یارانؒ وائي چې سعي و جمعې ته خو تر ماپښین که ده نو د ماپښین لمونځ نه یې باطلیږي او خودې د جمعې لمونځ خو ترماپښین تر لمانځه بالاد نو ځکه په جمعه ظهر باطلیږي، او امام اعظمؒ وائي چې سعي د خواصو څخه د جمعې ده نو حکم د جمعې





د جمعې لري او ظهر یې به باطلیږي»، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَكُرِهَ لِلْمَعْذُورِ وَالْمَسْجُونِ أَدَاءُ الظُّهْرِ بِجَمَاعَةٍ فِي الْمِصْرِ يَوْمَهَا

«او مکروه ده معذور سړي لره لکه مریض او مسافر او مریي او دا غسې نګه بندي لره چې د ماپښین لمونځ په جماعت کوي په ښار کې په ورځ د جمعې» بلکه مراقي وائي چې مستحب دا ده چې دغه کسان دې انفرادي لمونځ لا تر جمعې تر لمانځه وځنډوي، ولې چې صحیح مذهب دا دی چې مکروه دی منفرداً لمونځ قبل صلوة الجمعة»، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَمَنْ أَدْرَكَهَا فِي التَّشَهُّدِ أَوْ سُجُودِ السَّهْوِ أَتَمَّ الْجُمُعَةَ وَاللهُ أَعْلَمُ

«او که څوک ورسیدی د جمعې لمانځه ته د التحیات په وخت کې او یا د سجدة سهوه په وخت کې نو د جمعې لمونځ دې پسې پوره کړي، او خدائ تر ټولو ښه خبر دی، **سوال:** د سجدة سهوې څخه خو دا معلومه شوه چې د جمعې په لمانځه کې چې امام سهوه شي سجده سهوه به کوي، وهو خلاف المختار، امام طحطاویؒ د دې سوال په **جواب** کې وائي چې مختار عدم وجوب د سجدة السهو في صلوة الجمعة وكذا في صلوة العيدين» تا چې خلک په اضطراب او حیرة او فتنه کې واقع نه شي، دا نه مختار چې ګرسره سجدة سهوه نه ده روا»

**پُوهسه:** چې مذکور په متن کې مذهب دی د شیخینؒ او امام محمدؒ وائي که سړی امام ته داسې وخت ور سیدی چې د دوهم رکعت رکوع یې ورسره ونیوله نو د جمعې لمونځ دې پوره کړي او که امام سره د دوهم رکعت د رکوع څخه سر اپورته کړی وو - او دی ور شریک شو، نو د ماپښین لمونځ دې پر بناء کړي. او د اختر لمانځه ته هر وخت چې ور ورسیږي او د امام سره شریک شي ده اختر لمونځ به پوره کوي» ولې چې د اختر لمونځ څو عوض نه لري چې هغه پوره کړي» «د ر»

**تتمه:** په حدیث شریف کې راغلي دي: مَنْ تَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ اتَّخَذَ جِسْرًا إِلَى جَهَنَّمَ» که چا ګام اړاوه پر غاړو د خلکو نو دی به وګرځول شي پل د دوزخ ته»

قال الفقيه ابوجعفر الطحاوی: لَا بأسَ بالتخطی ما لم يخرج الامام او يؤذی احدًا، يعنی گام اړول تر خلکو پر واه نه لری تر هغه وخته چې امام خطبې ته نه وی راوتلی او يا څوك ځندی نه هيږ نه سی. حاصل دا چې تخطی په دوه شرطه روا ده يو عدم ايذاء د چا ده، ولی چې ذهيره وَل د مسلمان حرام دی او بل عدم خروج دامام، ولی چې تخطی خو عمل دی، او په وخت کی د خطبې هر عمل چې چاره ځندی کيږی حرام دی» لعض صوفيان په دی نيت چې امام ته نژدی ناسته ثواب لري، خلک ازاره وی او د هغو تر اوږو او غاړو گامونه اړوی دا سخته گناه ده بلکه دسري ثواب دا دی چې هغه ځای دی کښينی چې ځای وی، وعن ابن عمرؓ ده وويل چې آنحضرت صلی الله عليه وسلم وويل چې د جمعې لمانځه ته دری قسمه خلک راځی. يو هغه نفر دی چې د جمعې لمانځ ته راسی او لغوه کارونه کوی مثلًا د خطبې په وخت کی خبری کوی يا د خلکو پر غاړو گامونه پورته کوی وامثال ذالك،

نو عليه الصلوة والسلام وائی چې د غه لغوه د ده برخه د جمعې په لمانځه کی، او بل دا سی سړی دی چې دعاگانی کوی يعنی پسله راوتلو د امام، نو عليه السلام وائی چې دا خو دا سی سړی دی چې د خدای عَزوجلّ څخه غوښتنې وکړی. نو هغه د خدای خو ښه ده کی سؤال قبلوی او که نه، دریم دا سی نفر دی چې د جمعې لمانځ ته راسی په پښه خوله او انصات سره او د چا تر غاړي گام نه واړوی او څوك هم ازار نه کی نو د هغه نفر د پاره دا د جمعې لمونځ کفاره د گنهو ده تر بلی جمعې پوری او دری ورځی هم بالا، ولی چې خدای پاك وائی: مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا،

درويش وائی چې په يو بل صحيح حديث کی دا سی راغلی دی چې دری کسه د خدای پاك د عذاب څخه د قبر ساتی، اَلْمُؤَذِّنُ: اذان کوونکی، او بل شهيد سړی، والمتوفی ليلة الجمعة» او بل هغه سړی چې په شپه د جمعې وفات سی. او لعض شارحين د حديثو وائی چې دا هغه مؤذن دی چې په تنخواه اذان نه کوی بلکه د پاره د ثواب اذان کوي. لکن ظاهر دی حديث عام دی که په تنخواه اذان کوی او که د پاره د ثواب» البته د پاره د ثواب اذان کول ډیر ښه کار دی او د شهيد د لفظ څخه ظاهرًا عام مراد دی که په معرکه کی د کفارو شهيد سی او کی ناحقه يو څوك





مړ کی. او متوفی ليلة الجمعة» که څه هم په حديث مذکور کی شپه راغلی ده لکن په اجماع سره د متوفی يوم الجمعة هم دا غه حکم دی»

درويش وائی: چې د مناقشا تو څخه خلاصه خبره دا ده چې د متوفی ليلة الجمعة او يوم الجمعة ته يو ساعت عذاب او ضغطه سته او بيا قطع کيږی او تر قيامت نه راگرځی اللهم اجعلني منهم بحرمة النبی عليه الصلوة والسلام» درويش وائی چې دا يو څو مسئلی په مناسبت د تنظيف د ورځې د جمعې په ډیرا ختصار سره او پر صحيح وجه خپلو ښتو وروڼو ته حسبةً لله وړاندی کيږی او تفصيل په شرح کی د امام طحطاویؒ مطالعه کړي. او هُوری چون وچرا ډیری وی وينی، يو د هغو څخه پری کول د نوکانو دی، په حديث شريف کی چې عائشه رضی الله تعالیٰ عنها يه روايت داسی راغلی دی چې حديث هم مرفوع دی: مَنْ قَلَّمَ أَظَافِيرَهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اعاذه الله من البلاء الی الجمعة الاخری وزيادة ثلثة ايام» که چا پری کړه نوکان يعنی د لاسو گوتو او د پښو د گوتو په ورځ د جمعې يعنی قبل صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ» خدای به دی وساتی د بلاء څخه تر بلی جمعې پوری او دری ورځی هم بالا، او امام ثوریؒ پری کول د نوکانو په ورځ د ه شنبې مستحب بولي، او لعض علماء وائی چې دا سبب د غنی دی» لکن احاديث د ورځې د جمعې ډیر دی، نو قول د ثوری معارض د هغو نه سی گرځيد لای» ط»

**مسئله**: د سړی نوکان د گوتو تر سرو تيروی مکروه دی. او علماء وائی چې د چا چې نوکان ډير اوږده وی نو رزق بی تنگ وي، نو اول بايد سړي يا ښځه په هفته کی په ورځ د جمعې نوکان پری کړي. او بيا نو ه ا ورځی فصل ورکړی افضل دی. او زائد تر څلویښت ورځی پر يښول گناه ده»

**زمانه د ښځو پر نقشه** په اوسنی زمانه پيشنيا د ښځی نوکان د گوتو د و نه اوږده ساتی چې په قدر د منگکی د چرگ وي، او هغه نوکان پر هم به هغه رنگ چې ده خارجراځی وهلی وی چې هغه نوکه ته يو بن ور کوی. نو د غی ښځی په سبب د د غه رنگه غسل او او دس نه دی صحيح او ميره يامور او پلار يه هم وينی، او بل پيښی ښځی قميصان د ونه تنگ جوړوی او بار چاك يه تر سرو زنی پوری وي

نوچې داکښېنی دکناتو نقشه یه ښه ښکښی معلومېږی، اومېږه یا مور او پلار یه هم وینی. او پېښنی پر توک په اوسنی زمانه کی دوښه تنګ او ترش وی چی ښځه ز نګنونه څکونی دکښ نقشه یه دوه ایه معلومېږی. اومېږه یا مور او پلار یه هم وینی، او پېښېنی ښځې د نخ دخواغا ښونه د لوړې زامی چی په خبرو کی معلومېږی دسرو ززرو پوښونه ورکوی. اومېږه یا مور او پلار یه وینی، خیر داخبری پای نه لری دا ټوله کارونه دکافرانو څخه زده سوی دی آنچه مردم میکند بوزینه هم ؛ مَتَل دی مَشهور، او ښځې دی زما څخه نه ناراضه کېږی، ولی په اسلامی دعوت کی د چادر ضا پروا نسته،

درویش وایئ: چی دنوکانو په پری کولو کی قِسم قِسم کیفیتونه په کتابو کی راغلی دی، لکن هغه کیفیت چی په صحت کی هیڅ شک نسته هغه دادی چی د راسته لاس اود راسته ښی نوکان دی د مخه ترچپه لاس او چپی ښی پری کوی لما ورد فی الحدیث المتفق علیه یعنی د علیه الصلوٰة والسلام خوښ وو په راسته خوا شروع کول په اوداسه اودسر یا ږیری په ږمنځولو کی او په هرشان کی، اود لاسو نوکان دی تر ښپو دی د مخه پری کوی قیاسًا علی الوضوء»

**مسئله** دنوکانو پری کول په چاقو په غاښ په ناخون ګیر ټوله روا دی او هیڅ حرج په کښی نسته، البته په غاښو په پری کول مکروه دی ط منت۲۳ ولی دغا ښو په پری کولو کی د فیس او لیونتوب بیره ستته **مسئله**: چی سړی جنب وی دمخه ترغسل نوکان پری کول او یا سرخریل وغیره مکروه دی» لما روی خالد مرفوعًا، چی که څوک یعنی جنب سړی وخرئ دمخه ترغسل هر ویښته به په ورځ دقیامت په دربار کی د رب العزت داسی عرض وکړی: یارَبّ سله لِمَ ضیعنی ولم یغسلنی» والظفر قیاس علی الشعر» والحدیث مروی فی شرح شرعة الاسلام عن مجمع الفتاوٰی ،،

**حکمت**: حکمت په پری کولو کی دنوکانو دادی چی که نوکان ډیر غټ سی نو په مابین کی دګوتو اود نوک خیره پیدا سی چی هغه خیره طبعًا بده معلومېږی، او ګاهی داخیره دو نه کلکه سی چی اوبه نه ور رسېږی وهغه ځای ته چی پریوَلِ یه فرض دی یعنی دګوتی سرتر نوکه لاندی، نو سړی باید په پریکولو کی دنوکانو ډیره مبالغه وکړی. تر هغه چی دګوتی تا وان نه وی کذا فی فتح الباری»





**فائده**: دسرخریل هم سنت دی او هم څوړی پریښول دسنت سره برابر دواړه فعل دعلیه الصلوٰة والسلام قولًا وفعلًا ثابت دی، امام فقیه ابوجعفر الطحاویؒ وائی چی دسرخریل زمونږ دائمه ثلثهؒ وو په نیز سُنت دی..
چی دسرخریل زمونږ دائمه ثلثهؒ وو په نیز سُنت دی.. بلکه اصل مذهب درویش وائی چی حلق الرأس مطلقًا سنت ګڼل خلاف دی دمامتنو څخه زمونږ داحنافوؒ دادی کما نقله الامام الطحطاوی عن الروضة چی سُنت په ویښتانو کی دسر یا ترک الکل مع التفریق فیما بین الرأس ان قدر علی حفاظة الشعر، په غوړو لوسره او پریوو سره او پر منځولو سره» واما حلق الکل ان اراد التنظیف ولم یقدر علی حفاظة الشعر کما مر» واما التفریق علی غیر وسط الرأس کما یفعله اتباع الافرنج فمکروه وایضا خریل د بعض ویښتانو دسر او پریښول دبعض مکروه دی» لما فی ابوداؤد والنسائی . عن ابن عمرؓ ان رسول الله صلی الله علیه وسلم رأی رجلا حلق بعض رأسه وترک بعضه فقال صلی الله علیه وسلم احلقوه اواترکوه کله» او شرح دنقایه وائی چی یوازی د څټ خریل مکروه دی لکه بعض طالبان یانور چی کوی البته کی سر ټوله خرایه نو څټ دی هم ور سره وخروی. وهذا هو المذهب المنقول فی صحاح کتب المذهب الحنیفی»

**دبریتو په باره کی مسئله** پوه سه: چی دبریتو خریل په چاره په نیزد بعض علماوو مکروه دی بلکه بدعت دی» لکن په دی کی اختلاف دی چی اِحفاء دبریتو مستحب ده» اِحفاء معنا داده چی پر بیخ یه ودروی لکن په غچی او یا په مشین دحمامیانو» فقیه ابوجعفر الطحاویؒ وائی چی احفاء مستحبه ده» ولی چی په حدیث کی لفظ داحفاء راغلی دی، او په شرح کی د شرعة الاسلام دامام اعظمؒ په نقل سره وائی چی احفاء وحلق ته نزدی ده. او په خانیه کی وائیؒ چی بریتونه دی داسی پری کی چی طرف د لوړی شونډی ښکاره سی، او هغه ته نزدی یعنی دخولی دکنجانو ویښتان دی هم پری کی، او د لوړی خوا دی بعض ویښتان چی بی د ر که ولاړوی پری کی تا چه بریتونه یه تله ورځ وګرځی ابن حجرؒ په فتح الباری شرح البخاری کی وائی: هذا اعدل ماوقفت علیه من الاثار» او د غه مشروع دی پری کول دما تهو دبریتو چی په عربی یه سباله بُولی. ولی چی دبریتو په ځم کی دی

كما في فتح الباري ، او دلا ندی شوندی و ویښتان دی ده ونه قطع کړی چې صرف شونډه په ښکاره سی او دوډی خوړلو په وخت کی ویښتان د ګولی سره په خوله نه ننوزي او زموږ مشائخ وائی چې مجاهد ته اجازه ده چې غټ غټ بریتونه ولری لانه اهيب في عين العدو يعنی د غټو بریتو هیبت د دشمن په زړه کی ډیر پیدا کیږی ،

# د ږیری په باب کی تحقیق

**پُوه سه**: چې د ږیری پریښودل سنت مؤکد دی ، او بعض علماء وائی چې ږیره پریښودل واجب دی امام محمد د حضرت الامام اعظم رحمه الله داسی نقل کړی دی ،" چې سنت په ږیره کی دا دی چې دده ترقبضی یعنی موټه بالا دې پرې کوی هم د طول د خوا هم ده یسار د خوا تا چې ږیره یو رنګه وګرځیده د ټولو طرفو رحمه الله " قال الامام محمد وبه نأخذ " كذا في محيط الامام السرخسي لان الاعتدال محبوبٌ " او بیخی ډیره اوږده ږیره یعنی بیخی اوږد وَل د خلقت انسانی بد خوندی ده ، او خلک پسخند هم په وهی . بعض وائی درغلی لوی ږیری . بعض به وائی : خونه اوږده ږیره یه ده لکه ثوابی جاروه " وامثال ذالك ، او طبرانی د عمر رحمه الله روایت دی چې ده یو ډیر لوی ږیری سړی ولیدی نو ږیره یه ور قبضه کړه او بالا بود یه غنډی پری کی " او بیا عمر رضی الله وهغه ته وویل : يترك احدكم نفسه حتى يكون كانه سبع من السباع "

**مسئله** : په خلاصه کی وائی چې امام اعظم مکروه نه ګڼړلی کښل د سپین ویښته د ږیری رحمه الله مګر که د تزئین دپاره وه بیا مکروه دی " لکن داهلته مکروه نه دی چې څو محدود ویښتان وي ، او که ډیر وه بیا یه کښل مکروه دی " لحديث رواه ابوداؤد : لَا تَنْتِفُوا الشَّيْبَ فانه نور المسلم يَوْمَ القِيَامَةِ " په محيط کی وائی چې ویښتان د حلق دی هم نه خرئي ، او ورځو یاد رحمه الله بیدر که ویښتان پری کول پروانه لري " **مسئله** د ږیری توره ول په هغو رنګو چې د خارجه راځي او یا په پاکستان کی جوړیږي .





# د ږیری توروَلو مسَائِل

په هغو رنګو چې د خارجه راځي او یا په پاکستان کی جوړیږي حق چې تازه په رنګ کی نودا سی بریښی لکه د کوتری غاړه هغه خو مکروه دی جدا کما صرح به الفقهاءُ او په نکروزو او یا وُسمه په رنګول سنه کار دی ،

**حَلقُ العَانة** ، یعنی زیر ناف خرئیل **پوه سه** چې سُنت په حلق عانه کی خرئیل دی د سر په چاړه یاد مشین په چاړه . لکن اصل مقصود چې پاک کول د دغه ځای دی هر منیل دو ویښتا نو چې پاکی په حاصلیږی لکه موی پاک ، په اوس زمانه کی یا نوره په بخوا زمانه کی ، په حدیث شریف کی لفظ د حلق راغلی دی هغه بناء پراغلب دی . او نوره بخه په دی حکم کی سره برابر دی . لکن امام نواوی وائی چې اولی په حق کی د نر حلق دی . او په حق کی د ښځی نتف دی یعنی په نوکانو یا په نوسی کښنګ دی ، ولی ښځه که د زیر ناف ویښتان په خرئیلو اموخته کړی نو ویښتان و ځځ په ورځ پیدا کیږی او بد بوئی نه یا تیزی او نر چی راپوره سی په نر جګیږی او جماع یه بدخو نده کیږی .

**عانه کوم ځای بولی**: د نر خو پر ذکر او پر شاو خوا لاندی پر ختو او پر بغلو او لور تر ځایه پوری چې وه . او د ښځی دا هم پر فرج او شا و خوا و ویښتا نو ته وائی . او تر هغه ځایه چې سړی ته ممکنه وی د کُنی د خوا و ویښتا ن دی هم خرئي تا چې نجاست پوری ونه نښلی . نو چې په لُټو استنجاء وهي . شاید هغه نجاست به پاته سی ، په خانیه کی وائی چې پری کړی نوکان یا خرئيلی ویښتا دسر اولی دا ده چې دفن یه کی . او کی وغورځوی پروا نه لري . لکن په غسل خانه کی او یا د غولو په مکان دی نه اچوي ، او ویښتا ن د زیر ناف دی خوا مخواه پټوی ، ولی چې دا مسئله ده چې هغه شی چې په انسان پوری وی د ها کاته ورته نا رواوی ، نو چې د انسانه جلا وي هم کاته ورته ناروادي ، ترمذی د سید تنا عائشه رضی الله تعالی عنها رحمه الله داسی روایت کړی دی چې عليه الصلوة والسلام د دی خوشیانو په دفن سره امر کاوه " د و ویښتا نو ، د هر ځای چې وی . او د پری کړو نوکانو ، او هغه ټکره چې ښځه یه په وخت کی د حیض استعمالوي ، او غابښونه چې وغیږي او د کچنی دسنتی پوستکی . او د هغه ټکره چې د انسانه رحمه الله وینه ، او یا نور او وزی په پاکی کړي او غالبا دا امر به استحبابی وي ، والله اعلم بالصواب ؛

# بَابُ الْعِيْدَيْنِ

یعنی داباب کی په بیان کی داحکامو داخترو من الصلوٰة وغیرها۔

**شِکَایَتْ** بعض ناپوه کسان، او حاسدان، وائی چی عبید الله دکتابو په حاشیو کی، او یا په ترجمه سوو کتابو کی د نورو کتابو څخه نقل کوی او عربی کتابونه و پښتو ته اړه وی. یعنی داخبری پرما باندی د تنقید په ډول کوی. زه وایم چی بناء د دین اسلامی پر نقل ده مِن لَدن النبی صلی الله علیه وسلم الی یومنا هذا» بلکه قرآن کریم په نقل متواتر سره تر مونږه پوری رارسیدلی دی» او عربی کتابونه چی زه پښتونه ته نقل کوم یا می نقل کړیدی زما سره د پښتون اولس غمر اس وی، او زه داغواړم چی هر سړی او ښځه چی پښتو خط ویلای سی په خپل کور کی د دین اسلامی عقائد او احکام زده کړی. او داسی غونډی ناپوهانو د پښتنو ضرورت نسی ورته پاته «

او ته داغواړی چی عوام دی زما احترام کوی او په هره خبره کی زما څخه پوښتنه کوی زه به یاد واغ یا رشتیا ورته وایم ۔ نو زه وایم چی زما او ستا فرق سته. نه جاه طلبه یم او مخدومیت تا ترخوند درکوی» زه دچا څخه عزت نه غواړم، او د قوم د خدمت سره محبت لرم» وَلِلنَّاسِ فِيمَا يَعْشَقُوْنَ مَذَاهِبُ» زه غواړم چی د ښځو و ځیو تنکی ځوانان د اسلام او د اهل سنت والجماعة عقائد و خبر وم، او په مسائلو د مذهب حنیفی یه آگاه کړم چی په اوسنی زمانه کی گمراه کوونکی خلک په عوض کی د پیسو په جامعه کی پریدی» ته غواړی چی افغانان دی ساده لوحه وی» تا چی په هر دین او مذهب پسی چی روانیږی روان دی ته وایه چی نور علماء ولی دا کار نه کوی، جواب چی ځینو جهی کیدای سی، یا بی خط نه وی زده او یا به د قوم د خدمت کولو سره محبت نه لري، او یا به دومره تکلیف پر ځان نسی ولارای» ای حاسده ځان پوه کړه چی په دنیا کی هر څو اقوام چی دی علماء د هغو خدمت کړی دی او دین یه په خپلمو ژبه ورته بیان کړی دی»





او عوام او خواص د هغو علماوو شکر وائی او دعا ورته کوی، اِلّا پښتانه چی هغه د غسی علماوو پسی ځای کی د دعا عیب یه وائی» او غیبت یه کوی، او د الزام ورته وائی چی پښتو کتاب د اعتبار ولړنه دی مه ئی مطالعه کوی، چی دین ته تاوان رسوی، ای افسوس ستا پر حال د اپښتو کتابونه خو د عربی کتابو ترجمه ده ۔ نو که د اپښتو کتابونه د اعتبار وړنه دی نو هغه عربی کتابونه چی د اپښتو کتابونه د هغو مکمله ترجمه ده. ولی د اعتبار وړدي!

او ستا ترخولی چی را اوزی هغه به هم پښتو وی او که به جواهرات وی سه بیت

چشم بداندیش که برکنده باد ؛ عیب نماید هنرش درنظر» درویش وائی چی جاهله ته فکر وکړه چی د عید لفظی او معنوی تحقیق چی زه ئی درته وکړم، دا په در مختار، رد محتار، مَراقی الفلاح، طحطاوی بحر رائق، او هدایه او په شروحو کی د هغی موجود دي. او ټول متحد الّ ل مضمون دی او هم په عربی ژبه دی. نو مصنفین د دغو نامورو کتابو یو تر بل د څخه په زمانه کی وه نو خود متاخر د متقدم څخه نقل کړی دی نو ستا په عقیده خو دا نقل عیب دی او ته ئی عیب نه بولي. او زه تر پردی کتابو په سبب د نقل مذکور تنقید کوی. نو زه چی د عربی څخه د پښتو و مورنی ژبې ته را نقل کوم. ولی عیب بولي، والباعث علیٰ هذا لیس الا الحسد»

درویش وائی چی اوس نو واوره هغه مضمون متی. المآل د مذکوره کتابو په پښتو با ندې

**فَائِدَه**؛ د جمعی او عیدینو ترمابین چونکه مناسبت وو چی هغه شراکت د هغو د لمونځو دی په ادا بو کی او په شرطو کی مگر خطبه چی د جمعی خطبه د مخه ده او د اخترو خطبه وروسته ده

**فَائِدَه**: د جمعی ورځی ته هم عید وائی کما قال علیه الصلوٰة والسلام لکل مؤمن فی کل شهر اربعة اعیاد اوخمسة اعیاد ،، او جمعه یه تر عید د مخه کړه ولی چی د جمعی لمونځ فرض دی.

**فَائِدَه**: اصل د عید عُوْدٌ دی و او ساکن ماقبل مکسور نو واو یه په یاء سره بدل کړی کما هو القانون الصرفی۔

**فَائِدَه**: په بحر رائق کی وائی چی د دوو اخترو لمونځونه په اول کال کی د هجرت نبوی مشروع سوی دی. قال انس چی څه وخت چی علیه الصلوٰة والسلام هجرت وکړی و مدینی ته نو مدینی والو وخت څخه دوی ورځی د لودی چی په هغو دوو ورځو کی به دوی خوشالی کولی او ساتونه به ئی تیرول. یعنی د نوروز

په ورځ چې اوله د حمل ده. او مهرجان په ورځ چې اوله د جدی ده، چې دا اصلاً د آتش پرستانو ورځې وې، نو علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته وویل چې دا څرنګه دوی ورځې دی» انصارو ورته وویل چې دا دوی ورځې مونږ په جاهلیت کې لمانځلې. نو علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته وویل چې خدای پاک د دی دوو ورځو په بدل کې تاسی ته دوی ورځې درکړی دی چې هغه خیر دی ستاسی تر ښځوانیو ورځو، یوم الاضحٰی ویوم الفطر» **فائده** اختر ته چې عید وائی د دی سببه چې د خدای پاک د نعمتونو اګر څیده سته پر بندګانو هم دینی او هم دنیوی، او عید هم ر اګرځید وته وائی» **فائده**: هره د خوشحالی ورځ عید بولی. کما قال الشاعر ـ عیدٌ وعیدٌ وعیدٌ صرن مجتمعةً ؞ وجه الحبیب ویوم العید والجمعة ؞ وقال الآخر بالنیم جیبی یا لجیبی ؞ ازین دو گر یکی بودی چه بودی ؞ وقال الآخر ـ سر مردمان عیداست و نوروز ؞ سر عاشقان دیدار یاران ؞ قال المصنفؒ

## صَلوٰةُ الْعِيْدِ وَاجِبَةٌ فِي الْاَصَحِّ

د اختر لمونځ واجب دی یعنی فرض نه دی لکه د جمعی لمونځ او تمیم په وجوب سره منقول ده د امام اعظمؒ په یوه روایت کې چې هغه یعنی وجوب په اصح دی روایت او درایت وبه قال الاکثرون، او امام محمدؒ چې په جامع صغیر کې سنت بولی د هغه معنا دا ده چې ثبوت یه په سنت نبویؐ سوی دی. ولې چې علیه الصلوٰة والسلام همیشه توب پر کړی وی بیله پریښولو هیڅ وخت» د هغه روایت د وجوب هو المختار کما فی الخلاصة» او امام محمد په مبسوط کی هم د غه روایت راوړی دی

**فائده**: لکه علیه الصلوٰة والسلام چې د اخترو پر لمونځو دوام کړی تر وخت د وفات د هغه رنګه خلفاء راشدینؓ هم همیشه توب پر کړی دی او ائمه مجتهدینؓ هم دوام پر کړی دی وهذا دلیل علی الوجوب من حیث الدرایة» او طحطاوی او فتح وائی چې په اشاره د قرآن کریم هم دا دوه لمونځونه ثابت دی، قال الله تعالیٰ: وَلِتُكَبِّرُوا اللهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ په دی اشاره د کوچنی اختر و لمانځه ته. فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ، په دی کی اشاره ده د لوی اختر و لمانځه ته. **فائده**: د جامع صغیر عبارت دا دی: عیدان اجتمعا فی یوم واحد فالاول سنة والثانی فریضة ولا یترك واحد منهما» درویش وائی چې دا عبارت لکه





تصریح په وجوب سره د اختر د لمانځه ولی دی وائی وَلَا يُتْرَكُ آه نو که سنت په مشهوره معنا وای نو ترك د عید ولی نا جائز وو، نو دمعلوم سوه چې سُنت په هغه معنا بولی چې د مخه تیره سوه، او یا مراد ده سنت نه سنت مؤکد دی چې هغه په حکم د واجب ده چې په ترك یه سړی ګناه کار کیږی کذا فی البحر» قال المصنفؒ:

## عَلٰى مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ الْجُمُعَةُ بِشَرَائِطِهَا

او د اختر لمونځ پر هغه چا واجب دی چې پر هغه جمعه واجب وی په ټولو شرطونو د جمعی د لمانځه یعنی هم شرائط د صحت او هم شرائط د وجوب د اختر د لمانځه هغه د جمعی د لمانځه شرائط دی چې د مخه تیر سوه » قال المصنفؒ:

## سِوَى الْخُطْبَةِ فَتَصِحُّ بِدُوْنِهَا مَعَ الْاِسَائَةِ

ماسوا د خطبی نه. نو د اخترو لمونځونه صحیح دی بیله خطبی لکن سره د ګناه ولې چې سنت یه پریښوده او مصنفؒ وویل ماسوا د خطبی نه ولې چې خطبه د اختر چونکه تر لمانځه وروسته ده نو شرط د صحت نه ده ولې چې شرط خو تر مشروط د مخه وی، بلکه خطبه د اختر سنت ده، قال

## كَمَا لَوْ قُدِّمَتِ الْخُطْبَةُ عَلٰى صَلوٰةِ الْعِيْدِ

لکه چې ګناه کار دی چې خطبه د اختر تر لمانځه د اختر د مخه ووائی. **فائده**: ابو موسی الضریرؒ وائی چې د اخترو لمونځ فرض کفائی دی کما شرح الزاهدیؒ وملامسکین وهو روایة من الامامؒ وایضاً وبه قال احمدؒ» درویش وائی چې په دی روایت کی که څه هم پر خلګو آسانی ده، ولې چې د اختر لمونځ په هر ښار کی خواه مخواه لبعض بلکه ډیر خلګ یه کوی نو چې فرض کفائی سی د ټولو غاړی خلاصی دی، لکن د غه روایت خلاف دی د ظاهر الروایة نه د امام اعظمؒ، قال المصنفؒ:

## وَنُدِبَ فِي الْفِطْرِ ثَلَاثَةَ عَشَرَ شَيْئًا اَنْ يَّاْكُلَ

او مستحب دی د کشنی اختر په ورځ دیارلس کارونه اول دا دی چې خوراك دی وکړی وروسته تر سپیده

د مخه د سحار تر لمانځه یعنې یو خوږ شی دی وخوري لکه، قند، بوره، پلمیټ، ګوړه وغیره

قال المصنف: **وَاَنْ يَّكُوْنَ الْمَاْكُوْلُ تَمْرًا وَّاَنْ يَّكُوْنَ وِتْرًا** اوبل دا مندوب دی چې خوراکی شی به خرمائی وي، او بل دا مندوب ده چې تاک دانې دی خوري. **پوهنه**: چې حکمت په دی تلوار کې دا دی چې امتثال دامر نبوي راسي. اوبل دا چې په منسوخ سره عمل رانسي، ولې چې په ابتداء کې دا سلام تر عیدګاه د مخه خوړلو نه ورو ثُمَّ نسخ. او کې تر لمانځه د مخه خوړلو نه کي نو و عیدګاه ته د تلو په وخت کې خوړلو وکړي نو ندب به پر ځای کیږي. او کې بیخي خوړل ونه کړي. امام حلبي وائي چې کراهت نشته،،

**پوهنه**: چې حکمت دخوارو شی په خوړلو کې دا دی. چې خوږ شی په اعماقو کې د بدن او په رګو کې تر حلول کوي. او سترګې چې روژې ضعیفه کړي به وي قوت ورکوي او هم نرم کوي. او د خرما خوړلو کې موجوده وه متابعت د قول او فعل د علیه الصلوٰة و السلام. او بل دا چې خدای پاک د خرما و درختی ته شجرهٔ طیبه ویلی ده، او بل دا چې خرما دانا لکه عمه ده. ولې په روح البیان کې وائي چې یو لږ ختمه چې د آدم علیه السلام د جوړولو نه پاتی سوه هغه ختمه په د خرما ماده وګرځوله، او د تاک خوړلو حکمت دا دی چې انه علیه الصلوٰة والسلام کان یحب الایتار فی جمیع اموره،، قال المصنف:

**وَيَغْتَسِلُ وَيَسْتَاكُ وَيَتَطَيَّبُ وَيَلْبَسُ اَحْسَنَ ثِيَابِهٖ**

او غسل دی وکړي او مسواک دې ووهي او خوشبوئي دی هم ولګوي او هغه جامې دې واغوندي چې ډېرې ښې وي، **پوهنه**: چې دا غسل د پاره د لمانځه دی په نیز د مصنف کما مر فی المراقي لکن امام سرخسيؒ وائي چې غسل دی وروسته تر سپیده کوي او که د مخه وکړي هم کافي دی. او دا غسل که لمانځه ته ځي او که نه ځي مندوب دی لانه یوم زینة، واجتماع بخلاف الجمعة، ولې جمعه د ورځي غسل پر هغه چا نشته چې لمانځه ته ځي سروجي وائي چې دا خبره صحیح ده وبه قالت الشافعیة والمالکیة،،





درویش وائي: چې د دی څخه دا معلوم سوه. چې د غسل د ورځي دا اختر د لمانځه د پاره نه دی بلکه د ورځي د پاره دی. او په کتاب الدرر کې هم وائي چې غسل د اختر د ورځي فقط د ورځي د پاره دی. او صاحب النهر وائي چې خوشالی ده ورځي د اختر عامه د نو بیا که هر قادر ته مندوب دی که د اختر لمونځ کوي او که نه کوي. او بعض فقهاء وائي چې دا غسل سنت دی،،

**مِسْوَاك** وهل خو په ټولو لمونځو کې مطلوب دی بلکه په ټولو احوالو کې نه یوازې علیه الاحادیث النبویة قولاً وفعلاً، او د خوشبوئی وهل په دې سبب مندوب دی چې په حدیث شریف کې راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم خوشبوئي لګوله په ورځ د اختر، او د ښو کالو څخه مراد دا دی چې نرته ئې استعمال روا وي. او دا مذهب یوازې د ننو د پاره دی،، او په حدیث کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام یوه چپنه د فنک د لوده چې د جمعي په ورځ او په اختر کې اغوستله، او په بل حدیث کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام به برده حمراء اغوستله په هر و اختر کې، د حمراء څخه مراد دا دی چې سرې او نور غوني لیکې په درلودې ولې چې د یک لخته سرې جامې اغوستل نر ته مکروه دی، او داسې جامې ته چې لیکې لیکې وي کعمیره وائي په پښتو به،، لکه د صدرې تهوکي،، قال المصنف:

**وَيُؤَدِّيْ صَدَقَةَ الْفِطْرِ اِنْ وَجَبَتْ عَلَيْهِ** او ورکړي دی سربایه یعنی و مسکینانو ته که چیرې صدقه الفطر پر ده واجبه وه. **پوهنه**: چې دا هغه وخت فیصل دی ور کولو د سرسائی،، ولذا امر النبي صلی الله علیه وسلم باداءها قبل خروج الناس الی المصلی یعنې د اختر لمانځه ته،، **فائده**. صدقة الفطر د مخه د اختر د ورځي هم روا ده چې د روژې په میاشت کې به وي، او د مخه د روژې د میاشتې اختلاف په کښې دی. او د مخه د عیدګاه تر لمانځه ورکړه یې مستحبه ده. او وروسته د عیدګاه تر لمانځه، **پوهنه** چې د صدقة الفطر مقدار،، او چې پر چا واجبه ده. او چاته به ئې ورکوي په تفصیل سره په باب صدقة الفطر کې به تفصیل سره راسي ان شاء الله تعالی،، [handwritten marginal note, partly illegible]

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِوَالِدَيْهِمَا

قال المصنفؒ **وَيُظْهِرُ الْبَشَاشَةَ وَكَثْرَةَ الصَّدَقَةِ حَسَبَ طَاقَتِهِ**

اوښکاره کوي دې سرې خوشحالي او ورین تندی یعنی په وخت کې د ملاقات د خلګو. او ډیر دې ورکوي خیرات یعنی نفلي پر اندازه د قدرت د ده، **پوهسه** چې په مراقي کې د مستحباتو څخه د دې ورځې ګڼتي په کول شمیرلي دي، ولې د صحابه رضی الله عنهم په احوالو کې راغلي دي چې هغه کسانو چې عمومًا یعنی په نورو ورځو کې به ئې ګټي نه په ګوښته کول د اختر په ورځ به ئې په ګوته کول، او نل د مند وبا تو څخه د دغې ورځې په مبارکي راوړي ده چې په عربو کې بې داسي وئيل تقبل الله منا ومنکم» او په پښتو خلګ وائي یوو بل ته مبارك دې سه خداي پاك دې روژې او تراويح قبولې کړه. او په مبارکي کې اثرهم موجود دی»، کما رواه ابن الحجرؒ الحافظ عن تحفة عيد الاضحىٰ لابي القاسم المستملىؒ بسند حسنٍ، وكان اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا التقوا يوم العيد يقول بعضهم لبعض تقبل الله منا ومنكم، واخرجه الطبرانی، بسند قوى وفي الطحطاویؒ، چې رواج په بلادِ شاميه وو کې او په بلادِ مصير وو کې داسي وئيل دي يو وبل ته عيدٌ مبارك عليك ونحوه. او داسي وينا هم جائزه حسن ده بلکه مستحب ده، او د غه رنګه دې بله سره روغ بړکوي ط ص۲۳۵ ۰

و د دې کارو څخه یوازې په اسلامي نړۍ کې وهابيان، پنج پیران، سلفيان، او اهل حديث د زماني منکر دي او دوی وائي چې دا کارونه ټول بد عت سيئه دي، او د دوی اتباع چې ایمان وي هغه بدعت هم معنا د کفر بولي»، قال المصنفؒ

**وَالتَّبْكِيْرُ وَهُوَ سُرْعَةُ الْاِنْتِبَاهِ وَالْاِبْتِكَارُ وَهُوَ الْمُسَارَعَةُ**

او د غه رنګه مندوب دی تبکیر او د تبکیر معنا وختي راو یښيده دی، او د غه رنګه مندوب دی ابتکا

**اِلَى الْمُصَلّٰى وَصَلٰوةُ الصُّبْحِ فِيْ مَسْجِدِ حَيِّهٖ** د ابتکار معنا وختي تګ دی وعیدګا

ته د لمانځه او وختي تګ دی د سهار لمانځه ته ومسجد ته د خپل کلي او قبیلې. او تبکیر د سپیدو





سره وي باد غه»، ق **فَائِدَة**: د تبکیر دا کول د عبادت ته دی په خوشحالي سره کما يدل عليه التجربة. او د ابتکار وعیدګاه ته یو خولوی فضیلت دی. او بل به په صف اول کې ځای ونسي، او د ابتکار ومسجد ته چې دا کول د حق د خپل مسجد دی نو به صف اول ته هم ورسیږی»، قَالَ الْمُصَنِّفُؒ:

**ثُمَّ يَتَوَجَّهُ اِلَى الْمُصَلّٰى مَاشِيًا مُكَبِّرًا سِرًّا وَيَقْطَعُهُ**

او بیا دې مخ وکي یعنی روان دې سي وعیدګاه ته پیاده یعنی که پر تکلیف نه وو لکه سپین ږیري وغیره په رسۍ

**اِذَا انْتَهٰى اِلَى الْمُصَلّٰى وَفِيْ رِوَايَةٍ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ**

حال کې چې تکبیر دی وائي لکن کراره او تکبیر دې پرېږدي چې عیدګاه ته ورسیږي. او په یوه روایت کې وائي چې تکبیر دی هلته قطع کوي چې په لمانځه شروع کیږي. **مسئله**: د عیدګاه ته ځي افضل دی که څه هم په هغه مسجد کې وي چې خلګ په کښې ځائیږي. وَهو الصحيح، ط، په حدیثو کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام به وتی وعیدګاه ته چې په مدینه منوره کې په فراخه ځای وو چې دروازې څخه د مسجد نبوي تر هغه ځایه پورې زر ګزه مخکه وه، کما في العيني على البخاري»، او په حدیث شریف کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام به په وخت د وتو وعیدګاه ته داسي وئيله: اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ خَرَجْتُ اِلَيْكَ مَخْرَجَ الْعَبْدِ الذَّلِيْلِ،

**مسئله**: په فتح القدير کې وائي سنت دا دی چې لوی امام دی تر ښاره د باندې چې جبانه یه بولي د عيد د لمانځه د پاره سره د خلګو ووزي، او یو عالم دی خلیفه کړي چې ضعفا وو ته په ښار کې لمونځ ورکړي. ولې چې د اختر لمونځ په دوه ځایه کې اتفاقًا روا دی. او امام محمدؒ په درې ځایه کې هم روا بولي. او سپین سري ښځي عيدګاه ته وتلای سي. او ځوانانې ښځي نسي راوتلای او منبر ور سره وړل جبانه ته مکروه دی»، او که په جبانه کې د خښتو وغيره منبر جوړ کړي بعض علماء وائي چې هغه هم مکروه دی. او امام خواهرزاده وائي چې په اوس زمانه کې ښه کار دی او امام اعظمؒ څخه روایت دی چې: لَا بَأْسَ بِهٖ، د روېتي وائي چې زمونږ په زمانه کې بلا زمونږ

ترزمانی ډیرو مخه بناء د منبر په عیدگاه کی عمومی رواج دی او هیڅ څوک انکار نه پری کوی
او د اختر لمونځ خو په او سنئ زمانه کی په هر جامع کی کیږی د خلکو د سهولت د پاره
لظهور التوانی فی امور الدین» لکن د جبانه عیدگاه لمونځ ډیر فضیلت په لری، او هم ډیر
فیض او برکت او خوشحالی لری لکه چې د. افغانستان کی چې د اخترو لمونځونه په عیدگاه کی
کیږی، خصوصًا د قندهار عیدگاه چې امارتِ اِسلامی دَ طالبانو ډیره فراخه او زیبا جوړه کړیده
او په نورو ښارو کی د افغانستان هم ورته عیدگاهی والحمد لله صرف په کوټه کی مُلایانو
دا اختراع کړیده. چې په هر جامع مسجد کی د عید لمونځ کوی. دا هم صرف د دی د پاره دی چې
دی یعنی د جامع مسجد مُلا صاحب خپله بیانیه او تقریر او تبلیغ په خلکو واوروي» والی الله
المشتکی من سوء هذا الغرض» قَالَ المصنفُ:

## وَيَرْجِعُ مِنْ طَرِيقٍ اُخَرَ وَيُكْرَهُ التَّنَفُّلُ قَبْلَ صَلٰوةِ الْعِيْدِ

او کورته چې رجوع کوی پر بله لاره دی رجوع وکړی یعنی لاره دی بدله کړی. او مکروه دی نفل کول

## فِي الْمُصَلّٰى وَالْبَيْتِ وَبَعْدَهَا فِي الْمُصَلّٰى فَقَطْ عَلٰى اِخْتِيَارِ الْجُمْهُوْرِ

د مخه تر لمانځه د عیدگاه په عیدگاه کی او په کور کی. او بیله لمانځه
عیدگاه نفل مکروه دی یوازی په عیدگاه کی که کور نفل وکړی
کراهت نشته بر مختاره دَ جمهورو علماوو، په رجوع کی پر بله لار اقتداء ده په نبی علیه
الصلوٰة وَالسلام ایسی چې هغه مبارک داعمل کوله. او بل دا دی چې شاهدان بی ډیر سی د
عبادت. ولی هغه ځای چې سړی قربة کار په کښی وکړی په ورځ د قیامت د هغه د پاره شاهد
اداء کوی. په حدیث شریف کی چې متفق علیه دی راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام به
عیدگاه ته وَوَتَ او خلکو ته بی د عیدگاه لمونځ ورکاوه. او نه ئی د مخه لمونځ کاوه او نه
ئی وروسته. او سره د دی چې علیه الصلوٰة وَالسلام پر نفلی لمونځو ډیر حریص وو، لکن
قاضیخان او صاحب التحفةُ په مباح بولي. څلور رکعت نفل په عیدگاه کی وروسته





تر لمانځه د عیدگاه، او صاحب خلاصه څلور رکعته نفل بیله اختره لمانځه مُستحب بولي
وروی فیه حدیثًا لم یُعلم صحته» لکنه محمول علی التنفل فی البیت» قَالَ المُصنفُ:

## وَوَقْتُ صِحَّةِ صَلٰوةِ الْعِيْدِ مِنْ اِرْتِفَاعِ الشَّمْسِ قَدْرُ رُمْحٍ اَوْ رُمْحَيْنِ اِلٰى زَوَالِهَا

او وخت د صحیح والی د لمانځه د اختر له اپوره ته کیدو دی د لمر په قدر د یوی نیزی یا د دوو نیزو
یعنی په حس البصر کی بیا تر زوال ده
لمر. ولی چې د آنحضرت صلی الله علیه
وَسلم د اختر لمونځ په همیشه دا غه وخت کی به وو، او تر دغه د مخه کی د عیدگاه لمونځ وکړی
هغه د اختر لمونځ نه دی بلکه حرام نفل دي» **مسئله:** مستحب ده امام لره چې د لوی
اختر لمونځ دی په اول وخت کی د جواز کوی تاچه خلک د اختري و حلالیدو ته فارغ سي، او د
کشنی اختر لمونځ دی لږ تر هغه ځنډه وی. په حدیث شریف کی راغلی دی چې علیه الصلوٰة
وَالسلام و عامل ته په نجران چې نوم یه عمرو بن حزم وو داسی نوشته کړه» عجّل الاضحیٰ
وَاَخِّرِ الفِطرَ» قال المُصنفُ

## وَكَيْفِيَّةُ صَلَاتِهِمَا اَنْ يَّنْوِىَ صَلٰوةَ الْعِيْدِ ثُمَّ يُكَبِّرُ لِلتَّحْرِيْمَةِ

او کیفیت د اخترو د لمانځو دوارو دا دی چې نیت دی کوی د لمانځه د اختر یا
لوی اختر یا کشنی اختر او بیا دی الله اکبر ووائی د پاره د شروع د لمانځه **پوه سه:**
چې نیت که څه هم فعل د زړه دی لکن په خوله دی داسی ووائی چې زه نیت دی د لمانځه د اختر
لوی یا کشنی د پاره د خدائ او مقتدی دی نیت د متابعت د امام هم کوی نو نیت لکه د نورو
لمونځو، قَالَ المُصنفُ:

## ثُمَّ يَقْرَءُ الثَّنَاءَ ثُمَّ يُكَبِّرُ التَّكْبِيْرَاتِ الزَّوَائِدَ ثَلَاثًا

او بیا دی ووائی یعنی امام او مقتدیان سُبحانکَ اللّٰهُمَّ آه. او بیا دی ووائی امام او مقتدیان
زوائد تکبیرونه دري واره،

**فائده:** چونکه مشروعیت د سُبحَانَكَ اللّٰهُمَّ آ په اول کی د لما نځه دی نو ځکه دی تر زَوائد و تکبیرو د مخه وَائی. په ظاهر روایت کی. **فائده** دری واره ویل د تکبیر مذهب دی [۱] د عبد الله بن مسعودؓ [۲] او عمرؓ [۳] او ابی موسیٰ اشعریؓ [۴] و حذیفة بن الیمانؓ [۵] و عتبة ابن عامرؓ [۶] و عبد الله بن الزبیرؓ [۷] و ابی هریرةؓ [۸] و ابی مسعود الانصاریؓ [۹] و ابی سعید الخدریؓ [۱۰] و براء بن عاذبؓ [۱۱] و عبد الله بن عباسؓ [۱۲] و الحسنؒ [۱۳] و ابن سیرینؒ [۱۴] والثوریؒ"

**مسئله:** مصنفؒ په مَراقی کی وَیلی دی چې په مابین کی د هر دوو تکبیرو د دری تکبیره قدر امام ساکت وی. فی روایة عن ابی حنیفةؒ تاچه اشتباه پرخلکو رانسی چی دامام ځنې لیری وَلاړ وی. او په مابین کی د تکبیرو ذکر مسنون نشته، او که سُبحَانَ الله او الحَمدُ لِله، او لَا اِلٰهَ اِلَّا الله اَللهُ اَکبَر ووائی روا ده" لکن مبسوط والا وَائی چی د دری تکبیرو اندازه سکوت نه دی لازم، ولی چې اصلی مقصود سکوت ځنې دَفع د اشتباه ده د خلکو ځنې. نو د سکوت اندازه په قدر د ډیر والی دا ژدحام ده او لږوَالی دَه". نو شاید په سَبب د ډیر ازدحام دی وَه، بالاتر د دری واروته ضرورت وی، او شاید په وخت کی د لږوَالی د ازدحام دوه واره کافی وی. قَالَ المُصَنِّفُ:

## يَرفَعُ يَدَيهِ فِي كُلِّ مِنهَا ثُمَّ يَتَعَوَّذُ ثُمَّ يُسَمِّ سِرًّا

او لاسونه دی پورته کوی یعنی امام او مقتدیان په نیز د هر تکبیر بیا دی اعوذ بالله آه او بسم الله آه وَوائی په پټه سره [امام فقط]. **مسئله:** د ارفع سُنت ده **مسئله:** که مقتدی په داسی امام پسی ولاړ وو چی د هغه په مذهب کی رفع د ید نشته نو مقتدی دی لاسونه پورته کوی او د امام متابعت دی نه کوی، بحر رائق و ظهیریة" قَالَ المُصَنِّفُ:

## ثُمَّ يَقرَءُ الفَاتِحَةَ ثُمَّ سُورَةً وَنُدِبَ اَن تَكُونَ سَبِّح

او بیا دی سورة فاتحه الحمد لله ووائی او بیا دی یو سورة وَوائی. او مستحب دا ده چی سَبِّح اسمَ رَبِّكَ





## اسمَ رَبِّكَ الاَعلىٰ ثُمَّ يَركَعُ فَاِذَا قَامَ لِلثَّانِيَةِ اِبتَدَاَ

الاعلیٰ سورت ووائی او بیا دی رکوع وکړی د امام سره قوم او بیا دی تول سجدی ته ورشی

## بِالبَسمَلَةِ ثُمَّ بِالفَاتِحَةِ ثُمَّ بِالسُّورَةِ وَنُدِبَ اَن تَكُونَ

وروسته چی امام ولاړ سی د دوهم رکعت د شروع د دو کړی یعنی امام کواړ په بسم الله سره او بیا دی الحمد لله ووائی او بیا دی یو سورت وَوائی. او مندوب ده چی د دوهم رکعت سورت

## سُورَةُ الغَاشِيَةِ

دی، هَل اَتَاكَ حَدِيثُ الغَاشِيَةِ، وی. **فائده:** اعوذ بالله او بسم الله کواړ ویل د امام د پاره دی. ولی چې مقتدی ته خو قرائت نشته، **پوه سه** چی د دواړو رکعتو قراءت په جهر سره دی که څه هم د ورځې لمونځ دی" لورود النص المتوالی من عصر النبی صلی الله علیه وسلم والصحابة والتابعین وهلم الی یومنا هذا،

**فائده** روایت کړی دی دامام اعظمؒ ابو حنیفه یرفعه الی النبی صلی الله علیه وسلم چی علیه الصلوٰة والسلام په اخترو کی او په ورځ د جمعی کی" سَبِّح اسمَ رَبِّكَ الاَعلىٰ او یا په بل رکعت کی هَل اَتَاكَ حَدِيثُ الغَاشِيَةِ" وایه او په بل روایت کی یوازی اخترونه یاد کړه سوی دی، قَالَ المُصَنِّفُ:

## ثُمَّ يُكَبِّرُ التَّكبِيرَاتِ الزَّوَائِدَ وَيَرفَعُ يَدَيهِ فِيهَا كَمَا فِي الاُولىٰ

او بیا دی امام او قوم اَللهُ اَکبَر وَوَائی دری زوائد تکبیرونه. او پورته کوی دی امام او قوم لاسونه وغوږونو ته لکه په اول رکعت کی" قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَهٰذَا اَولىٰ مِن تَقدِيمِ تَكبِيرَاتِ الزَّوَائِدِ فِي الرَّكعَةِ الثَّانِيَةِ عَلَى القِرَاءَةِ

هذا اشاره ده یعنی دغه فعل چی تکبیرونه زوائد دی دری په هر رکعت کی وائی او د اول رکعت تکبیرونه دی د مخه تر قرائت وی.

او د وهم رکعت تکبیرونه زوائد دی وروسته تر قرائت وی تا چی د دواړو رکعتونو زوائد سره متصل سی یعنی اولی، تردی چی زوائد تکبیرونه تردې بالا وائی لکه چی بعض مذاهبو ته تللی دی. او تردی هم اولی چی د دوهم رکعت زوائد تکبیرونه تر قرائت د مخه وائی. وجه د اولویت په حدیث د ابن مسعودرض دی، چی د مخه ذکر سو، او ډیرو صحابه کرامو هم موافقت ورسره کړی وو"

**پوهسه**: چی فقه حنیفی په اکثر مسئلو کی بناء پر حدیثو د ابن مسعودرض ده سبب یې دادی، چی علیه الصلوٰة والسلام د ابن مسعودرض په شان کی داسی فرمائیلی دی " رَضِیْتُ لِاُمَّتِیْ مَا رَضِیَه ابن امِ عَبْد "ابن ام عبد کنیت دی د ابن مسعودرض" یعنی زه راضی یم د امت دپاره په هغه شی یعنی په احکامو د دین چی راضی وی په هغه سره ابن ام عبدرض دروتش وائی چی دا ډیره لوی منقبت دی د ده دپاره"

**فائده**: مصنفؒ لفظ د اولی روایه ددی سببه چی په مراقی کی وائی. چی اختلاف په اولویت کی دی، نه په جواز او عدم جواز کی، په بحر الرائق کی وائی چی د تکبیرو په تقدیم کی او د زوائد تکبیرو په ډیرکی والی. او ډیروالی کی په اولویت کی اختلاف دی، والاختلاف فی جواز الکل " هم د اسبب دی چی امام محمدؒ چی په مؤطا کی روایات مختلف ذکر کړی دی، وروسته یې داوئیلی دی فَمَا اَخَذْتَ بِهٖ حَسَنٌ، نو که چیری په دغو روایاتو کی ناسخ او منسوخ وای نو امام محمدؒ ذالک البحر الزاخر للاحادیث النبویه اعرف به " وای او دی سبب چی اختلاف چی په اولویت کی دی په جواز کی نه دی، په فقه حنیفی کی دا مسئله ده که حنیفی سړی په داسې امام پسی اقتداء وکړی چی هغه تردې بالا تکبیرونه وئیله مقتدی دی متابعت کوی تر شپاړس تکبیرونه پوری. ولی چی دا انتهاء د درجه ده چی په اثارو کی راغلی ده او زیات تر ۱۲ ممنوع بالیقین دی،،

**مسئله**: که د سړی څخه اول رکعت تیر سوی وو. نو دی زوائد تکبیرونه د خپل مذهب سره برابر و وائی د امام د مذهب متابعت دی نه کوی. ولی چی مسبوق خو منفرد دی، او که د سړی څخه دا او سیاپه سبب اته یدلا نغه تیر سوی وو چی لاحق یه بولی هغه چی خپل تیر رکعت





رااگرځوی په تکبیرو کی مراعات د امام کوی. ولی چی لاحق خلف الامام دی حکماً،

**مسئله**: که مسبوق سړی یعنی چی اول رکعت څنډیني سوی وی. نو چی دی قضاء رکعت را اوړی. اول دی قرائت شروع کوی. او د خپل مذهب څخه دی مخالفت دَه تیر سوی رکعت د زوائد تکبیرونه تر قرائت د مخه دي، ولی که دی یعنی مسبوق وکړی یعنی چی اول رکعت د زوائد تکبیرونه د هغه رکعت تکبیرونه رکعت د تکبیرو سره یوځای کیږی چی تکبیرونه دَ مخه وائی نو ددی "لَمْ یقل به احد من الصحابهؓ فیوافق رأی الامام علی ابن ابی طالب" چی د امام سره نیولی وو، د هغه مذهب دادی چی په اول رکعت کی قرائت تر تکبیراتو د مخه دی " هذا حاصل ما فی المراقی والطحطاوی"

**مسئله**: که سړی ورسیدی امام ته او هغه په رکوع وو نو تکبیر افتتاح خو یې په ولاړی و وائی بیا نو که دده غالب گمان دا وو چی امام ترسره راپورته کوی نو دی زوائد تکبیرونه په ولاړی وَوائی او لاسونه دی پورته کوی. او که خیال دا وو چی رکوع څخه تیریږی نو د امام سره دی رکوع کی شریک سی، او زوائد تکبیرونه دی په رکوع کی وَوائی. لکن لاسونه دی نه پورته کوی. او امام ابو یوسفؒ وائی چی دغه سړی دی تسبیحات د رکوع وَوائی. ولی چی رکوع ځای د تسبیحاتو دی د تکبیرونه دی او تکبیرونه په سبب د عذر څخه ساقط دي،

**مسئله**: که دغه سړی یو تکبیر د زوائدو څخه په رکوع کی وَوایه او امام د رکوع څخه سر پورته کی، ده هم دستی سر ورسره راپورته کوی، ولی که دی په رکوع معطل سی، د تکبیر دپاره نو خو ده متابعة الامام چی فرض وو ده د واجب دپاره پریښو،،

**مسئله**: که سړی امام ته ورسیدی او امام سر راپورته کړی وو د رکوع څخه نو دی د بې تکبیرونه زوائد نه وَوائی. ولی چی دی خو وروسته د دغه رکعت د قضا سره د زوائدو تکبیر راوړی" کذا فی فتح القدیر" قال المصنفؒ:

## ثُمَّ يَخْطُبُ الْاِمَامُ خُطْبَتَيْنِ يُعَلِّمُ فِيْهَا اَحْكَامَ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

او بیا دی امام دوی خطبی و وائی چی ورښیی دی په دواړو کی احکام د صدقة الفطر یعنی د سړی

درویش وائی چې خطبې خوتوله په عربۍ ژبه دي نودا خوهغه کسانوته فائده کوي چې په عربۍ ژبه پوهیږي نو د پښتنو په ځایوکې به پښتنوته څرنګه شوونه وسي ددې احکامو چې الفاظ د خطبې عربي دي او پښتنو غوږ خونیولي وي لکن هیڅ سریه نه په خلاصیږي چې امام څه وائي. او په مراقي او تهولوکتابوکې وائي چې مشروعیت د خطبو دَ فه تعلیم دپاره دی.

## درویش وائی

نوکه د درویش په قول خولک عمل کوي نودا سې دې وکړي: چې حمد دپاك خدای دې په عربي ووائي اودرود دې پر علیه الصلوٰة والسلام دې هم په عربي ووائي په هره خطبه کې او بعض احکام یا ټوله دې په اوله خطبه کې ووائي یا بعض احکام په یوه خطبه کې بعض په بله خطبه کې ووائي. نو پردې دوله به ټوله خطبه پر سنت برابره سي، **سوال:** احکام د صدقة الفطر خوداغه پنځه دي چې تفصیل یې په ځیل ځای کې راسي ۱ صدقه فطر پرچا واجبه ده. ۲ اوچاته به یې ورکوي ۳ او مقدار د سر سایه څودی؛ ۴ اوکله واجبیږي ۵ او په څه سبب واجبیږي نو پښتنه دا ده چې په بعض جامع مسجدوکې چې په اوسني زمانه کې چې د عیدګاه لمونځ په کښې کیږي داسې امام ولاړوي چې خپله په دغو احکامو څه وو نه وي خبر نو بل ته به یې څرنګه وښيي.

**جواب:** لازمه بره ده چې د درویش قدوري پښتو یا داکتاب نورالایضاح پښتو دې وګوري اوزده دې کړي. اوبیا دې خلګوته بیان کي. لکن سره د ټولو هغو خبرو"په بحر الرائق کې ډیره په نره پوره خبره کړیده. دې وائي چې چونکه علم دین امانت دی پرغاړه دعلماوو نو باید چې خطیبان بلکه ټول وایم چې د مسجدو امامان یوه هفته د مخه ترکښنی اختر او یوه هفته د مخه تر لوی اختر دې په شوونه د احکامو د صدقة الفطر او په احکامو د اضحیه او تکبیرات التشریق په مکره وختوکې په شوونه لاس پوري کي. ولې چې عوام په یوه واره احکام دینیه نه سي زده کولای. ولې چې مندوب په صدقة الفطر کې خوادا یعنې ته ترخروج و عیدګاه ته ده. نو چې د مخه نه سي خبراو د عیدګاه په خطبه کې خبر سي. نو هغه مندوب یې د لاسه ورکړي اوبله خبره دا ده چې تکبیرونه د تشریق د عرفات په ورځ شروع کیږي نو د لوی اختر د عیدګاه





په خطبه کې زده کړو څه فائده لري، او دغه په باب کې د صدقة الفطر به راسي ان شاء الله چې علیه الصلوٰة والسلام به دوې ورځې تر اختره د مخه خلګوته احکام د صدقة الفطر ورښوول، **مسئله:** د اخترو د دو خطبو په مابین کې هم لکه د جمعې امام جلسه خفیفه کوي. **مسئله:** د اخترو په خطبوکې دې الله اکبر وائي او په ظاهر الروایه کې عدد معین تکبیرو دپاره نه دی راغلی" لکن داسې به هم نه کوي چې اکثر خطبه یې تکبیرونه وي. لکن په خطبه کې د لوی اختر دې تکبیرونه ډیر وائي تر کچنی اختر تر خطبو. او خطیب دې په هره خطبه شروع په حمد د خدای جل شانه کوي پیله لبسم الله وسیلوه مراقي الفلاح"، قال المصنف:

## وَمَنْ فَاتَتْهُ الصَّلٰوةُ مَعَ الْاِمَامِ لَا يَقْضِيهَا

هغه څوك چې دده څخه فوت سي هغه لمونځ چې ده به د امام سره کاوه یعنې د اختر لمونځ امام اداء کړي او دی نه ورو ورسیدی بلکه دده څخه فوت شو. نو دغه سړی به دَ هغه لمانځه قضاء نه راوړي یعنې یوازې به یې نه کوي، ولې چې په جماعت د اختر لمونځ کول ځیل شرطونه لري، چې بیله امامه نه ترسره کیږي. او یا بیله نائب د امام، نو انفرادی د اختر لمونځ څرنګه جواز لري؛ نو دغه سړي چې د اختر لمونځ ځنې تیر سو اختیار لري که کورته ځي او که په غیر د عیدګاه کې نفل کوي، او افضل دا ده چې څلور رکعت نفل دې وکړي چې د ځابنت دلمانځه په ځای کې به هم ودریږي؛ د ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې که چاته د اختر لمونځ تیر سونو څلور رکعته نفل دې وکړي. په اول رکعت کې دې سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى، ووائي. او په دوهم رکعت کې دې وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا، ووائي اودمابین په ناسته کې التحیات سره د درود ووائي. او دریم رکعت ته چې ولاړ سو سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ دې ووائي اوتر اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وروسته دې وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى، ووائي او په څلورم رکعت کې دې وَالضُّحٰى ووائي، او ابن مسعود د دغه لمانځه په باره کې د علیه الصلوٰة والسلام څخه روایت د وعداً جمیلاً او د ثواب جزیل کړی دی"

درویش وائی: دَ دغه سې لمانځه په وخت کې د بنه ارتفاع الشمس ډیر ثوابونه منقول دي چې اصل تجربه د علماوو او اولیاؤ وائي که څوك د ضیق الرزق څخه بیریږي نو صلوٰة الضحیٰ په

ترتیب مذکورہ ی دلا سرنہ باسی. اوکہ څوك دعذاب القبراواهوالو څخه دقیامت بیریږی نوده تهجد لمونځ دی همیشہ کوي الآمن عذر» قال المصنفؒ:

# وَتُؤَخَّرُ بِعُذْرٍ اِلَى الْغَدِ فَقَطْ

اوځنډ وله کیږی دکښنی اختر لمونځ په سبب دعذر ترصبا پوری نہ بالا **پوهه سه**: چی یودعذروڅخه دادی چی پرمابنام کی میاشت ونہ لیدل سوه اوبیله زواله خلګوشاهدی اداء کړه چی مونږ مابنام میاشت ولیدل درویش وائی: چی هغه عذرچی مراقی بیان کړی دی. چی خلګو عید ګاه لمونځ وکړی لکن شدید اودیځ وه. وروسته داوره معلومه سوه چی دعید ګاه لمونځ ترزوال اداءسوۍ داعذر پرپخوانی زمانه کی متصور وو لکن په اوسنی زمانه کی داعذر هیڅ صورت نه لري، ولی چی دهرسړی سره ساعت موجودی چی ثابت اوزوال وخت پر متیقنه توګه ورمعلومیږی که څه هم ګرده ورځ لمرپه ورځ کی پټ وي، قال المصنفؒ:

# وَاَحْكَامُ الضُّحٰی کَالْفِطْرِ لٰکِنَّهٗ يُؤَخِّرُ الْاَكْلَ عَنِ الصَّلٰوةِ وَ

اواحکام دلوی اختر داسی دی لکه دکښنی اختر لکن دا فرق دی چی خوړل دی وروسته کوی تر لمانځه

# يُكَبِّرُ فِي الطَّرِيْقِ جَهْرًا

او تکبیر دی وائی په لاره کی په زوره سره **پوهه سه**: چی ځنډ وله داکل اوداغه رنګه دشرب وغیره چی منافی وی دروژی تر لمانځه پوری مستحب دی. لکن دسپیدوڅخه تر عید ګاه پوری» په مراقی کی وائی کی دمخه خوړلك وکړي مکروه نه دی، یعنی مکروه تحریمی په حدیث شریف کی راغلی دی چی علیه الصلوٰة والسلام به دلوی اختر په ورځ خوړلك نه کاوه چی دعیدګاه څخه به راغلی داختری غوښی به ئی خوړلي» اودی حدیث دسببه په بعض کتابوکی وائي چی داتاخیرالاکل دهغه چاد پاره مندوب دی چی هغه اضحیه کوي» قیل هوالمختار» لکن په زاهدی کی وائی چی په اخبار وکی دصحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم داسی راغلی دی چی دوی به کچنی هلکان هم دخوړلك څخه منع کوله. اوحتی چی شیر خوره





یې هم دی رضاع څخه منع کوله په ورځ دلوی اختردا اختر تر لمانځه پوری" کشیبانی هم تصحیح چانده کړی والله اعلم **مسئله**: دا امساك دعواخبارو روزه نده کما یتوهمه العوام، نوځکه نیت دروژی نه غوښتل کیږی. اوپرهغه چا دا امساك جاری دی چی په بنار کی وی یعنی چی هلته دعید ګاه لونځ کیږی، مصنفؒ وائی چی دلوی اختر په ورځ چی عید ګاه ته ځی اَللّٰهُ اَکْبَرُ دی په زوره وائی لکن دا مستحب دی لفعل النبی صلی الله علیه وسلم ذالك"

**مسئله**: تکبیر په زوره ویل سنت دی مګرپه دغوورځوکی مګرنیزد مخامخ والی د بنسنه سره یاد غلوسره هم الله اکبر په زوره ویل مندوب دی. کذا نقل الامام الطحطاوی عن الزاهدی، قال المصنفؒ:

# وَيُعَلِّمُ الْاُضْحِيَّةَ وَتَكْبِيْرَ التَّشْرِيْقِ فِي الْخُطْبَةِ

اوورښيي دی امام دعید ګاه خلګوته دا ضحیه احکام اوتکبیرونه دتشریق د اضحیه احکام چی وروسته به راسی ان شاء الله دا دی، چی اضحیه پرچا واجبه ده. اوڅه سببه دا واجبیږی. اود اضحیه عمراوسن به څومره وي، اووخت دذبح کله دی. اوذابح به څوك وي اوحکم دخوړلك یه څه دی! اوڅونه به خیراتوي اوڅونه به ذخیره کوي **پوهه سه**: چی تشریق په لغت کی وچولوته دغوښو وائی په لمرسره لکه چی عادت دعربو وو په پخوانی زمانه کی یعنی غوښی به ئی ټوټې ټوټې کړي اوپر دبړو بی واچولی، نودوی دافعل پر یوولسم دوولسم دیاریارلسم کاوه. نودادری ایام تشریق بولي. اوداضحیه دذبح ورځی هم دری دی لسم یوولسم دوولسم نومجموع څلور ورځی کیږی. نوداختر ورځ یوم النحر بولي یوم التشریق یه نه بولی که څه هم تکبیرونه په کښی ویل کیږی، اوڅلورم ورځ فقط یوم التشریق اود اختری ذبح سه ده پکښی روا، اودمابین دوی ورځی هم ایام النحر دی اوهم ایام التشریق دی» ط،م»

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولمن سعی فیه امین

قَالَ المصنفؒ **وَتُؤَخَّرُ بِعُذْرٍ اِلٰى ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ وَالتَّعْرِيْفُ لَيْسَ بِشَيْءٍ**

اوځنډول کیږي د لوی اختر لمونځ په سبب د عذر، تر دریو ورځو پورې، او مشابهت کول په نورو وطنو کې د هغه کسانو سره چې په عرفات ولاړ وي هیڅ شی نه دی، یعنې نه واجب دی او نه سنت دی او نه مستحب بلکه مکروه دی په صحیح مذهب ولې چې دا اختراع ده په دین کې،" م او امام طحطاویؒ وایي چې د ظاهر څخه د روایت نو دا معلومیږي چې مکروه تحریمي دی، ولې چې د وقوف قربت او ثواب په هغه مکان مخصوص پورې اړه لري چې د عرفات نه دی لکه طواف چې د بیت الله شریف خاصه ده نو په بل ځای لکه یو مسجد او یا قبر د یو ولي طواف کول حرام دی لکه شیعه گان چې په قبر د امام رضا ؒ کوي، بلکه په کافي کې وايي چې په بل ځای سوی د کعبة الله که څوک طواف وکړي بیره د کفر بانندی سته" قَالَ المُصَنِّفُؒ

**وَيَجِبُ تَكْبِيْرُ التَّشْرِيْقِ مِنْ بَعْدِ فَجْرِ عَرَفَةَ اِلٰى عَصْرِ الْعِيْدِ**

او واجب دی تکبیر تشریق پر اختیار د اکثرو علماؤ او بعض فقهاء وائي چې سنت دی او د غه رنګه

**مَرَّةً فَوْرَ كُلِّ فَرْضٍ اُدِّيَ بِجَمَاعَةٍ مُسْتَحَبَّةٍ عَلٰى اِمَامٍ**

جهر یم واجب او شروع دی د تکبیر وروسته تر لمانځه د عرفات د ورځې کیږي د ماز دیګر تر لمانځه پورې د ماز دیګر د ورځې د اختر یعنې تر د غه ماز دیګر وروسته به هم وائي چې مجموع اته لونځه کیږي یو وار متصل په فرضي لمانځه پسې، نو د

**مُقِيْمٍ بِمِصْرٍ وَعَلٰى مَنِ اقْتَدٰى بِهٖ وَلَوْ كَانَ مُسَافِرًا اَوْ**

جمعې لمونځ هم په کښې داخل دی او نفل او وتر او د جنازې لمونځ او د اختر لونځونه خارج دی، چې د غه

**رَقِيْقًا اَوْ اُنْثٰى عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ**

چې د غه فرضي لمونځ په جماعت سره اداء سي. نو منفرد و وتې پر هغه واجب نه دی. او دا تکبیر واجب پر امام چې مقیم وي په ښار کې نو پر مسافر او یا مقیم د قریه باندی نشته. او دا غه رنګه واجب دی دا تکبیر





چې اقتداء یې کړې وي په دغه امام پسې" که څه هم دا متقدي مسافر وي او یا مریې وي او یا ښځه وي. **فائده.** بعض فقهاؤ وائي چې تکبیر واجب دی او جهر یې سنت دی والفتوی علی وجوب کل من التکبیر والجهر **پوښتنه:** چې که د دغو ۸ لمونځو کې یو څوندی قضا سوی وو، د هغه تر قضائی کولو وروسته هم تکبیر واجب دی،" مراو د غه جماعت به هم مستحب وي. په دی سره د ښځو جماعت خارج سو."

**فوائد** د مَرَّةً په قید کې احتراز د مذهب څخه د امام شافعیؒ چې هغه وائي چې تکبیر به درې وارہ وائي. او په قید کې د فور، اشاره وده ته ده چې ژرنګه چې سلام وګرځاوه دستی به تکبیر وائي. نو که سړی وروسته تر لمانځه په زوره وخندل او یا یې په قصد او د سهو ماته کړې او یا یې خبرې وکړې که څه هم په سهو سره وي او یا د مسجد څخه ووتی بیا دی تکبیر نه وائي او جهر په تکبیر سره یوازی د نرو دپاره دی ښځې به یې کرار کرار وائي چې آواز دی عورت دی" یعنې په معنی لغوي چې عورت په لغت کې عیب ته وائي طحطاویؒ"

**تفریع** نو هغه چې بعض ملایان وائي چې عورت دا معنا ده چې او ریدل یې حرام دی غلط خبره ده نعم د ښځې بیګانه چې زړه نه وي خبرې کول یې منفی وفتنی ته ګرځي کله کله" نو احتراز څندی لازم دی، او که د سړي څخه اول د لمانځه د امام تیر سوی وي، هغه چې لمونځ پوره کړي تکبیر به وائي. **مسئله:** که سړی محرم وو، تر لمانځه وروسته به تلبیه وائي ولې چې تلبیه کلام اجنبي دی" په بحر الرائق او کافي وائي که پر سړي سجده سهوه لازمه سوې وه" نو اول به سجده سهوه کوي ولې چې هغه په تحریمه کې د لمانځه داخله ده او وروسته دی تکبیر تشریق وائي ولې هغه اتصال په لمانځه پورې لازم دی. او وروسته دی تلبیه ووائي که سړی محرم وو. نو که دی سړي اول، تلبیه وویل سجده سهوه او تکبیر څندی ساقط سوه، ولې چې تلبیه خبرې دی لمونځ په قطع سو، نو سجده سهوه نسی کولای. او اتصال د لمانځه هم باطل سو. نو تکبیر هم نسی ویلای. او که پس له سلامه تکبیر ووایه سجده سهوه دی وکړي ولې چې په تکبیر سره لمونځ نه قطع کیږي"

وقد کتبه بقلمه حقر الوری افضل حق حقانی غفرله من تلامذ حضرت الیربی مد ظله.

قَالَ المصنفؒ **وَقَالَا يَجِبُ فَوْرَ كُلِّ فَرْضٍ عَلَى مَنْ صَلَّاهَا وَلَوْ**

اوياران وائی واجبيږی داتكبير متصل په هرفرضی لمانځه پسی، پرهرهغه چاچی لمونځ يه وكړی كه څه هم

**مُنْفَرِدًا اَوْمُسَافِرًا اَوْقَرَوِيًّا اِلَى عَصْرِ الْخَامِسَةِ**

يوازی لمونځ وكړی، اويامسافروی اويا قريه والاوی. بيا ترمازديگره پورې دپنځمی ورځی دعرفات

**مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ** دورځی څخه چی مجموع يه ۲۳ لمونځه كيږی، قال المصنفؒ

**وَبِهٖ يُعْمَلُ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى** اوپرمذهب دیارانوؒ عمل كيږی اوفتوی د علماووهم پرمذهب ديارانوؒده. دليل په

دادی چی عمل په هغه عبادت چی پرده واجب نه وی، اولی دی تر ترك د هغه عبادت چی بعض

كسان وائی چی پرده واجب دی، يعنی امام اعظمؒ خووائی چی ترهٔ لمونځوووسته تكبير پرسړی

واجب نه دئ، داسی خونه وائی چی نه بی وائی، اويارانؒ وائی چی ۲۳ لمونځوپوری تكبير واجب دی

نواحتياط په قول كی دیارانوؒ دی،

**سوال**: څرنګه رواده چی برخلاف دقول د صاحب المذهب څوك فتوی وركوی **جواب**

په حاوی قدسی كی وائی چی دامام اعظمؒ اوديارانوؒ چی اختلاف وی اسی نواعتبار قوت لره د دليل

دی. اويا هرقول چی ياران يه مختاره كړی هغه هم روايت دامام اعظمؒ څخه دی لكن ده رجوع

څنډی كړی وی،، ط، در، **مسئله**: كه د امام تكبير په بوه لمانځه كی هيرسونومقتدی بايد

وجوبًا وائی. تا چه د امام به هم ورپيادسی،

**حكايت** امام محمدؒ وائی چی په يوه لمانځه كی دورځودتشريق امام ابويوسفؒ امام وو

اوامام اعظمؒ اقتداء پسی كړی وه. پسله سلامه دامام ابويوسفؒ تكبير د

تشريق هيرسو. نوامام اعظمؒ فورًا تكبير ووايه» قـال المصنفؒ

**وَلَا بَأْسَ بِالتَّكْبِيْرِ عَقَبَ صَلَوَاتِ الْعِيْدَيْنِ** اوپروانه په تكبير ويلو كی د اخترو ترلمونځو وروسته يعنی كه





څه هم دا دوه داخترو لمونځونه واجب دی اود واجب لمانځه وروسته تكبيرنه دی واجب

لكن كی څوك ووائی پرواه نه لری **فَائِدَة**: امام طحطاویؒ دفتاواظهيريه

څخه داسی نقل كړی چی فقيه ابوجعفرالطحاویؒ وائی چی زمونږ مشائخوبه خلكوته اجازه

وركوله چی تكبير د تشريق په دغو ورځوكی په بازاروكی هم وائی بلكه داخترپه لسو

ورځوكی، كما فی البحر» اوپه درايه كی وائی چی يوچا دامام اعظمؒ څخه پوښتنه وكړه چی

ايا اهل كوفه اودبل ځای خلق په ورځوكی دتشريق په مساجدوكی اوبازاروكی تكبيرونه

وائی... قَالَ نَعَمْ» **درويش وائی** چی زمونږ په ګران هيوادكی افغانستان، اود غرنګه

په پاكستان كی رواج د تكبيرو په بازاروكی نسته. شايدوجه بی داوی چی دغه روايت

په صحيح ثبوت نه وی رسيدلئ» قـال المصنفؒ:

**وَالتَّكْبِيْرُ اَنْ يَّقُوْلَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ**

اوتكبيردادی چی ووائی الله اكبر الله لوی دی الله اكبر الله لوی دی. نسته هيڅ معبود برحق د الله څخه ماسوا الله لوی دی الله

**وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ** لوی دی اوخدای لره

دی حمد اوثناوی. په مراقی كی مصنفؒ داسی حديث را نقل كړی دی چی نبی كريم صلی الله

عليه وسلم چی د سحار لمونځ دورځی دعرفات به ئی اداكړی نوبه مخ مبارك واصحابوكرامو

ته راوګرځاوه. اوداسی به ئی ويله: خَيْرُمَا قُلْنَاوَقَالَتِ الْاَنْبِيَاءُقَبْلَنَافِی يَوْمِنَا هٰذَا اَللّٰهُ

اَكْبَرُ ترپايه پوری **درويش وائی**: چی هغه څه چی مولوی اعزازعلیؒ دعنايه څخه نقل

كړی ده چی داتكبيرد حضرت سيدنا ابراهيم عليه الصلوٰة والسلام چی خپل زوی حضرت

اسمعيلؑ په قربانی كاوه. اودی وائی چی څه وخت چی ابراهيم عليه السلام وذبح ته زوی اماده

سواوسترګی بيتی وی. نوجبرئيل عليه السلام اول وار وويل اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ» نوابراهيم

عليه السلام چی وليدی چی دقربانی په جبرئيل عليه السلام راوستی نوبيه داسی ووَيل لَا اِلٰهَ

اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ» نواسمٰعيل عليه السلام چی پوه سوچی د ذبح خلاص سوی نوبيه ووَيل

اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْد ،، زه وايم د غه قصه د مخنۍ حديث سره موافقت نه لري. ولې چې حديث شريف د اسې عبارت دی ،، الانبياء قبلنا ،، نو خو دی کلماتو تخصيص په ابراهيم عليه السلام او ده په زوی پورې نشته ،، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

**مسئله** مرط وائي چې پر دغو کلماتو د اسې کلمات بالاکول پروانه لري، وَ اللّٰهُ اَکْبَرُ کَبِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ کَثِيْرًا، وَسُبْحَانَ اللّٰهِ بُکْرَةً وَّ اَصِيْلًا، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَصَدَقَ وَعْدَهٗ وَ نَصَرَ عَبْدَهٗ وَاَعَزَّ جُنْدَهٗ. وَهَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا نَعْبُدُ اِلَّا اِيَّاهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ، وَلَوْ کَرِهَ الْکَافِرُوْنَ، درويش باګناه محمد عبيدالله وائي چې څه وخت چې دا نوشته ودې ځای ته راورسيده. نو دا هغه ورځ وه چې د دنيا لوی ستر قدرت يعنې امريکا د بش د صدارت په وخت کې يوه ورځ د مخه د جاپان د بندر څخه خپله دريابي بيړۍ يعنې د طيارو او د سلاحو څخه ډکه وه د پاره د حملې پر غريب وطن او ملک چې ۲۲ کاله نور جنګ ځپلی وو، پر سر د اسامه بن لادن چې عربي الاصل دی او په افغانستان کې دی او د روسانو سره چې پر افغانستان يې قبضه کړې وه د لوی مجاهد په توګه سره وَنډه اخستې وه. را روان کړې وه، او د امريکا سره انګريزانو، پرانسويانو، جاپانيانو، جرمنيانو، او استراليا، او هندوستان وغيرها من ممالک الکفرة، هم موافقه وه سره کړې وه حتٰی بعض اسلامي هيوادو لکه پاکستان هم موافقه ورسره کړيده. او امريکايانو ته د خپل فضا ئي طيارو د ميدانو څخه وامريکايانو ته اجازه د حملې پر افغانستان باندی ورکړه،،

**پوښتنه**: پاکستان په وخت کې د يرغل د روسانو پر افغانستان د افغانستان د خلکو ډېر مادی او معنوی مرستې په داخل کې د افغانستان او د مهاجرينو سره چې په پاکستان کې مشته وه هم ډول کومک کاوه، او تر اوسه پورې تخمينًا دوه ميلونه د افغانستان خلک مهاجرين په پاکستان کې موجود دی. نو اوس ولې بيا پاکستان وامريکا ته خپل د ملک د ميدانو څخه د افغانستان پر بيچاره خلکو اجازه د فضا ئي حملو ورکړه.

**جواب** داوس وخت فوجي مشر جنرال مشرف خو پخپله بيانيه کې داسې وويل چې زه مجبور يم بيله اجازې ورکولو بله لار نه لرم، شايد هغه اسباب به ته معلوم وي





**پوښتنه**: امريکايانو خو هم په وخت کې د يرغل د شوروی پر افغانستان ډېرې مرستې د افغانستان سره کولې او قسم قسم سپکې او درنې وسلې په ډېر ملک ډېرې او تر هر ملک ډېرې افغانستان ته لېږلې. او د پاکستان او د مهاجرينو سره د افغانستان يې هم تر هر ملک ډېرې مرستې کولې. نو اوس بيا ولې د افغانستان دښمن سو. او د جنګ او حملو اعلانونه ورته کوي او جنګي طيارې او توپونه او ميزائيل په بحري بيړيو را روان کړي دي!.

**جواب**: په هغه وخت کې شوروی اتحاد، پر خپل ټوله قوت باقي وو، او امريکا بلکه ټول غربيان ملکونه ځندی بيريدل، حتٰی پاکستان هم. چون شوروی افغانستان اشغال کې او تخمينًا يو لک فوج مجهز په جنګي مهماتو سره وافغانستان ته را واستاوه. او جنګي طيارې حاصل دا چې ټوله وسائل د جنګ يې په افغانستان کې سره ځای پر ځای کړه. امريکايان بالخصوص او ټوله غربيان بالعموم د بيرې سره تښتې واخستل، نو يې د افغانستان خلک د روسانو څخه په ډول د سپر د توری وغخته په کار واچول، هغه وچې خدای جل سلطانه په توفيق او د افغانستان د سرښندو لو باشها مت مسلمانانو په واسطه شورويانو بيله وتو د افغانستان څخه بله چاره و نه ليده. او د افغانستان څخه ناکام او نا مراده مختور وتي. علاوه پر هغه خدای جل سلطانه د روسانو د سرو څخه هغه کبر او لوئي چې دوی به په اتحاد شوروی سره به ئې کاوه د دماغو څخه د دوی يووړه. ولې چې اتحاد شوروی ورد ړی وړی کی. او روسان يه الګ تلګ پری شووله،،

نو دا وخت را ورسيدی د امريکايانو او غربيانو سره تبه وشکيدله او د راحت ساه يې وکښل تردې وروسته براى نام مرسته يې په داخل د افغانستان او د مهاجرينو سره کوله. او په سلو کې ۹۵ مرستې په تپه ودره ولې، وروسته پر افغانستان باندې د خپلو حزبي ليډرانو د لاسه قسم قسم مصائب نازل سوه چې تفصيل يې هرچا ته معلوم دی وروسته خدای جل سلطانه پر افغانستان د دينو طالبانو په ډېره چټکې حکومت مسلط کړي. چې په ډېر لږ وخت کې د افغانستان پر ۹۵ فی صده تر خپلو ولکې لاندې راوستل. او طالبانو سمد لاسه د حقيقي شريعت نبوی ﷺ پخپل مملکت کې اعلان وکړی يعنې، قصاص، حد زنا، حد سرقه،

وغیره، او امنیت کامل یې په کامل افغانستان کې پیاده کې، نو امریکایانو او غربیانو چې د اکارنامې دَ طالبانو ولیدې لاس د کومک خو یې بیخې ځنډې تول کړ. بلکه پر ضد د طالبانو دامارت په پروپیګنډې شروع کړې، او په دې فکر کې سول چې دا حکومت اسلامي د مابین یوسي، ولې چې کفارو ته د تاریخ په پاڼو کې دا ثابته ده چې اسلام چې پر خپل ماهیت او حقیقت باقي هیڅ ابر قدرت ورسره مقابله نسي کولای، او امریکایانو ډیر ډالرونه په کار واچوله او د افغانستان و خلګو ته ئې تو زیع کړه چې تاسي پر ضد د طالبانو د حکومت اسلامي پروپاګنډه او کوشش شروع کړې، د دې شاهد هغه دهماکه (چوړ) وه چې د ملا محمد عمر د څوانې کور پر سړک باندې وسوه. او څو کسه په کښې شهیدان سوه دا دهماکه خو مستقیما امریکایانو نه ده کړې، بلکه د هغو حلقه بګوشه غلامانو ډالرو په زور وکړه. او د غه رنګه نورې ګډوډې په امارتِ اسلامي افغانستان کې د امریکائي ډالرو په واسطه سوې دې او هم به کیږي. لکن دا پالیسي د امریکایانو تر اوسه نه دی کامیابه سوې او إن شآء الله کامیابه به هم نه سي، ډالر په مفت تاوانیږي مزدوران په رقم رقم د رواغو د امریکا څخه ډالر تر لاسه کوي. د دې مزدورانو سره نه د اسلام غم سته او نه د افغانستان بلکه د دوې کار د ډالرو سره دی.

بیا په اوس ورځو کې یعنې هفته دوې د مخه پس امریکایانو یوه حیرت انګیزه حمله وسوه. چې ډیر خلګ په کښې مړه او یا ټوټې بل سوله او ډیرې غټې ودانۍ د امریکا د لویو دوو ښارو په کښې ویرانې سوې چې د ر ادیو ګانو د لارې او اخبار اتو د لارې. جهانیان ټوله په خبرې نو په حقیقت کې خو خدای په خبر دی چې دا سې منظمې حملې په لن وخت د امریکا په لویو ښار وچا به کړې وي. لکن امریکایانو که د دغو حملو عامل پیدا او که نه! خو د دې حملو بار په د اسامه بن لادن چې ستر مجاهد دی. او د شوروي یانو سره د جهاد د وخته څخه په افغانستان کې د مهاجرت ژوند تیره وي پر اوږو واچاوه. او د امارت اسلامي افغانستان څخه یې غوښتنه وکړه چې اسامه بن لادن سره د ملګرو دی و امریکا ته وسپاري چې ... یې محاکمه کړي، دولت اسلامي افغانستان د امریکا څخه طلب وکړي چې په جهاني





سطح دې امریکا د دې ثبوت پیش کړي نو مونږ به غور په کښې وکړو. خو امریکایان د دې د ثبوت څخه عاجزه سوه. نو د غرور او تکبر څخه یې کار واخستې چې مونږ سره ثبوت سته هرومرو به اسامه بن لادن مونږ ته په لاس راکوي طالبانو د دې مطالبه رد کړه. نو باعث سو چې امریکا و جنګ او حملې ته ځان او فوجونه تیار سه کړه. چې دا اوس هم په حال کې د حرکت دي،

**پوښتنه** آیا امریکایان به د احمله وکړي او که نه! **جواب**: العلم عند الله وهو علام الغیوب لکن امریکایان که په ښه غور تاریخ د افغانستان مطالعه کړي حمله به و نه کړي. ولې چې یو شاعر وائی ؎

*نرود مرغ سوی دانه فراز ÷ چو دگیر مرغ بیند اندر بند ÷ پند گیر از مصائب دگران ÷ تا نگیرند دگران زتو پند ÷*

غرض در ویش اینست: چې امریکایان دې پند واخلي د درو پیښو څخه د افغانستان یوه پیښه خو دا ده چې د حمله روسانو وه چې پر افغانستان یې وکړه. او خپل ټول توان او طاقت او فوج او سلاح یې په کار واچول خو بیا هم امریکایانو وسان ولیدل چې ناکام سوه او د افغانستان څخه پر وتلو مجبور سول او ولاړل.

بله پیښه د انګریزانو وه چې په طاقت تر امریکایانو ډیر بالا وه. او د دوې په سلطنت کې لمر نه لویدی او په عین حال کې پر لویه وچه د هند د دوې سامراجیت وو. چې یو سرحد د افغانستان سره یې چمن وو او بل سرحد یې تورخم وو، اول وار چې انګریزانو پر افغانستان یرغل وکړي. خو په افغانستان یې فوجونه ننوتل او تر کشکنخود (میوند) پورې ورلاړه. او د هغه ځایه څخه افغانانو په زړه تورو او په لوړو دوی ته شکست ورکړي. او ډیر فوجیان د دوې په ځای په مردار کړه بالاخیر مجبوراً یې افغانستان پرې ښو او مخ تورې ووتل، څو کاله ورو سته بیا خیال فاسد د افغانستان د قبضې کولو په دماغ کې پیدا سو حتی چې پر سپین بولدک یې حمله وکړه چې د دوې فوجي مشرو انګریزانو ته وعده ورکړي وه چې په درې ساعتو کې ذقندهار نیسم. هغه وو چې په سپین بولدک کې د (۱۰۰) کسه په شاوخوا کې عسکر د افغانستان موجود وه.

درهي وړځی د غوسلو عسکرو د دوی مقاومت وکړی او د بولدک بیغ کښی بازار انګریزانو فتح نه کړی په دی وخت کی امان الله خان بادشاه د افغانستان وو، هغه دعوه د استقلال وکړه. او انګریزان یې دی ته مجبور کړه چی د افغانستان استقلال رسماً و پیژنی بلکه ټوله نړی د افغانستان استقلال په رسمیت و پیژندی، تر دی او سه پوری،،

اوس نو امریکایان که د دی درو واقعو څخه پند د اخلی خو پر افغانستان دی د حملی فکر د سره و باسی. بیرته دی خپل وطن ته ولاړسي، او که پند نه اخلی نو دوی دی هم ځانونه تجربه کړی چی دوی خپل بد حشر په سترګو و وینی، دوی یعنی امریکایان وائی چی موږ په نړی ټوله کښی دهشت ګردی ختمه وو، زه وایم چی اول لوی، دهشت ګرد په نړی کی تاسی یاست او تر تاسی وروسته لوی دهشت ګردان اسرائیل دی چی تاسی یې هم حمایت کوی نو که تاسی دهشت ګردی ختموی تر ټولو له مخه اسرائیل د مابین یوسی او د فلسطین مستقل حکومت په رسمیت و پیژنی، مطلب او حاصل دا دی چی هر مملکت چی امریکا ته لاس پر نامه ولاړ وی هغه دهشت ګرد نه دی، او چی د امریکا چا په بر داری نه کوی هغه مملکت دهشت ګرد دی.

والله المستعان على هذه المصائب الواردة على المسلمين.

درویش وائی چی دا خوشخبری په طور د جمل معترضه وو په مناسبت د اخیری تسبیحات التشریق ذکر سوی اوس بیرته و شرحی ته د نور الایضاح رجوع کوم، قال المصنف رحمه الله

## خوشحالتیا خبره ده

**خوشحالتیا خبره ده**: چی زه فضل الحق حقانی چی د دی کتاب لیکونکی یم او د حضرت ایوبی د شاګردانو څخه یم. څه وخت چی بیا دا کتاب ما ته د لیکلو لپاره راکړل سو، نو هغسی امریکا او اتحادیانو علیهم لعنة الله الی یوم الدین، پر مظلوم افغانستان باندی حمله وکړه. او د دی جهانی او عالمی دهشت ګردی مرتکب سو، او دنیاوال ټوله که کافران دی او که ضعیف الایمانه مسلمانان دی تماشه بین وړه ناست دی او خپل سیلونه کوی چی د افغان مجاهد اولس سره څه کیږی. رب العلمین دی د دی مظلوم اولس ناصر او مددګار سی آمین.





# بَابُ صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ وَالْخُسُوْفِ وَالْاِفْزَاعِ

باب ثابت دی په بیان کی د لمانځه د کسوف د لمر او د خسوف د سپوږمی، او د لمانځه د بیری درویش وائی: که څه هم اهل لغت کسوف او خسوف په یو معنی بولی: وهو ذهاب الضوء من كل منهما ای الشمس والقمر كما قال الازهري والجوهري وابن الفارس، او په احادیثو مبارکه وو کی دواړه لفظه په هر یوه کی د لمر توریدو او د سپوږمی د توریدو لپاره مستعمل سوی دی. لکن په عرف کی فقه شریفه کسوف په لمر کی مستعملوی او خسوف په سپوږمی کی، او صاحب قاموس وائی چی خسوف ذهاب د نور د بعض د لمر او سپوږمی ته وائی. او کسوف په لمر کی مستعمل او ذهاب د ټول نور دی که د لمر وی او که د سپوږمی.

**پوهنه** چی کسف مصدر متعدی دی باب یې ضَرَبَ يَضْرِبُ دی، كما يقال كَسَفَ اللّٰهُ الشمسَ كسفًا. او کسوف مصدر لازمی دی باب یې جَلَسَ دی. يقال كسفت الشمس كسوفًا وعلى هٰذا فقس الخسوف، چونکه مقصود دلته بیان د حال د لمر او سپوږمی وو نو ځکه مصنف لفظ د کسوف او خسوف وَرایه، **فائده**: د کسوف لمونځ سنت دی په نیز د جمهورو علماوو په جماعت مخصوصه سره بیله اذانه او اقامته، او بعض فقهاء وائی چی واجب دی كذا فی فتح القدير **فائده**: په بخاری شریف او نورو کتابو کی د حدیثو راځی چی د اهل جاهلیت دا عقیده وه چی لمر یا سپوږمی چی توریږی په سبب د مرګ د یوه عظیم شخصیت په عالم کی او یا په سبب د لوی شخصیت د پیدا والی یعنی زیږیدو. لکن آنحضرت صلی الله علیه وسلم دا عقیده رد کړه. او دا یې وفرمائیله، ان الشمس والقمر لا ينكسفان لموت احدٍ ولا لحيٰوته لكنهما آيتان من آيات فاذا رأيتم ذالك فافزعوا الى الصلوٰة او كما قال، **پوهنه**: چی افزاع جمع د فزع ده معنا یې بیره ده لکه، زلزله، سخت طوفان، یا د ورځی لویه تیاره، نو عطف د افزاع پر کسوف او خسوف عطف د عام دی پر خاص. ولی چی نور د شمس په ظلمت بدل سو او یا کامل نور

دستوری په تاریکه بدلیږی طبعًا د خلګو په زړونو کی خوف او هراس پیدا کیږی: قَالَ اللّٰهُ تَعَالیٰ وَمَا نُرْسِلُ بِالْاٰیَاتِ اِلَّا تَخْوِیْفًا۔

**فَائِدَه:** هر وخت چی پر مسلمانانو یوه واقعه د بیری راشی یعنی ماسوا د کسوف او خسوف نه لمونځونه کول په انفرادی توګه مستحب دی، کذا قال الامام الطحطاویؒ

قال المصنفؒ **سُنَّ رَكْعَتَانِ كَهَيْئَةِ النَّفْلِ لِلْكُسُوْفِ بِاِمَامِ**

سنت ګرځول شوی دی دوه رکعته (دا بیان د اقل مرتبی دی او که بالاکوی هم بنه دی) او افضل څلور رکعته دی او د دوه رکعته به پر ډول د نفلو کوی یعنی په اوقات مکروهه کی به نه کوی. کذا فی المراقی

**الْجُمُعَةِ اَوْمَامُوْرِ السُّلْطَانِ بِلَا اَذَانٍ وَلَا اِقَامَةٍ وَلَا**

دپاره د کسوف په امام پیش جمعی او یا هغه څوک چی د سلطان مامور وی. بیله اذانه او اقامته او بیله جهره

**جَهْرٍ وَلَا خُطْبَةٍ بَلْ يُنَادِى الصَّلٰوةُ جَامِعَةٌ وَسُنَّ**

په قرائت سره لکن په نیز د امام اعظمؒ، او یاران وائی چی قرائت دی په زوره وائی، او نه به خطبه وائی په اتفاق

**تَطْوِيْلُهُمَا وَتَطْوِيْلُ رُكُوْعِهِمَا وَسُجُوْدِهِمَا** سره زمونږ د ائمه وو بلکه داسی نعره دی وکړی "الصلوٰة جامعة" او سنت ګرځول شوی دی اوږد وَل د دغو دوو رکعتو په اوږدوالی د قرائت او د هغو دعاګانو چی خاص په نفلو کی راواړی، او همدارنګه اوږد وَل د رکوع او سجدو د دغو دوو رکعتو، او بعض فقهاء وائی چی قرائت دی لنډ وائی تا چی دعاګانو فارغه سی.

درویش وائی، چی اصل مقصود خو اشتغال د وخت د کسوف دی په لمانځه او دعاګانو نو که لمونځ اوږد کی دعا به کوتاه کوی او که لمونځ سپک کړی دعاګانی به ډیری وکړی لکن احادیث نبویهؐ پر تطویل د قرائت دلالت کوی ولذا قال المصؒ: وسُن تطویلهما الخ لکن په اوسنی زمانه کی چی د اکثرو امامانو حمعی عربی دعاوی نه دی زده، او که د امام هم زده





نه وی مقتدیان خو عوام دی هیڅ عربی دعا چی مناسب د کسوف د لره وی هیڅ یه نه دی زده. نو دوی به صرف ساکت ولاړ وی. نو پر مذهب د بعض فقها وو چی لمونځ کوتاه وکړی او باقی وخت په دعاګانو چی امام ئې کوی د خلګو په ژبه او خلک به امین ئې کوی او رقت قلب به په ټولو کی موجود سی چی عمل وکړه سی ډیر به ښه وی" والله اعلم بالصواب

**اختلاف** درویش وائی چی په لمانځه کی د کسوف لوی اختلاف دی. هغه دا چی امام مالکؒ او امام شافعیؒ او امام احمدؒ وائی چی د کسوف په لمانځه کی به هر رکعت کی دوی دوی رکوع کوی، او زمونږ د حنیفیانو مذهب دا دی چی صلوٰة الکسوف لکه نور لمونځونه په هر رکعت کی دی یوه رکوع کوی. زمونږ دلیل هغه حدیث دی چی ابوداؤد یه روایت کړی دی، چی په زمانه کی د علیه الصلوٰة والسلام چی د ثابت په وخت کی لمر تندری ونیوی، نو علیه الصلوٰة والسلام دوه رکعت لمونځ په جماعت وخلګو ته چی ښځی هم پکښی وی شروع کړی فاطال فیهما القیام" ثم انصرف، یعنی لمونځ یې پای ته ورسوی په داسی حال کی لمر د تندری نه صفا سوی وو، نو علیه الصلوٰة والسلام وروسته د اسی فرمائیله. چی انما هذه الاٰیات یعنی د اکسوف وغیره" یخوف الله بها عباده" بیروی خدای په دی سره خپل بندګان "فَاِذَا رَاَیْتُمُوْهَا فَصَلُّوْا، نو چی تاسی وو ینی دغه قدرت الٰهی ایات نو لمونځونه کوئ" کاحدث صلوٰة صلیتموها من المکتوبة" لکه تر ټولو نوی لمونځ چی تاسی وکړی د فرضی لمونځو نه یعنی د سحار لمونځ، نو د سحار په لمانځه کی خو یوه رکوع په رکعت کی ده نو په صلوٰة کسوف کی هم لا زما یوه رکوع ده په رکعت کی،،

**پوهسه:** چی کمال الدین بن الهمامؒ چی د حنیفیانو په مذهب کی د احادیث نبویه وو په باره کی یولوی مهارت لری په فتح القدیر کی ډیر حدیثونه په تائید کی د مذهب ده حنفیانو راوړی دی" چی د هغو ټولو ذکرکول د دی مختصری شرحی د شان نه خلاف دی. نو ده په اخیر کی داسی وئیلی دی" فهذه الاحادیث منها الصحیح ومنها الحسن یعنی ضعیف حدیث په کښی نسته او په صحیح او حسن دواړو احتجاج روا دی.

په اتفاق د اهل حدیثو او د ائمه اربعه ؒوو، وقد دارت علیٰ ثلثة امور، یعنی دغه احادیث پر دری شی باندې دائر دی یعنی دلالت کوی ۱ دا چې علیه الصلوٰة والسلام د کسوف لمونځ دوه رکعت کړی دی ۲ امر په دې سره چې صلوٰة کسوف داسې دی لکه نړدی لمونځ یعنی لکه دسهار د غسې کوی ۳ هغه بیان چې کسوف دا یا تو څخه د قدرت الٰهی دی» نو کمال ؒ وائی چې د دې حدیث څخه صراحتًا دا معلومه سوه چې صلوٰة کسوف دی په یوه یوه رکوع کوی، ورو سته کمال ؒ زیا ته کړیده: وَمَا ذَهَبْنَا اِلَيْهِ رَوَاه کبار الصحابة رض فالاخذ به اولیٰ لکثرة رواته وصحة احادیثه وموافقة الاصول المعهودة لانا لم نجد فی شئ من الصلوات الا رکوعًا واحدًا فی رکعة فیجب ان یکون صلوٰة الکسوف کذالک»

**دَرْوِیش وائی:** چې بیا نو کمال ؒ په تفصیل جواب ورکړی دی د هغو حدیثو چې پر تعدد د رکوع دلالت کوی» ان شئت التفصیل فارجع الیه» درویش وائی چې په اثبات کې د مذهب د احنا فو او په جواب کې د مخالفینو ؒ فقیه ابوجعفر الطحاوی ؒ په شرح کې د معانی الاثار ډیر لوی تحقیق کړی دی» وان شئت فارجع الیه ۰ او د غه رنګه ملاعلی قاری ؒ په شرح کې د مشکوٰة او بدر الدین العینی ؒ په شرح کې د بخاری ډیر په زیاتوری او د قوانینو سره د محدثینو ډیر بیان کړی دی»

**پُوښْتَنَه** چې نو د صلوٰة جامعة د دې د پاره ده چې خلګ راغونډ سی، او تطویل د قرائت د علیه الصلوٰة والسلام په لمانځه کې د کسوف په قدر د سورة البقره وو، کمال ؒ چې د هغې مسئلې څخه چې د امام تطویل په قرائت سره مکروه دی، صَلوٰة الکسوف» څخه دی مستثنیٰ دی. قال ولو خففها جاز وَلَایکون مخالفًا للسنة» درویش وَائی چې دا قول د کمال ؒ زما د مخنی خبری تائید کوی» قَالَ المصنف ؒ:

## ثُمَّ يَدْعُوالْاِمَامُ جَالِسًا مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ اِنْ شَآءَ اَوْقَائِمًا

او بیا دی امام په ناسته سره دعا وکړی او مخ به یې و قبلې ته وي، که ئې خوښه وی. او یا دی په ولاړی

## مُسْتَقْبِلَ النَّاسِ وَهُوَ اَحْسَنُ

دعا وکړی لکن مخ دی د خلګو خواته وی او دا ښه طریقه ده» قال شمس الائمة





الحلوانی ؒ او د احسنیت وجه یه داده ولې چې په اجتماعی نمانځو کې او دعا ګانو کې سنت هم دغه طریقه ده، او بل په داسې قسم کې د دعا په خلګو کې عجز او رقة القلب او حضور پیدا کیږی چې امام وویني چې څرنګه په عجز او نیاز او ابتهال سره دعا کوی، قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ:

## وَالنَّاسُ يُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى دُعَائِهٖ حَتّٰى يَكْمُلَ انْجِلَاءُ الشَّمْسِ

او خلګ دی امین وائی پر دعا د امام او ترهغه دی دا دعا ته دوام ورکوی چې په مکمله توګه لمر د تندری څخه خلاصیږی» قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ:

## وَاِنْ لَّمْ يَحْضُرِ الْاِمَامُ صَلُّوْا فُرَادٰى كَالْخُسُوْفِ

او که امام جمعه مثلاً حاضر نه وو نو بیا دی خلګ یوازی لمونځونه وکړي لکه په خسوف القمر کې چې یوازی کوي، ولې چې سپوږمی خوواره په زمانه کې د علیه الصلوٰة والسلام تندری نیولی ده او په هیڅ حدیث موږ ته نه دی رسیدلی چې علیه الصلوٰة والسلام دی د هغه د پاره خلګ جمع کړي وی او لمونځ دی په جماعت سره اداء کړی وی کذا فی المراقی» قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ:

## وَالظُّلْمَةِ الْهَائِلَةِ نَهَارًا اَوِالرِّيْحِ الشَّدِيْدَةِ وَالْفَزَعِ

او یا لویه بیروونکی تاریکه جوړه سی د ورځې او یا سخت او تند باد خلاف العادة پیدا سی یعنی که د ورځی وی او که د شپې وي. او یا بیره وی مثلاً د زلزلې له سببه یا د ډیرو غنمو تناوو په سبب یا د پرلپسې تیزو بریښنا وو له سببه الی غیرذالک» یعنی په دغه وخت کې دی هم خلګ یوازی یوازی لمونځونه کوی. او په جماعت سره دی نه کوي،

**فَائِدَه:** د ډیرو خلاف المعتاد بیرو لکه ډیر بارانونه، یا واوری هم خلګ لمونځونه یوازی یوازی کوی چې دا مصیبت خدای دفع کړي. او په عمومی امراض و با ئیه وو کې دې هم خلګ لمونځونه کوی او دعا ګانی دی هم کوی په دفع کې د هغو مرضونو» ط»

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه امین.

په اتفاق د اهل حدیثو او د ائمه اربعه وو، وقد دارت علیٰ ثلثة امور، یعنی د غه احادیث
پر دری شی باندی دائر دی یعنی دلالت کوی ؏ داچی علیه الصلوٰة والسلام د کسوف
لمونځ دوه رکعت کړی دی ؏۲ امر په دی سره چی صلوٰة کسوف داسی دی لکه نږدی لمونځ
یعنی لکه د سحار د غسی کوی ؏۳ هغه بیان چی کسوف د ایا تو څخه د قدرت الهی دی۔ نو
کمال وائی چی د دی حدیث څخه صراحةً دا معلومه سوه چی صلوٰة کسوف دی په یوه یوه رکوع
کوی، ورو سته کمال زیاته کړیده: وَمَا ذَهَبْنَا اِلَيْهِ رَوَاه كبار الصحابة ؓ فالاخذ
به اولیٰ لکثرة رواته وصحة احادیثه وموافقة الاصول المعهودة لانا لم نجد فی شئ من
الصلوات الارکوعًا واحدًا فیجب ان یکون صلوٰة الکسوف کذالک،،

## دَرْوِيش وائی:

چی بیانو کمال په تفصیل جواب ورکړی دی د هغو مدشیو چی پر تعدد د
رکوع دلالت کوی، ان شئت التفصیل فارجع الیه،، درویش وائی چی په اثبات کی د مذهب
داحنافو او په جواب کی د مخالفینو فقیه ابوجعفر الطحاوی په شرح کی د معانی الاثار م لوی
تحقیق کړی دی،، وان شئت فارجع الیه، او د غسی نگه ملا علی قاری په شرح کی د مشکوٰة او بدر
الدین العینی په شرح کی د بخاری ډیر په زړه پوری او د قوانینو سره د محدثینو ډیر بیان کړی دی،،

## پُوښتَنه

چی نعره د صلوٰة جامعةً د دی د پاره ده چی خلک راغونډ سی، او تطویل د قرائت
د علیه الصلوٰة والسلام په لمانځه کی د کسوف په قدر د سورة البقره وو، کمال چی د
هغی مسئلی څخه چی د امام تطویل په قرائت سره مکروه دی،، صلوٰة الکسوف،، څنډی مستثنیٰ
دی. قال ولو خففها جاز ولا یکون مخالفًا للسنة،، درویش وائی چی دا قول د کمال زما د
ښه خبری تائید کوی،، قال المصنف ؒ:

## ثُمَّ يَدْعُوْ الْاِمَامُ جَالِسًا مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ اِنْ شَاءَ اَوْ قَائِمًا

او بیا دی امام په ناسته سره دعا وکړی او مخ به یې و قبلې ته وي، که ئې خوښه وي. او یا دی په ولاړی

## مُسْتَقْبِلَ النَّاسِ وَهُوَ اَحْسَنُ

دعا وکړی لکن مخ دی د خلکو و خواته وي او دا ښه طریقه ده،، قال شمس الائمة





الحلوانی او د احسنیت وجه یه داده ولی چی په اجتماعی نما نځونو کی او دعا گانو کی سنت هم
دغه طریقه ده، او بل په داسی قسم کی د دعا په خلکو کی عجز او رقة القلب او خضوع پیدا
کیږی چی امام و ویني چی څرنګه عجز او نیان او ابتهال سره دعا کوي،، قال المُصنف ؒ:

## وَالنَّاسُ يُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى دُعَائِهٖ حَتّٰى يَكْمُلَ اِنْجِلَاءُ الشَّمْسِ

او خلک دی امین وائی پر دعا د امام او تر هغه دی دا دعا ته دوام ورکوی چی په مکمله توګه لمر
د تندری څخه خلاصیږی،، قَالَ الْمُصنف ؒ:

## وَاِنْ لَمْ يَحْضُرِ الْاِمَامُ صَلُّوْا فُرَادٰى كَالْخُسُوْفِ

او که امام جمعه مثلاً حاضر نه وو نو بیا دی خلک یوازی لمونځونه وکړی لکه په خسوف القمر کی
چی یوازی کوی، ولی چی سپوږمی خو واره په زمانه کی د علیه الصلوٰة والسلام تندری نیولی ده
او په هیڅ حدیث مونږ ته نه ده رسیدلی چی علیه الصلوٰة والسلام دی د هغه د پاره خلک
جمع کړي وی او لمونځ دی په جماعت سره اداء کړی وی کذا فی المراقی،، قَالَ المُصنف ؒ:

## وَالظُّلْمَةِ الْهَائِلَةِ نَهَارًا اَوِ الرِّيْحِ الشَّدِيْدَةِ وَالْفَزَعِ

او یا لویه بیرونکی
تاریکه جوره سی د ورځی او یا سخت او تند باد خلاف العادة پیدا سی یعنی که د ورځی وی او که
د شپی وي. او یا بیره وی مثلاً د زلزلی له سببه یا د ډیرو غشو تنا وو په سبب یا د
پرله پسی تیزو بریښنا وو له سببه الی غیر ذالک، لیعنی په د غه وخت کی دی هم خلک
یوازی یوازی لمونځونه کوی. او په جماعت سره دی نه کوي،

**فَائِدَه:** د ډیرو خلاف المعتاد بیرو لکه ډیر بارانونه، یا واوری هم خلک لمونځونه
یوازی یوازی کوی چی دا مصیبت خدای دفع کړي. او په عمومی امراض و وبائیه وو کی دی هم
خلک لمونځونه کوی او دعا گانی دی هم کوي په دفع کی د هغو مرضونو،، ط،،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه آمین

احمقوں کی کمی نہیں غالب ؛ ایک ڈھونڈو ہزار ملتے ہیں۔ مرزا غالب الشاعر المشہور.
نوجوانوں کو میری آہ سحر دے ؛ پھر ان شاہین بچوں کو بال پر دے ؛ علامہ اقبال الشاعر المشہور.
سبق پڑھ پھر صداقت کا، عدالت کا شجاعت کا ؛ لیا جائے گا تجھ سے کام دنیا کی امامت کا ؛ .....

# بَابُ الِاسْتِسْقَاءِ

**پوښته**: چې ستيا او بوته وائ. اوسين او تاء دپاره دَ طلب دی. لکه په علم صرف کی چې معلوم خبره ده. نو د استسقاء معنی لغوی طلب دی داوبو مطلقًا که څه هم يو سړی وبل ته ووائی چې ماته اوبه راکړه. او په شرع شريفه کی طلب دی دَ باران د خدای پاك جل سلطانه څخه په خاصه طريقه باندی چې بيان بی راشی، يعنی په استغفار او حمد او ثناء سره د پروردگار او په ډير تضرع او تذلل سره د رب جل شانه څخه طلب د باران نافع کول دی: قَالَ المصنفؒ چې استسقاء مشروع ده په قرآن مبارك سره، او په سنت نبوی سره او په اجماع امت سره» اما الکتاب، فهوما حکی ان نوح عليه الصلوة والسلام لما دعی قومه مدةً مديدةً الی الايمان وترك الشرك فلم يؤمنوا به الا نذر قليل، حبس الله عنهم القطر، نو خدایؒ د دوی څخه بارانونه بند کړه او شځی ئی د اولادو څخه وچی سوی څلويښت کاله، نو نوح عليه السلام ودوی ته ووئيل چې که تاسی ايمان راوړی» يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا، وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ الآيه» او داشرعی مسئله ده چې خدای پاك چې دده مخه ادیا نو په قرآن کی يو بيان وکړی او زموږ منع ونکړی هغه زموږ دپاره هم شرعه ده، کما فی کتب اصول الفقه؛ واما الحديث: فقد روی عنه صلی الله عليه وسلم انه استسقی يوم الجمعة حين الخطبة علی المنبر النبوی حين شکی اليه الاعرابی بقحوط المطر وقصته مشهورة وفی کتب الصحاح مذکورة وهذا کان بعد النبوة، وقد استسقی ابو طالب بطلب قريش به صلی الله





عليه وسلم حين کان صلی الله عليه وسلم غلامًا بمکة اخرج ابن عساکرؒ هذه القصة بتفصيل ولذالک يقول ابو طالب فی شانه ؓ: ـــه
وابيض يستسقی الغمام بوجهه ؛ ثمال اليتامی عصمة للارامل ؛
واما الاجماع فقد اجمعت الامة سلفًا وخلفًا علی الاستسقاء من غير نکير، قال الامام الطحطاویؒ: چې استسقاء سنت ده په نيزد حاجت. يو خو په داسی ځای کی چې خلک به نه وَلې لری او نه رود، او نه ځاهان چې دوی خپل ځانونه او مواشی په اوبه کی لکه لوی لوی دښتونه، او يا ريگونه چې مالداران هلته استوگنه کوی. او بل داچې ځا يونه چې رودونه او وَلې او ځاهان خووی لکن دَ خلگو د کښتو يا باغو وغيره کفايت نه کوی، او بيله ضرورت به خلک استسقاء نه کوی؛ قهستانی» قَالَ المُصَنِّفُ:

صَلوٰةٌ مِّنْ غَيْرِ جَمَاعَةٍ **پوښته**: استسقاء لره لمونځ سنته يعنی نفلی بيله جماعته، چې نفس لمونځ مراقی والاداب چې روا دی بيله کراهته او سنت نه دی، ولی چې په حديث کی د بخاری وغيره داسی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله عليه وسلم ته چې شکايت د قحط المطر وسو، رفع يديه يستسقی او د لمانځه ذکر په کښی نشته، او بل داچې عمر رضی الله تعالیٰ عنه چې دَ خلگو سره په استسقا کول لمونځ نه کړی دی. او عمر رضی الله تعالیٰ عنه اشد الناس اتباعًا لسنة رسول الله صلی الله عليه وسلم و. ابوبکر الصديق رضی الله تعالیٰ عنه، او بل داچې آنحضرت صلی الله عليه وسلم په تولو صحابهؓ سره استسقاء کړی نو که لمونځ په کښی نو ده لمانځه ذکر به ئی په ډير شهرت سره په روايا تو کی د حديثو راغلی وای، لکن مَرَاقی او امام طحطاویؒ وائی چې په يوه روايت شاذه کی روايت په عبد الله بن عباسؓ او عبد الله بن زيد کړی دی د آنحضرت صلی الله عليه وسلم دَ لمانځه کولو په استسقاء راغلی دی، قَالَ الطحطاویؒ وهو حديث شاذ لايؤخذ به، نو د غه سبب موږ د جواز د لمانځه وايو، او ددی سببه په ابو حنيفةؒ لمونځ د استسقاء سنت نه بولی، لکن امام اعظمؒ داسی هرگز نه دی وئيلی چې په استسقاء کی لمونځ کول بدعت دی لکه بعض دښمنان چې هغه ستر امامؒ ته دا نسبت کوی، او امام ابو يوسفؒ او

امام محمد وائی چی امام دی دوه رکعته نفل لمونځ وخلګوته ورکړی اوجهر بالقرائة دی هم وکړی لکه داختر لمونځ یعنی په جهر کی لکن اذان اواقامت به نه کوی، لکن امام محمد وائی چی وروسته تر لمانځه دی امام دوی خطبی وَوائی اوپه مابین کی دی کښینی، اوابو یوسف والی چی یوه خطبه دی ووائی. اوورو سته دی شروع په دعا ګانوسره وکړی. دلیل دیاره انوی هغه حدیث دی چی دابن عباس رضی الله عنه مروی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم یووخت په خلګوسره دوه رکعه لمونځ په جهر سره وکړی.

**پوښتنه** که اوس امام په جماعت سره لمونځ وخلګوته ورکړی. آیا په نیزد امام اعظم رح دغه کار مکروه دی اوکه څرنګه؟ **جواب**: دحاکم شهید چی دکافی نخه په نقل کړی دی داسی معلومیږی چی مکروه دی، اوشیخ الاسلام وائی که جماعت سُنت نه دی په نیزد امام اعظم رح لکن روادی بیله کراهته، قال الامام الطحطاوی وعلیه التعویل، قال المصنف:

## وَلَهُ اِسْتِغْفَارٌ وَيُسْتَحَبُّ الْخُرُوجُ لَهٗ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ

اود استسقاء دپاره طلب د بخښنی دی خلګ کوی دخدای پاک نه لقوله تعالیٰ: فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ اِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا الآیة

اومستحب دی وتل دپاره داستسقاء دری ورځی لکن پر له پسی، اوتر دری ورځی زیات منقول نه دی» قال المصنف:

## مُشَاةً فِيْ ثِيَابٍ خَلِقَةٍ غَسِيْلَةٍ اَوْ مُرَقَّعَةٍ

پیاده به وزی په داسی کالوکی چی زاړه وی لوپریولی وی، یعنی پینه کړی نه وی، اویا پینه کړی وی، مراقی وائی چی پینه کړی کالی اولیٰ دی. چی خضوع اوعجزته نزدی دی، قال المصنف:

## مُتَذَلِّلِيْنَ مُتَوَاضِعِيْنَ خَاشِعِيْنَ لِلّٰهِ تَعَالٰى نَاكِسِيْنَ رُؤُسَهُمْ

یوه سه چی تذلل اوتواضع اوخشوع الفاظ دی چی معنایه نزدی ده. صرف فرق یه دادی چی خشوع دزړه صفت دی. اوتذلل اوتواضع داعضاء ظاهروو صفت دی. ترجمه: اوکښته به کړه ولی وی سرونه خپل، په خلاصه کی وائی چی سنه صورت داستسقاء دادی، چی هروخت چی





ولی، اورو دونه وچی سی. اویا اوبه ترکفایت د څکلو اودباغو مثلاً کمی سی، اوباران ونه ته خپل وخت وځنډیږی، نوامیرد ولایت دی خلګ امرکړی چی دری ورځی دی روژی ونیسی او حسب الطاقت دی نفلونه کوی، اوکه یوپربل دنیائی ظلم کړی وی ... کړی. اوکه نورظلم یه کړی وی دهغه دی عفوه وغواړی د یوبل نخه، اوپرنور وشخه دی نورونو دی خدای ته توبه وکاږی، اوغلرم ورځ دی په فوق الذکر شرطوسره وصحراته ووزی، اوکه چیری باران ونه په وخت کی. ترڅلورمی ورځی د مخه شروع سوه. نوډپاره دشکردی صحراته ووزی اونوری دعا ګانی دی وکړی.

## وَاقِعَه

ترڅو اوسنی یعنی ۱۴۲۲ھ تی دیرش کاله تخمیناً دمخه په قندهار کی دباران قحطی جوړه سوه نووالی دقندهار امروکړی چی خلګ دی صباواستسقاء ته اماده سی، چی ځابنت سونو درولیش ځان اوخپل طالبان سره ټولومذکوره وو برابر کړه، اوو عیدګاه ته چی هوری داستسقا ځای تا کل سوی وو روان سوو، هلته چی ورغلو تیز رفتاره موټران دتجارانو ولاړه دی که ګورم فلانی مولوی صاحب دیو تجارسره سپور، عینکی یه پر سترګو ایښی دی او دیر زیبا کالی اوچوغه یه هم فوق العادة اغوستی ده راورسیدی.

قصه مختصره ټوله ملایان صاحبان په ورته شان اوشوکت سره دښاخته کانو په تیزرفتاره موټرانوکی راغله. اولوی خطیب دقندهار ترټولوپه لوی شان اوشوکت سره را ورسیدی» درولیش خپلو ملګروته وویل چی خوند داستسقاء نسته، ولی چی دعاوی به هم دغه جاه اوجلال والا ملایان کوی، نوګمان نه کوم چی قبولی به سی، او داغسی هم پلینه سو. اواستسقاء هم دغریوه ورځ وسوه وبس، اوکال هم هغسی وچ ووه» قال المصنف

## مُقَدِّمِيْنَ الصَّدَقَةَ كُلَّ يَوْمٍ قَبْلَ خُرُوْجِهِمْ

اوخیرا تونه دی کوی مسلمانان هره ورځ تر وتود مخه لان الصدقة ترد البلاء»

قال المصنف **وَيُسْتَحَبُّ اِخْرَاجُ الدَّوَابِ وَالشُّيُوْخِ الْكِبَارِ وَالْاَطْفَالِ**

او ښه کار دی چې خلک دی باسی ځای ته د استسقاء خپل چارپایان، غواوی، بوزی، میږی سره د اولادو د دوی. او دغه رنګه دی باسی سپین ږیری خلک چې کلان سال وی، او دغه رنګه دی وباسی ګچنیان کوچنیان کم عمره وی، اما الصدقة «فهی تطفئ غضب الرب جل وعلا وتجلب رحمته التی من جملته الامطار» قال فی المراقی چې مسلمانانو ته ښائی چې تجدید د توبې دی هم وکړی» او قوله مسلمانانو ته دی طلب د بخښنې هم وکړی، او دا هم مستحبه ده چې بهائم او اولاد د دوی دے هم ورسره جلا کړی، تا چې سره د ژړا د خلګو ژړا د حیواناتو او د اولادو د دوی، او د اولادو پر مندو باندی پړی ته سی، شاید رحمت الٰهی هم په جوش راسی، او د رحمت باران ووریږی» ته نګرید ابر کی خندد چمن ؛ تا نګرید طفل کی جوشد لبن، هر کجا اشک دوان رحمت شود ؛ هر کجا آب روان سبزه شود ؛ واما اخراج الشیوخ والاطفال، فلما قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: هل تُرْزَقُوْنَ وَ تُنْصَرُوْنَ اِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ» بخاری، وفی حدیث اٰخر، لَوْلَا شَبَابٌ خُشَّعٌ، وبهائم رُتَّعٌ، وشیوخ رُكَّعٌ، واطفال رُضَّعٌ، لَصُبَّ علیکم العذاب صَبًّا» مراقی: قال المصنف:

**وَفِیْ مَكَّةَ وَبَیْتِ الْمَقْدِسِ فَفِی الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْمَسْجِدِ الْاَقْصٰی**

یعنی خروج وصحراته په غیر کی د دغو ښارو غواړي، او په مکه مکرمه کی او په بیت المقدس کی نو

**یَجْتَمِعُوْنَ وَیَنْبَغِیْ ذٰلِكَ لِاَهْلِ مَدِیْنَةِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ**

د استسقاء د پاره دی خلک جمع سی په مسجد حرام کی د مکی مکرمی او په بیت المقدس کی دی په مسجد اقصی کی سره غونډ سی، او مراسم د استسقاء دی پر ځای کړی، او دغه رنګه ښائی واهل ته د مدینی منوری چې په مسجد نبوی کی دی مراسم د استسقاء پر ځای کړی،» **فائده**: په دی درو مسجدو کی دی بهائم نه راولی، وجه یه داده چې





سلف او خلف تواه مراسم د استسقاء په حرم مکی او مسجد اقصی کی پر ځای کوله، او بل دا ځای نو شرافت په دربار کی د رب العزت لری، او شرف لره د مکان لویه برخه سته په نزول کی د رحمت الٰهی:
واما مدینة الرسول صلی الله علیه وسلم فلا ریب فی نزول الرحمة فی تلک البقعة المبارکة «وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِیْنَ» وهو صلی الله علیه وسلم هو الوسیلة لامته فی الدارین وهو الشفیع المشفع، نو خلک دی د ذات انور د علیه الصلوة والسلام وسیله وګرځوی په دفع کی د شدت د قحط، او دغه رنګه وسیله دی وګرځوی ذات انور د ابوبکر الصدیق رضی الله تعالی عنه او ذات انور د عمر رضی الله تعالی عنه.

**مسئله**: درویش وړاندی وویل چې دواب دی د غو درو ځایو ته نه راولی مراد دا وو چې داخل ته د دغو درو ځایو دی نه راولی، مګر مراقی وائی چې دواب خو دی راولی لکن خارج ابواب المساجد المذکورة دی ودروی.، قال المصنف:

**وَیَقُوْمُ الْاِمَامُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ رَافِعًا یَدَیْهِ وَالنَّاسُ قُعُوْدٌ**

او ودی دریږی امام مخامخ وقبلی ته لاسونه دی پورته کړی وی، او خلک دی ناست وی

**مُسْتَقْبِلِیْنَ الْقِبْلَةَ یُؤَمِّنُوْنَ عَلٰی دُعَائِهٖ**

مخامخ وقبلی ته او خلک دی امین وائی پر دعا د امام، **فائده**: په حدیث شریف کی چې روایت ئې عمر کړی دی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې استسقاء کوله په مدینه منوره» لاسونه یه دونه پورته کړه چې سپین والی د تخرګو یه معلومیدی. او ولاړه وو قبلی ته مخامخ **پوهسه**: چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم دونه بلیغ پورته کول د لاسو چې تخرګونه ئې معلومیدل په اجتماعی دعا کی بیله استسقاء بل ځای نه ده ثابته داسی نه ده چې علیه الصلوة والسلام اجتماعی دعا بیله استسقاء بل وخت نه ده کړی ،،

قَالَ المصنفؒ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيْثًا هَنِيْئًا مَرِيْئًا

اوامام به په دعا کی وائی ای خدایه مونږ اوبه کړی په باران سره. خلاصوونکی د سختی نه چی نماء و کړی حیوانا تو ته بیله ضرره، چی عاقبت یه ښه وي، قَالَ المصنفؒ:

مَرِيْعًا غَدَقًا مُجَلِّلًا سَحًّا طَبَقًا دَائِمًا وَمَا اَشْبَهَهٗ

چی اوړونکی د زیادت وی په کښتو کی، چی ډیری اوبه په کښی وی، چی پټوونکی د افق وی یعنی عام وی پر ټولو اطرافو، چی پر ځمکه یه ځکان په زوره لوېږی، چی ځمکه یه گرده نیولی وی، او دوام دار وي یعنی په قدره د حاجت د کار یږو، روده، ولو، او ځکی، او یا مشابه د دغو الفاظو سره

سِرًّا اَوْجَهْرًا وَلَيْسَ فِيْهِ قَلْبُ الرِّدَاءِ

که دغه دعاء کرار کوی او که په زوره لکن جهر یه افضل دی تا چی ټول خلق یه هم واوري، او نشته په استسقاء کی اړول د پټو پر راسته او چپه اوږه، په نیزد امام اعظمؒ او ابو یوسفؒ: ولی چی امیر المؤمنین عمرؓ او نورو صحابهؓ وو چی استسقاء کړیده قلب الرداء په کښی نه دی راغلی، پُوهْسَه: چه امام اعظمؒ د هغه تحویل الرداء نه نه دی منکر چی په احادیثو مبارکه وو کی راغلی ده لکه دده مبارك حاسدان چی وائی بلکه امام اعظمؒ وائی تحویل الرداء سنت نه دی، والا لفعله الصحابة الکرامؓ التابعین لسنته شبرًا بشبرٍ بلکه تحویل الرداء آنحضرت صلی الله علیه وسلم تبرکًا کړیده. او س هم که، خوك تبرکًا کوی روا ده، قَالَ المصنفؒ:

وَلَا يَحْضُرُهٗ ذِمِّيٌّ

او نه دی حاضر یږی و استسقاء ته اهل ذمه، هر نوع کافر چی وی، لنهی عمرؓ عنه، م، لانهم مبغوضون له تعالیٰ، فَائِدَة: د علیه الصلوٰة والسلام نه تا بته دعا په استسقاء کی په دعو کلما تو سره وه. اَللّٰهُمَّ غَيْثًا مُغِيْثًا نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ، عَاجِلًا غَيْرَ اٰجِلٍ، اَللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهَائِمَكَ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ، وَاحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ، اَللّٰهُمَّ اَنْتَ اللّٰهُ لَا





اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ الْغَنِیُّ وَنَحْنُ الْفُقَرَاءُ اَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ، وَاجْعَلْ مَا اَنْزَلْتَ قُوَّةً وَبَلَاغًا اِلٰى حِيْنٍ، او که چیری باران ډیر سو او خلك د ودانیو پر نړیدو و بیریدل لکه په زمانه کی د علیه الصلوٰة والسلام هم په خطبه کی دعا وکړه. او داسی پیښه وه. چی یو اعرابی د جمعی په ورځ چی علیه الصلوٰة پر خطبه ولاړ وو سوال د باران ئی وکړی، او علیه الصلوٰة والسلام هم په خطبه کی دعا وکړه: اللهم اسقنا درې واره، راوی د حدیث وائی ورځ راپورته سول لکه سیر او باد پیدا سو. حالانکه مخکی تر دی آسمان بیخی صاف وو یعنی هیڅ وریځ نه معلومیده نا ببره داوریځ پیدا سوه. په آسمان کی سره تنکه سوه. او باران شروع سو.

آنحضرت صلی الله علیه وسلم پر هغه خطبه ولاړ وو چی بام دده مبارك پر برابر سری سو او اوبه دده مبارك په ږیره کی توی سوې، او دا باران تر راتلونکی جمعه پوری ورید ی او خلك ډیر په تنگ سوه نو هغه صحرائی یا بل په داوړوسته جمعه په وخت کی د خطبی د علیه الصلوٰة والسلام یه عرض وکی چی د ډیر باران نه هُدِمَتِ الْبُيُوْتُ آه، نو ته خدای ته خواست وکه چی دا باران د مونږ نه بند کړي، نو علیه الصلوٰة والسلام داسی دعاء وکړه، اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا اَللّٰهُمَّ عَلَى الْاٰكَامِ وَالظِّرَابِ وَبُطُوْنِ الْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ، راوی د حدیث وائی چی علیه الصلوٰة والسلام په وخت کی د دعا وئیلو د حوالینا دی په دواړو لاسو به اشاره کوی د شاه وخولته. او وریځ به هم دده اشارو سره هر طرف ته روانه وه، حتی چی مونږ لمونځ وکړی د جمعی راو وتلو اسمان بالکل صاف وو، او بیو ځائمکی باران نه وو وهکذا فی البخاری وغیره من کتب الصحاح، وما ذکرته مختصر منه، ولنعم ما قیل فی مدحه صلی الله علیه وسلم: لایمکن الثناء کما کان حقه : بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر: وقیل: آفاقها گردیده ام بسیار خوبان دیده ام اما تو چیزی دیگری:

# باب صلوة الخوف

باب دی په بیان کې د احکامو د لمانځه چې په وخت کې د ویرې د دښمن د حملې یعنی د کافرانو چې پر مسلمانانو یې کوي، **پوهـه**: چې د خوف لمونځ پر څو کیفیت په احادیثو مبارکو وو کې راغلی دي: چې ټول کیفیات یې جائز دي په اتفاق د اماما نو د څلورو مذهبو صرف اختلاف د دوی په دې کې دی چې اولی یې کوم کیفیت دی، لکن اول مشروعیت د صلوٰة خوف خو په جنګونو کې د کفارو سوی دی لکن صلوٰة خوف اوس په نورو اسبابو سره هم روادی چې بیان به یې راشي إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰی،

**فائـده** اضافت د صلوٰة وخوف ته اضافت ده و شرط ته یعنی د دغه لمانځه پر هغه کیفیت چې راشي. شرط یې خوف دی یعنی که خوف نه وي نو پر دغه کیفیت لمونځ نه دی روا،

**د فائـدي خبـره** په کنز او هدایه کې وائي چې شرط د صحت د صلوة الخوف واقعي ویره ده د دښمنه څخه او سخت والی دی د ویرې د حملې، یعنی نفس حضور د دښمن یا قرب د ده د دښمن کافي نه دی، لکن امام طحاوی وائي چې دا قول د بعض دی یعنی د تحقیق خلاف دی، او عام فقهاء پر دې مذهب دي چې نفس حضور د دښمن کښته هم مسلمانانو نه څنډی بېرېږي کافي دی په صحت کې د صلوة الخوف، ولې چې معتبر په رخصات شرعیه وو کې وجود د سبب ظاهر دی، نو حضور د دښمن سبب ظاهر دی د خوف نو په ځای د ... واقعي خوف درېږي، لکه چې معتبر په اباحت د خوړلو د روژې ... مشقت دی ... لکن چونکه سفر سبب ظاهر دی د مشقت نو سفر په ځای کې د مشقت واقع ... رول شو حتی چې نفس مسافرت ته د روژې خوړل روا دی کما تقرر ... معتبرات کتب الفقه، بلکه په تحفه او عنایه کې وائي چې نفس قرب العدو هم سبب د صحت د صلوة الخوف،





قال المصنف: **هِيَ جَائِزَةٌ بِحُضُوْرِ عَدُوٍّ وَبِخَوْفِ غَرَقٍ اَوْ حَرَقٍ**

او لمونځ روادی په سبب د حضور د دښمن، د عبارت څخه د مصنف دا سې معلومیږي چې حضور د دښمن شرط دی نفس قرب کافي نه دی. او دا هم معلومه شوه چې حقیقي ویره نه ده شرط، او دغه رنګه روادی صلوة خوف په سبب د ویرې د غرق والي د کښتۍ او دغه رنګه روادی صلاة خوف که ویره د سوځنګ داور وه، یعنی که بعض نفرو داور نیولی وو نه کې او ټول پر لمانځه ودریږي او به انتشار پیدا کړي او بعض متاع او شیان به وسوځي، قال المصنف:

**وَاِذَا تَنَازَعَ الْقَوْمُ فِى الصَّلوٰةِ خَلْفَ اِمَامٍ وَاحِدٍ فَيَجْعَلُهُمْ طَائِفَتَيْنِ** که چیرې د خلکو په دې کښې اختلاف شو چې په یوه امام پسې به اقتداء کوي یعنی دوه امامه به نه وي. نو د دې امام واحد څنګ دوی ډلې وګرځوي،

**پوهـه**: چې دوی ډلې که سره برابرې وي په عدد کې. او یوه ډله تر بلې ډلې ډېروي په حساب کې دواړې لاری روادی، ولې چې لفظ د طائفة عام دی، حتی چې یوه سړی ته هم ویل کیږي. حتی که مسلمانان درې کسه وه او د دښمن څخه بیریده یو دی امام سي او بل دی پسې ودریږي. او دریم دې پېره کوي، چې امام یو رکعت وکړي مثلاً بیا دې پېره دار راشي هغه دې پسې ودریږي او هغه دې یعنی د مخ سړي دې پېره کوي، قال المصنف:

**وَاحِدَةٌ بِاِزَاءِ الْعَدُوِّ وَيُصَلِّى بِالْاُخْرٰى رَكْعَةً مِّنَ الثُّنَائِيَّةِ**

او ودی دروي یوه ډله برابره د دښمن وغیره د پاره د پیرې او امام دې ورکړي به هغه بله ډله سره یو رکعت د دوه رکعتي لمانځه څخه خواه اصلاً دوه رکعتي لمونځ وي لکه د سحار لمونځ، او یا په سبب د منفرد دوه رکعته راغلي وي،

قال المصنفؒ **وَرَكْعَتَيْنِ مِنَ الرُّبَاعِي أَوِ الْمَغْرِبِ** اودوه رکعتونه دی امام په اوله ډله

سره اداء کی که لمونځ څلور رکعته وو، اویا د ماښام لمونځ وو، د ماښام د دوو رکعتونو په

اوله ډله سره د لیل دا دی چې د ماښام لمونځ خونه نیمې کیږی نو ختما دېوی ډلی دا به دوه

رکعت وی، او اول ډله اولی په دوه رکعته سره لتقدمها» قال المصنفؒ

**وَتَمْضِي إِلَى الْعَدُوِّ مُشَاةً** اوولاړه دې شی دغه طائفه چې د امام سره ئې لمونځ وکړ

د دښمن وطرفته پیاده یعنی هغه اوله ډله ۔

**مسئله**: که چیری دوی سپاره سی اویا د صف وبل خواته ولاړ سی لمونځ به باطل سوی

قال المصنفؒ **وَجَاءَتْ تِلْكَ فَصَلَّى بِهِمْ مَا بَقِيَ وَسَلَّمَ وَحْدَهُ**

او راد سی هغه ډله چې په پیره کی وه یعنی په امام پسی دی نیت وکړی نو امام دې دوی ته

ما بقی من الصلوٰة ورکړی، او امام دې یوائې سلام وگرځوی ولی چې د ده لمونځ خو پوره سو،

قال المصنفؒ **فَذَهَبُوا إِلَى الْعَدُوِّ ثُمَّ جَاءَتِ الْأُولَى وَأَتَمُّوا بِلَا قِرَاءَةٍ**

**وَسَلَّمُوا وَمَضَوْا** او بیا دی دا دوهمه ډله ولاړه سی وخته د دښمن، او هغه اوله

طائفه دی راسی یعنی هغه اول ځای ته دی راځی او کی خوښه وه هوری

دی خپل پاته لمونځ پوره کړی، او بیله قرائت وبه لو ځکه ولی اوله ډله خولاحق دی او لاحق خلف

الامام دی حکماً او بسلام دی وگرځوی چې د دوی لمونځ هم پوره سو، او بیا دی دا ډله ولاړه سی

د دښمن وخواته د پیرے ساره ۔ قال المصنفؒ:

**ثُمَّ جَاءَتِ الْأُخْرَى إِنْ شَاءُوا وَصَلَّوْا مَا بَقِيَ بِقِرَاءَةٍ**

او بیا دی راسی هغه بله ډله چې اوله ډله وه کی خوښه وه ۔ یعنی اول ځای ته، او کی هوی لمونځ

کاوه د دوی خوښه ده، او دا ډله دی پوره هغه پاته لمونځ په قرائت سره ۔ ولی چې دوی خو





مسبوق دی او پر مسبوق قرائت لازم دی»

**فائده** مراقی والی چې په صلوٰة الخوف کی ډیر روایتونه راغلی دی ۔ او اصح

روایتونه یه شپاړس دی [16] او علیه الصلوٰة والسلام ۲۴ واره صلوٰة

خوف کړی دی، لکن امام طحطاویؒ د زاد المیعاد څخه نقل کړی دی" چې اصول د دغو حدیثو

او کیفیات د صلوٰة خوف ۶ دی او دغه کسان چې د ډیر والی د کیفیاتو شوق لری هر وخت چې

اختلاف د راوتو د حدیث وویني هغه بل کیفیت د صلاة خوف گرځوی او هغه سی نه ده بلکه

دا صرف اختلاف د راویا نو دی و بس، او ابن حجرؒ په فتح الباری کی وائی هذا هو المعتمد"

او په درکی وائي چې صلاة خوف په صحیح روایتو کی په څلور ځایه کی ثابت دی،

غزوة ذات الرقاع، غزوة بطن نخل، غزوة عسفان، غزوة ذی قرد،

**درویش وائی**: چې والله اعلم مصنفؒ د کوم ځایه څخه صحیح روایات ۱۶ بولی

او سره د دی چې زاد المعاد یه ۶ بولی. او دغه رنګه مصنفؒ ۲۴ واره صلوٰة خوف د علیه

الصلوٰة والسلام څخه نقل کړی دی، او صاحب الدر صرف ۴ واره صلوٰة خوف د علیه الصلوٰة

نقل کړی دی، او د دی دوو عددو ۔ یعنی ۱۶ = او شپږ او ۲۴ د څلور بېخی ډیر فرق دی

نو باید د دی خبرو معلومات د کتابو څخه د حدیثو، او د شروحو څخه د حدیث د کتابو تر

لاسه سی، لکن د ا مختصر شرحه د دی تحقیق ځای نه دی، او مراقی وائی چې دا ټول کیفیات

روا دی، والاولی والاقرب من ظاهر القرآن هو الوجه الذی ذکرناه یعنی فی المتن»

**مسئله**: که امام په لمانځه کی د خوف سهوه سو سجده سهوه به کوی، دی او مقتدیان

ټوله، ولی چې احادیث د سهوی عام دی.

**مسئله** صلوٰة خوف غلواو باغیانو لره نسته، ولی چې دوی اعداء الله دی پر دی

سفر او صلاة خوف د احیاء الله د پاره دی. قال المصنفؒ:

**إِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ صَلَّوْا رُكْبَانًا فُرَادَى بِالْإِيمَاءِ إِلَى أَيِّ جِهَةٍ**

**قَدَرُوا** او که سخته سوه بیره د دښمن د خوا څخه یعنی د دښمن د امهلت مسلمانانو ته نه

ورکاوه چې دوی د دا بو څخه یا په اوس وخت کې د موټرانو څخه کښته سی او صلوة خوف پر کیفیت مذکوره وکړي بلکه جنګ یه شروع کړي نو په داسې صورت کې دې مسلمانان د سپرتیا سره لمونځ کوي. لکن یوازې یوازې او هغه هم په اشاره سره و هر طرفته چې قدرت یه وي، یعنې استقبال القبلة شرط نه دی، ولې چې د مسلمانانو د پاره دا بيځي لوی عذر دی،،

**تنبيه**: دا د لمانځه شان او عظمت او قوي فرضیت دی. او بخپل وخت کې د کولو نو د دغه بیان څخه باید سړی پوه سي، یعنې چې په دغسې سخت حالت کې نه لمونځ ساقط سو. او نه د تاخیر اجازه ومسلمانانو ته ورکړه سوه، فیا اسفی علی حال بعض المسلمین حیث یکونون سالمین ومع ذالک لا یصلون، لا فرادی ولا بالجماعة وَلَا يُبَالُونَ بذالك ولا يخافون غضب الجبار جل سلطانه، اللهم اغفرا و نصرًا وحبًا وعافيةً،،

**مسئله**: په تبیین او مجمع الانهر کې وايي چې سپور لمونځ کول په صحرا کې روا دی او په ښار کې نه دی روا. ولې چې نفل په ښار کې راکبًا نه دی روا نو فرض په طریق اولی نه دی روا وان کان لضرورة" انتهی، د درویش وايي چې نفل خو اختیاري لمونځ دی نو په ښار کې راکبًا څه ضرورت سته، که نفل یه زړه غوارې خو کښته دې سي کم مشکل په کښته کیدو کې نسته، او فرضي لمونځ خو لازمه دی او په وخت مقید دی" إِنَّ الصَّلوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا" نو خدای ناکرده که فوجونه د کفارو په ښار ور ننوزي او مجاهدین یه و جنګ ته په وخت کې د لمانځه مجبوره سي، نو یه ولې راکبًا ودوی ته لمونځ نه وي روا" نو دا مسئله تجدید نظر غواړي والله اعلم،، قال المصنف

## وَلَمْ تَجُزْ بِلَا حُضُورِ عَدُوٍّ وَإِنْ لَمْ يَتَنَازَعُوا فِي الصَّلوٰةِ

ونه دی روا صلاة خوف بیله حضوره د دښمن، قال فی البحر لعدم الضرورة حینئذ وقد مر اختلاف فی هذه المسئلة من قبل فتذکر، او که څیري نزاع په قوم کې نه وه یعنې خواهخوا





به مونږ لمونځ په یوه امام پسې کوو. نو افضل دا ده چې هر یوه طائفه دې لمونځ پوره وکړي په امام پسې لکه په حال کې دامن، یعنې یوه ډله دې پیره کوي. او بله ډله دې په یوه امام پسې خپل لمونځ پوره وکړي. او سره د امامه دې سلام وګرځوي، وبیا دې دا ډله ولاړه سي د پیره و ځای ته. او اوله ډله دې راسي او په بل امام پسې دې خپل لمونځ پوره وکړي حسبنا الله ونعم الوکیل،،

**تاریخي کښته او یادګار**: تن ورځ ۲ دوشنبه ده د رجب الخیر نیمه ده ۱۴۲۲ هجري قمري ده، چې دوی هفتې د مخه تخمیناً پر امریکا باندې دوشنبه په ښار او دنیویارک په دوو لوی ښارو کې بعض کسانو هر څوک چې وه یوه دا یي خودکشه حمله کامیابه وکړه، چې د نړۍ په تاریخ کې به تر او سه دا غسې حمله چا نه وي کړي، او امریکا ته یه جاني و مالي ډیر لوی تاوان ورساوه. امریکا د دی حملې عاملان وپیژندل؟ یا نه!

خو امریکا چې رئیس جمهور یه په دغه وخت کې بش و. H.S ۷/۰ ۹ د دی حملې پړه پر یوه خوار غریب د ۲۲ کالو جنګ زړه هیواد افغانستان پر غاړه واچول. په بهانه د دی چې د روسانو په یرغل کې پر افغانستان لوی مجاهد اسامه بن لادن په افغانستان کې وو. نو د امریکا بش په ډیر جوش د صلیبي جنګ اعلان وکړي، یعنې د نصارا وو او د اسلام جنګ، او د طالبانو د حکومت څخه چې امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد یه لوی روحاني او ملکي پیشوا وو، دا مطالبه وکړه چې اسامه بن لادن دی وامریکا ته تسلیم کي چې امریکا یه په خپل ملک کې محاکمه کړي. او طالبانو او د دوی ټولو مشرانو دا خبره رد کړه چې اسامه زمونږ ورور مسلمان دی او لوی مجاهد دی، او د روسانو د قبضې په وخت کې افغانستان باندې لوی مجاهدانه کارنامې لري،،

په هغه وخت کې چې امریکایانو د روسانو د پیش قدمي څخه ویریدل د دغه اسامه سره ډیري او د وسلو لوی یه مرسته کوله، نو مونږ دا میلمه مجاهد مسلمان ورور وکافرانو ته حواله کړو، نو امریکا او بش په مغربي ممالکو کې حتی په بعض اسلامي ممالکو

لکه پاکستان، عربستان، سعودی امارات متحده عربیه وو بغاری اونغری جوړی کړی چې اسامه بن لادن د دهشت گردانو په نړی کی لوی مشر دی حتماً بر ئی طالبانو مونږ ته سپاری او که ئی نه و سپاری مونږ د طالبانو پر حکومت په افغانستان کی هوائی او زمینی بریدونه کوو، او د طالبانو حکومت د ما بین غځوو، په دغه وخت کی د شمال اتحاد په نامه چې د طالبانو مخالف وو چې مشر یې برهان الدین وو او مرکزیه بدخشان وو " دغه برهان الدین امریکایانو ته دعوت ورکړی چې زمونږ شمال ایتلاف د تاسره ملگری یو د اسامه بن لادن په نیولو کی او د طالبانو د حکومت په نړولو کی " او د امریکایانو پلار انگریزانو په لندن کی ډیر لوئی اوازی گډی کړی چې د طالبانو حکومت به د ما بین غځوو " او امریکا اعلانونه کوی چې نن حمله کوو صبا حمله کوو مسلمانانو تولو په پاکستان کی خصوصاً د علماوو حضراتو مشرانو چې د ډیر د افغانستان سره دیک جهتی اعلانونه شروع کړه، تر اوسه معامله پر د غه ځای ولاړه ده. او د افغانستان په جنگ زده ملک کی په عامو خلگو کی ډیر اضطراب دی، آینده به وگورو چې خدای جل سلطانه به څه پیښوی " اللهم انصر الاسلام والمسلمين ودمر الكفرة خصوصًا الامريكا والانكليس وما يرمعاونيهم من كانوا وحيث كانوا بحرمة السبع المثاني والقرآن الكريم، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَيُسْتَحَبُّ حَمْلُ السِّلَاحِ فِي الصَّلٰوةِ عِنْدَ الْخَوْفِ

او مستحب دی د لمانځه د ر لوول د سلاح یعنی په اختلاف د زمانو د هرې نوعی څخه چې حمل یې ممکن وي، په لمانځه کی په وخت کی د بیری د حملې د دښمن،،

**پوهـــه:** ځه استحباب مذهب دی د احنافو او امام مالکؒ او امام شافعی رحمهما الله عنهما حمل د سلاح په نیز د خوف په لمانځه کی واجب بولی " ط "

اللهم اغفر لكاتبه ولمصنفه ولقارئه ولمن طالعه ولمن نظر اليه بعين الانصاف امين
امـــين.





# بَابُ اَحْكَامِ الْجَنَائِزِ

باب دی په بیان کی د جنازی د احکامو

**پوهـــه:** چې جنائز جمع د جنازی ده، مراقی والئ چې جنازه په زبر د جیم او په زیر د جیم مړی ته هم وائی او چارپائی ته د مړی هم وائی لکن چې مړی پری پروت وی، او بعض اهل لغت وائی چې په زیر د جیم خودی مړی ته وائی او په زبر د جیم چارپائی ته وائی: وقيل بالعكس ط

قَالَ المُصَنِّفُ: **يُسَنُّ تَوْجِيْهُ الْمُحْتَضَرِ لِلْقِبْلَةِ عَلٰى يَمِيْنِهِ وَجَازَ الْاِسْتِلْقَاءُ**

سنت دی مخامخ کول د هغه چا چې زکندن یې وی و قبلی ته پر ښی اړخ او ستنی سټخ پریوتل یې هم روادی لکن **پوهـــه** چې د اهلته سنت دی چې پر مریض تکلیف نه وی، و که تکلیف وو بیا دی پر خپل حال پریښودی،

**فائدہ:** محتضر صیغه د اسم مفعول دی ای حضرته ملائکة الموت او حل به الموت " هر مسلمان ته په کار ده چې همیشه و مرگ ته مستعد وسی په توبه سره او په زړه د مطلق او مرگ دې ډیر ډیر یادوی، کما ورد في الحديث النبويؐ اكثروا ذكرها ذم اللذات " الموت " خصوصًا مریض ته " سه توبه بکن امروز تو هرگز نگو فردا کنم ؛ شاید بمیری صبحدم فردا نیا بی زر شمر ؛ واستثنى من ذالك العلماء المصنفين والمدرسين، لئلا يخل ذكر الموت كثيرًا بالتصنيف خصوصًا اذا كان تصنيفهم يبلغ الى مجلدات وايضا يخل بالتدريس " قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَيُرْفَعُ رَأْسُهُ قَلِيْلًا وَيُلَقَّنُ بِذِكْرِ الشَّهَادَتَيْنِ عِنْدَهُ مِنْ غَيْرِ

او سر دی لږ اپورته کړی، او تلقین دی ورته کوی یعنی ور یادوی دی وده ته دواړه کلمه شهادت "

اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ،،

**اِلْحَاحٍ وَلَا يُؤْمَرُ بِهَا** بیله ډیروالی د دغه تلقین، ولی مریض به حال د سکرات الموت کی

دی چی د ډیر تلقین څخه ئې زړه تنګ نه شی، د سړی ته کولو په باره کی مراقی وائی چی څخه په وقبلی ته شی، نو آسمان ته، درویش وائی چی دا په هغه صورت کی چی پړ استرانغ ییړی اینتلی وی، کما لا یخفی۔

او امر دی هم نه ورته کوی چی فلانی کلمه ووایه، ولی په ده سختی ده نو شاید دی به ووائی۔ یا، ولچی شیطان هم وده ته حاضر یږی او ور ته وائی چی دین د نصاری ووسه، نو دی به وهغه ته وائی یا، ده امر به دا خیال سی چی زما و امر ته یه لا وویئیله، نو بیا د کفر گمان پر وشی، بلکه په مراقی کی وائی چی که چا دغه زکند ن والاته وویل چی کلمه ووایه، او ده صراحة وویئیله چی کله نه وایم حکم به کفر سره ئې نه کیږی، ولچی دی مغلوب العقل دی نو ځکه بعض علماء مرګ د بیهوشی او زوال العقل خوښی کړی دی لهذا الخوف، قَالَ علیه الصلوٰة والسلام: لَقِّنُوْا مَوْتَاکُمْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فانه لیس مسلم یقولها عند الموت الا نجته من النار" وفی حدیث اخر من کان اخر کلامه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دخل الجنة "ای دخولا اولیا"۔

**فَائِدَہ**: په قنیه کی وائی: الواجب علی اخوانه واصدقائه ان یلقنوه آه لکن د وجوب د تلقین خبره په بل کتاب کی نشته، بل ټوله د فقه کتابونه وائی چی تلقین سنت دی،

**فَائِدَہ**: په هغه تیر سوی حدیث کی چی: لَقِّنُوْا مَوْتَاکُمْ آه جمهور علماء پر دی متفق چی مراد د میت څخه قریب الموت مراد دی حقیقت میت نه دی، لکه په دی حدیث کی من قتل قتیلا الحدیث وما فی المضمرات" عن البرآ : لو قال لمسلم قل لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فلم یقل کفر بالله وان اعتقد الایمان آه فهو لیس فی المختصر المذکور بل هذا القول لا یمسح علی اطلاقه والتفصیل فی شرح الطحطاوی، **مسئله**: که محتضر یو وار کلمه شهادت وویئیله نو نور دی کلمه شهادت نه ور ته تکرار وی ولچی شاید د دی اخیره خبره دا غه وی،

قال المصنف **وَتَلْقِيْنُهٗ فِى الْقَبْرِ مَشْرُوْعٌ وَقِيْلَ لَا يُلَقَّنُ وَقِيْلَ لَا يُؤْمَرُ**

او تلقین د مړی په قبر کی یعنی چی په قبر کی کښیښولو سره مشروع دی۔ او مراقی والا وائی چی

**بِهٖ وَلَا يُنْهٰى عَنْهُ** دا مذهب د اهل سنت والجماعت دی، او بعض علماء وائی





چی په قبر کی دی مړي ته تلقین نه کوی، دلیل په هغه دی چی په کفایه کی ذکر سوی دی، چی دا مړی که مسلمان وی نو تلقین ته یه حاجت نشته، او که پر کفر مړ وی نو تلقین فائده نه ورته لری، آه۔ او ددی قول نسبت و معتزله و ته کیږی، او بعض فقهاء وائی که چا تلقین و مړي ته کاوه خولی دی نه منع کوي او که چا نه کاوه خولی دی امر کوی په تلقین سره، او دلیل د اول قول دا دی چی په حدیث کی راغلی دی: لَقِّنُوْا مَوْتَاکُمْ شَهَادَةَ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، دوی وائی حقیقت میت خو مړ دی نو مراد د تلقین څخه تلقین د قبر دی۔ لکن اکثر مشائخ د احنافو پر دی مذهب دی چی مراد په حدیث کی معنیٰ مجازی ده ای من قرب الی الموت" کما نو دا تلقین د وخت د نزع کندن دی کما مرّ، په هر حال کیفیت د تلقین د مړي په قبر کی دا دی "یا فلان بن فلان اذکر دینک الذی کنت علیه فی دار الدنیا بشهادة اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَنَّ محمدا رسول الله"

**درویش وائی** چی مسئله د تلقین د مړی معرکة الاراء ده چی لوی تفصیل یې په فتح القدیر کی دی، او هغه ټوله تفصیل را انقل کول ددی مختصر شرح سره مناسب نه دی، او په زړه پوری طویل بیان په مراقی او طحطاوی کی هم موجود دی او هغه هم په سبب د طول درویش و نه کی او نه ئی را انقل کی، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ، قَالَ المصنف

**وَيُسْتَحَبُّ لِاَقْرِبَاءِ الْمُحْتَضَرِ وَجِيْرَانِهِ الدُّخُوْلُ عَلَيْهِ وَ**

او مستحب ده قریبانو ته د محتضر او همسایه گانو ته دده چی د محتضر خونی ته دی ورسی او هلته

**يَتْلُوْنَ عِنْدَهٗ سُوْرَةَ يٰسٓ وَاسْتُحْسِنَ سُوْرَةُ الرَّعْدِ**

دی کښینی او تلاوت د سورة یسٓ دی کوی۔ او بعض متأخرینو تلاوت د سورة الرعد هم مستحسن گنړلی دی،

**فَائِدَہ**: دغه خلق دی محتضر ته نصیحت د وصیت کولو کوی۔ او په وخت کی د نزع دی په خوله کی اوبه ور واچوی، ولی په دغه وخت کی تنده ډیره وی لشدة النزع و لذالک ورد فی الخبر، چی شیطان هم ور ته حاضریږی او زلال اوبه ور سره وی،

او محتضر ته وائي چې ته ووايه لااله غيري نو زه به دی او به کړم نعوذ بالله من ذالک
او د غه خلګ دی محتضر ته د پاك خدای لوی فضل وکرم ور یاد کی او د ده ګمان دی پر خدای
ښه کوی»، په حدیث کی د مسلم راغلی دی، لا یموتن احدکم الا وهو یحسن الظن بالله انه
یرحمه ویعفو عنه»
او په صحیحینو کی دا حدیث هم راغلی دی قال الله تعالى: انا عند ظن عبدي بي، واما قرائة
سورة يٰس فلما جاء في الخبر، مامن مريض يقرء عنده يٰس الا مات ریّان وادخل قبره ریّان
واما قرائة سورة الرعد فلقول جابر انها تهون عليه خروج روحه، قال المصنف:

## وَاخْتَلَفُوا فِي إِخْرَاجِ الْحَائِضِ وَالنُّفَسَاءِ وَالْجُنُبِ

او اختلاف کړی دی مشائخو په ایستلو کی د حائض او نفساء ښځی او د جنب، **پوه سه**
چی ایستل د دغو کسانو صرف اولی دی او هغه هم هلته چی وو دوی ته ضرورت نه وی او
پر دی سبب باسی چی د دغو کسانو سره چونکه نجاست موجود دی نو نبایده چی حضور د دوی
مانع د حضور د ملکو د رحمت و نه ګرځی، او وجه د عدم الاخراج دا ده چی ممکنه ده چی
د غه کسان د محتضر د ډیر نو اقرباء وو څخه وی او نه په ووزی، او طبیب دی هم ورته راولی.
**درویش وائی:** اللهم ارحمنا اذا عرق الجبين، وكثر الانين، وبكى علينا الحبيب وليس
منا الطبيب، اللهم ارحمنا اذا وارانا التراب، وودعنا الاحباب، وفارقنا النعيم وانقطع
النسيم، اللهم ارحمنا اذا بلى جسمنا واندرس قبرنا، وانطوى، ونسى اسمنا،
او کافر که څه هم قریب وی څنګ ی باسی دی» قال المصنف:

## فَاذَا مَاتَ شُدَّ لَحْيَاهُ وَغُمِّضَ عَيْنَيْهِ

نو چې محتضر مړ سو و روه دی تړو سی ژامی
د ده او په پټه ور تکرم چی خوله یې په کښی پټه سی او پر سر دی ور وتړی او پټی دی کړه
سی سترګی د ده» لورود الامر به في السنة النبوية وتحسينا لوجهه كما هو الظاهر»

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولمن نظر اليه بعين الانصاف





قال المصنف: **وَيَقُولُ مُغَمِّضُهُ بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ**
او وائی دی هغه سړی چی سترګی د مړی ور پټه وی، شروع په نامه د خدای او تابع یم ملت د رسول

## صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ سَهِّلْ عَلَيْهِ اَمْرَهُ وَسَهِّلْ عَلَيْهِ مَا بَعْدَهُ

الله صلى الله عليه وسلم، یا الله آسانه کی پر ده موجود د حال د ده او آسانه کړی وروسته تر دی یعنی

## وَاَسْعِدْهُ بِلِقَائِكَ وَاجْعَلْ مَا خَرَجَ اِلَيْهِ خَيْرًا مِمَّا خَرَجَ

د قبر حالات، او دی نیک بختی ور ګرځوی په دیدار ستا او وګرځوی هغه دنیا چی دی
**عَنْهُ** ور وو تی، یعنی قبر و ما بعده خیر تر دغه دنیا چی دی څنګ ی ووتی»
**درویش وائی:** چی په صحیح حدیث کی راغلی دی چی څه وخت چی ابوسلمة وفات سو.
آنحضرت صلى الله عليه وسلم یې سترګی ور پټولی نو دا یې دعا وکړه! چی خدایه وبخښی
ابوسلمه او پورته کړی درجه د ده په هدایت والاو کی او د ده په وروستو ته کور کی
نه عوض ورکړی په فائزینو کی، او مونږ ته بخښنه وکی او ده ته یا رب العلمين، او فراخی
ورکړی ده ته په قبر کی، او رڼا ورکړی و ده ته په قبر کی، کمال وائی چی بیا دی پټو وغیره
پر اوار کړی»، قال المصنف:

## ثُمَّ يُوضَعُ عَلَى بَطْنِهِ حَدِيدَةٌ لِئَلَّا يَنْتَفِخَ

**پوه سه**
او بیا دی کښیږدی پر نس د ده یو وسپنه تا چی نس یې و نه پړسیږی»
چی وسپنه خاصة او طبعا په دفع کی د پړسوب فائده لری، او که وسپنه نه وه نو یو بل
د روند شی دی پر کښیږدی» قال المصنف:

## وَتُوضَعُ يَدَاهُ بِجَنْبَيْهِ وَلَا يَجُوزُ وَضْعُهَا عَلَى صَدْرِهِ

او کښیږدی دی شو ول سی دواړه لاسونه د ده پر دواړو اړخو د ده. او نه دی روا ایښوول

په ځیګر ده، ولې چې داخوی او عادت د اهل کتابو دی، **فائده**: ګوتې دلاسو دی ومونږ ی چې آواری بی. او دغه رنګه بندوینه دلاسو او پښو دی بنه وړ اوارکی چې دغسل په وخت کی ورته اسانی وی» قال المصنف:

**وَتُكْرَهُ قِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ عِنْدَهٗ حَتّٰى يُغَسَّلُ** او مکروه دی قرائت د قرآن مبارک په نیزد مړی ترهغه وخته پوری چې غسل ورکوی، دا دپاره ددی چې تعظیم د قرآن وسپی دحدثه او نجاست نه چې په مرګ سره پید اسو او پس له غسله مړی پاکیږی»

**پوښتنه** چې غسل ومړی ته ته ورکول امر شرعی دی قیاس او عقل کار نه په کښی لری نو دا پوښتنه ځای نه لری چې مړی خو پاك وو نو غسل ولی ورکوی» لان الآدمی لا ینجس بالموت کرامة له، یا دا هېر کول هم ځای نه لری چې که انسان په مرګ نجس ګرځی نو باید په غسل هم نه سی پاك» لکه نور حیوانات چې مړه سی په پریولو نه پاکیږی، او یا داخبره چې مړی خو جنب نه دی. نهایت داخبره ده چې په سختی د کندن بر دده ځغزیو او دس ما تو ونکی شئ و تلی وی، نو باید دده اعضاء داودا سه وړ پری مینځی وبس»

قال المراقی بخلاف الکافر یعنی هغه په غسل سره نه پاکیږی آه لکن امام طحطاوی وائی چې مسلم او کافر په دغو احکامو کی سره یو دی، **سوال**، قال الله تعالیٰ: انما المشرکون نجس **جواب**: دهغو نجاست ځغز مراد نجاست دعقیدی دی نجاست دبدن نه دی مراد وهذا مذهب السلف والخلف: قال المصنف:

**وَلَا بَأْسَ بِاِعْلَامِ النَّاسِ بِمَوْتِهٖ** او پروا نسته په خبرولو سره دخلګو په مرګ دده، تا چې جنازه وړ کوونکی ډیر سی، بخاری او مسلم روایت کوی چې علیه الصلوٰة والسلام خبر ورکړی په مرګ د نجاشی په هغه ورځ کی چې دی په محله کی د حبشه وو مړ سوی وو او دغه رنګه یې خبر کړو خلګ په مرګ د زید بن حارثه رض او د جعفر بن ابی طالب او عبدالله





ابن رواحه رض چې په یوه غزا کی دری سره شهیدان سوی وه، والتفصیل فی کتابی البلاغ المبین»

**مسئله**: په نهایه کی وائی که مړی یو عالم وو او یا یو زاهد سړی وو چې خلګو تبرك په کاوه نو بعض متأخرینو ویلی دی چې پروا نه لری چې په بازارو کی د ده مرګ اعلان وکړی وهو الاصح آه او په مراقی کی وائی چې ډیر مشائخو څخه وائی چې دا پروا نه لری چې د جنازی دمړی خبروه خلګو ته وړ سوی تا چې هغه اقرباء یا نور دوستان چې په مرګ د ده خبر نه وی خبر سی او حق دمړی پر ځای کړی، لکن فراط په مدح کی دمړی دی نه کوی بماه هغه قدر الفاظ دی استعمال کړی چې خلګ یه و بیژنی»

صاحب هدایة په تجنیس کی وائی چې مکروه دی تر حد تجاوز په مدح کی د مړی خصوصًا چې جنازه یه حاضره وی لانه من صنیع الجاهلیة» ط او پروا نه لری بیان دسوانح عمری دمړی که په نثر سره وی او که په شعر سره» لکن چې په واقعیت بیان سی او افراط په کښی نه وی

**مسئله**: ژړل پر مړی که قبل الموت او که بعد الموت وی په صرف اوښکو تویولو سره پروانه لری، چې آواز پورته کول او چیغی وهل په کښی نه وی،

او نیاحت یعنی په نوره چیغی وهل لکه د ښځو چې غالبًا عادت دی او کالی پر ځان څیرل یا تندی ټکول یا شکایت دخدای پاك څخه کول سخت مکروه دی، بعض ښځی د قریب دمړی په وخت کی داسی حالت پر ځان طاری کی لکه پیری؟ نا نو چې نیولی وی، په بخاری او مسلم کی دا حدیث موجود دی چې څه وخت چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم اخیری زوی چې ابراهیم یه نوم وو او دده د بی بی ماریة زوی خدای پاك ددی ځغز ورکړی وو، د ۱۲ میاشتو په عمر کی مریض سو او بیا وفات سو، نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم په تویولو د اوښکو پر وژړل» عبد الرحمان بن عوف رض چې دالته حاضر وو، وعلیه الصلوٰة والسلام ته ئی وویل: وَاَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللهِ تبکی»! فقال یا ابن عوف انها رحمة» یعنی زما دغه اوښکی د رحمت دسببه تویږی یعنی دو صله رحمی له کبله معنا دا چې اوښکی تویول ممنوع ژړا نه ده» وقال ﷺ ان العین تدمع» په تحقیق سره سترګی اوښکی تویوی» والقلب یحزن او زړه غم کوی» ولا نقول الا ما یرضی ربنا» او په خوله نه وایو مګر هغه خبره چې خدای

اوپتی سترگی می نه سوای رونړه ولا ی، او روڼې سترګې می نه سوای پټولای، بالاخر دغه مرض د سکتې یوه ورځ راته پیښن سوی وو، چې پلار مرحوم او نورو قریبانو د نبض کتلو وروسته، سل په سل داعقیده سوه چې عبید الله مړ سو، نود قبر د پاره ئې خلګ ادرې ته واستول او کفن یه راوړی وو، او طالبانو د مسجد ته یه نه ورو سپارلی وم چې غسل ور کړی، او خلګ او قریبان یه هم خبر کړی وه. نو طالبانو چې غسل راکاوه، او تودی او به د غسل په برما اچولی هغه طالب چې زما پر بدن یه لاس تیراوه، د زړه پر برابر یه د زړه لږ حرکت محسوس کړی وو، نو هغه بل طالب ته چې او به ئې پرما تویولې د بل طالب ته وویل چې تر اسه زما خیال دادی چې د دی مړی زړه حرکت لري او ژوندی دی هغه چې لاس زما پر زړه اینی وو هغه هم ورته وئیلی وه چې هو زه هم په حرکت پوهیږم، خیر طالبانو غاسلانو زما مرحوم پلار ته ورغلی وه چې ته ځي راسه وګوره موږ عبید الله ژوندی بولو زړه یه حرکت لري، پلار مې د نورو قریبانو چې راغلی وه هغو ته هم زما د زړه حرکت محسوس سوی رو،

نو د غسل د کمایه تختی بیرته خونې ته راوړی وم، او هغه کالي یه راغوستی وه او په تلتک کی یه پټ کړی وم. چونکه د تبې د پروخت د تیر یدو مجموعه دیر ضعیف سوی وم چې سترګی می هم نه سوای رونړه ولای، او دوی آهم هرګری نه کتلم، خو څوساعته وروسته د زړه حرکت و نبض ته راورسیدی او نبض هم په حرکت راغلی یو ګړی وروسته ما سترګی رونړی کړی او خبری می وکړی، په قریبانو کی د خوشحالی دوره پیداسو چې مړ عبید الله ژوندی سو قبر کفنا نیه بیرته راوغونبتل، رفته رفته ما کامل صحت پیدا کړی او کفن یه راکالي کړه وامې غوستل دا دی تراوسه پوری ژوندی یم یعنی ۸۳ کاله عمر دا اوس می دی، وَالله جل سلطانه یعلم باجلی، اللّٰهم انی اسئالك ختام الاجل على الايمان والاسلام وكلمة الشهادتين عن وداع الروح من البدن على الايمان والتوبة من جميع المعاصي بحرمة سيد الانام صلى الله عليه وسلم،





قال المصنف **فيوضع كما مات على سرير مجمر وترا ويوضع كيف**

نو دی کیښنول سی مړی څرنګه چې مړ سو یعنی مرګ یه متیقن سو، پر تخته د غسل په داسی حال کی تخته دی خوشبویه کړی

**اتفق على الاصح ويستر عورته** وی تاک وارونه یا ۳ یا پنځه

بالاتنه" زیلعی دا تجمیر یو خو ډاره د دفع د رائحه کریهی د میت دی او بل دده د تعظیم د پاره دی" کیفیت د تجمیر دادی چې عود یا اګربتی ته دی اور واچوی، او دری وار پر تخته شاوخوا راوګرځوی،، او که پر تخته نوره سمیتی هم ای دی پری باسی او غسل دی ور کړي - او اینوول د مړي پر تخته هر رنګه چې وي پروانه لری پر اصح روایت چې شمس الائمهٔ وئیلی دی، او بعض وائي پر قبله دی پری باسی یعنی پښی دی و قبلی ته کی لکه مریض چې لمونځ کوی او عورت دی ور پټ کی، وجوبا ولی چې عورت ته د مړي کتل ناروا دی لکه د ژوندی"

لکن زیلعی او نهایه والا وائي چې د نا مه څخه تر زنګنو پورې دی عورت ور پټ کړي" او هدایه والا وائي چې صرف عورت غلیظه دی ور پټ کړي تیسیرا على الغاسل، وهوظا هر الرواية وهو المعمول في الناس اليوم **مسئله**، ساتر العورة دی تر خپلو کالو لاندی دی اول توکر پر واچوی، قال المصنف:

**ثم جرد عن ثيابه ووضئ الا ان يكون صغيرا لا يعقل الصلوة** او ورو سته دی لڅ کړي د کالو څخه. او اودس دی ور تازه کړي، مګر نه کړ داسی کوچنی وو چې په لمانځه نه پوهیدی نو هغه اودس نه غواړی،،

**مسئله**: استنجاء دی داسی ور وکړی چې غاسل دی کڅوړه پلاس واغوندي نو تر ساتر لاندی د بې استنجاء ور وکړي، او که هغه نه وه نو پر ساتر سر بیره دی استنجاء ور وکړي

قال المصنف **بلا مضمضة واستنشاق الا ان يكون جنبا** بیله خولی پریولی او بیله پزې

پریولو مګر که جنب وو، مراقی وائی د سر مسح دی وکړی په صحیح روایت کی، لکن خوله او پزه دی په تکره ور مسح کړي، وعليه التعامل «مر» او که مړی جنب وو، یا حائضه یا نفساء ښځه وه نو په تکلیف سره دی په خوله اوپزه او به ور لغړه وی تا چی طهارت یې پوره سی»

## تحقیق غسل المیّت

**پوُه سه**، چی په نیزد امام ابویوسفؒ دی استنجاء نه ور وهی، تا چی نور نجاست خارج سی، لاسترخاء المفاصل او خلاصه والاهم وه غر مذهب ته تللی دی، **مسئله**: په ابتداء دا چی متوضی لاسونه منځی دَمړی دَلاسو پریولو نسته، ط

**مسئله** د پښو پریولو دَمړی دی نر ځنډه وی، ولی چی په ځای کی د جمع ژالی داوبو نه دیګ

**مسئله**: که سړی بالغ سوا ولیونی وو بیا پر هغه لیونتوب کی مړ سُو او دَس نه غواړي قیاسًا علی الصبی **مسئله**: په فتح القدیر کی وائی چی غاسل دی پر ګوته یو ټکړ ویچی اومړي غا ښونه او تالو دی او سنهان دی په مسح کړي، اود غرر نګه پر سَرْ مودی. اود تُو. پر غار کی دی ګوته وَلغړه وي، وهذا مما استحبه بعض العلماء وهو حسن فی تنظیف المیت

**تنبیه** استثناء د جنب چی مصنفؒ په نورالایضاح کی کړیده، او استثناء د حائض او نفساء چی په مراقی کی کړیده. دا یوازی د خلخالیؒ نظردیٔ، «قال الامام الطحطاویؒ وهو غریب مخالفٌ لعامة الکتب کما فی الشبلی علی الکنز»

او په تبیین کی وائی چی جنب لکه نور مړی دي» درویش وائی چی علما ولره بنائی چی په قول د یوازی خلخالی دی فتوی نه ورکوی» فَقَالَ الْمُصَنِّفُؒ:

## وَصُبَّ عَلَيْهِ مَاءً مُغْلًى بِسِدْرٍ أَوْحَرْضٍ وَالَّا فَالْقَرَاحُ

## وَهُوَ الْمَاءُ الْخَالِصُ

او بیا دی توی کړه سی پر مړی او به چی د بیری د درختی بلګونه پر کښی ایشولی وی، اویا بر وَځه او که هغه دواړه نه





وه نو بیا دی قراح (خالص اوبه) پرتوی کی» درویش وائی کی په صابون بری منځی هم روا دی بلکه ائلو نکی خیر ودی طحطاوی»

**فائده**: د مغلی تخر دا معلوم سو چی تودی اوبه دَمړی دَغسل دَپاره افضل دی، «کذا فی النهر» کلمه د او د پاره د تخییر ده یعنی غسل ورکوونکی مختاره دی په پریولو سره چی منځی ولی هر یو کافی دی» په حدیث شریف کی را اغلی دی چی څه وخت چی په مدینه منوره کی د علیه الصلوة والسلام وفات سوه. نو ده مبارک غاسلانو ښځوته وویل چی غسل ورکړي په اوبو او سِدر سره» فَقَالَ الْمُصَنِّفُؒ:

## وَيُغْسَلُ رَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ بِالْخِطْمِيِّ

او پریولِه دی سی سر او ږیره دَمړي په خطمی سره **پوه سه** چی خِطمی په کسره او فتحه د خاء دواړه روادی لکن کسره یې اکثره ده نر فتحی په عربو کی. او په پښتو کی فتحه اکثره ده» دیو وابنه نوم دی چی اصلًا په عراق کی پیدی او خوشبو یې هم دی» او په پاکولو کی دښتو د صابون ورکوی، او د یونانی طبیبا نو سره پیدی»

**مسئله**: که د سړي یعنی مړي پر ږیره و ویښتان نه وَه یا دسر نه وَه او یا یه سرخرئیلی وو، او پر ږیره یه هم ویښتان نه وَه یا نه وه را اغلی یا کوسه وو یا یه ږیره خرئیلی وه نو تکلیف ته د خطمی د پریولو ضرورت نسته لعدم الباعث علیه» قَالَ الْمُصَنِّفُؒ

## ثُمَّ يُضْجَعُ عَلَى يَسَارِهِ فَيُغْسَلُ حَتَّى يَصِلَ الْمَاءُ إِلَى مَا يَلِي

## التَّحْتَ مِنْهُ

بیا دی پری اِیستل سی مړی پر چپه اړخ، نو دی ور پریوله سی، یعنی د ده راسته اړخ چی لوړ سو، ځکه چی شروع په راسته اندام سُنت دی. تر هغو پوری چی رسیږي او به وهغه جانب ته دَمړي چی وتخته ته خرمه دی چی چپه طرفته دَمړي دی قَالَ الْمُصَنِّفُؒ:

## ثُمَّ عَلَى يَمِيْنِهِ كَذَالِكَ

او بیا دی مړی پری باسی پر راسته طرف د غر نګه یعنی تر هغو پوری منځی چی و هغه ځای ته دَمړي اوبه ورسیږي چی تختی ته خرمه دی یعنی چپه طرفته ته»

قال المصنف **وَالْكَافُورُ عَلَىٰ مَسَاجِدِهِ** اوودی ګرځولی سی کافور چې بوی معلومه خوشبوئي ده پر ځایو د سجدی

دمړي، چې هغه تندی دی، اوږده، او دواړه لاسونه دی، او دوه ګنګونه دی او دوي پښې دی، روی ذالک عن ابن مسعودؓ او چنجیان هم د کافوره تخه بد وړي، قال المصنف

## وَلَيْسَ فِي الْغُسْلِ اسْتِعْمَالُ الْقُطْنِ فِي الرِّوَايَاتِ الظَّاهِرَةِ

اونشته په غسل کی دمړي استعمال د پنبه وو په روایاتو ظاهرو وکی، زیلعیؒ په شرح کی دکنز فرمائي چې پرواه نلري چې پر مخ دمړي پنبه واچوي، او په سوړیو کی لکه دُبُر، فرج، پزی په غاړو او د غوږو په غاړو کی پنبه ور تخته کړي، لکن فتاوی ظهیریه وائي چې په دبره او په فرج کی دی پنبه نه ور ایږدی، قال المصنف

**وَلَا يُقَصُّ ظُفْرُهُ وَشَعْرُهُ** اونوکان دمړي که غټ هم اوږده وي نه دی ور پرې کوی مګر که مات نوك وو هغه دی ځندی پرې کړی اوودی غورځوي، او ویښتان دی هم نه پرې کوی یعنې که د سر وي که د بریتوو او که د زیر ناف وي - امام شافعیؒ وائي. چې دمړي بریتونه که تر مسونو بالا وه فدلغجی دی کی او د غه رنګه کی نوکان غټ وه پرې دی کی، او د غه رنګه کی د زیر ناف ویښتان تر غسله مباح بالاتفاق ځندی پرې دی کي. قاله الملاسکین، او که فرضًا نوکان او ویښتان دمړي غاسلانو پرې کړه نو بیا په نیږدی هغه په کفنونو کی ور سره کښیږدی، ق.تب. قال المصنف

**وَلَا يُسَرِّحُ شَعْرُهُ وَلِحْيَتُهُ وَالْمَرْأَةُ تَغْسِلُ زَوْجَهَا بِخِلَافِهِ** اونه دی ورته منځوی ویښتان د سر او د ږیری ولی هغه د زینت دپاره دی مړی د زینت تخه فارغ سوی په قنیه کی وائي چې دا فعل مکروه تحریمي دی

که طلاق نه وي خو نکاح قائمه ده او که طلاقه وي نو هم نکاح قائمه ده، لبقاء النكاح في حقها من جهة العدة، کر عدده د طلاق رجعي وي او یا د ظهار، او میړه وما بینه ته غسل نسي ور





کولای ولی چې نکاح قطعه سوه، حتی که ښځه د غسل دپاره نه وه میړه دی تیمم ورکړي او پر میړه نسته چې سترګی په پوټوی په وخت کی د مس د زړه عینو ددی، او که بیګانه سړی وو هغه په دغه وخت کی سترګی پوټوی،

**مسئله** که ښځه د میړه د مرګه سره لنګه سوه او عده د رجعي طلاق به تیره سوه او یا په عده کی د طلاق بائن وه او یا پر میړه حرام سوی وه په سبب د مرتد والی نو دغه ما بینه میړه ته غسل نسی ور کولای، قال المصنف:

**كَأُمِّ الْوَلَدِ لَا تُغَسِّلُ سَيِّدَهَا** لکه مینځه چې د بادار ه تخه لنګه سوی وی غسل نسی ور کولای با دار ته او د غه مدبره مینځه یا مطلقه مینځه، ولی چې ملك د بادار په مرګ سره د ده قطع سوا و پر منځو هیڅ هم نسته، نو که نر نه وو داغه مینځه دی بادار ته تیمم ورکړي وو هغه نکر په لاس پیچلی،

## پنهانه فائده

په صحیح روایت کی راغلی دي چې ابوبکر الصدیق رضی الله تعالی عنه وصیت کړی وو چې لی ماینی ته چې اسماء بنت عمیس وه چې که زه مړ سوم ما ته به ته غسل راکوی، او ابو موسی الاشعریؓ هم ماینی ته ورته وصیت کړی وو، او په بل حدیث کی د عائشهؓ داسی راغلی دي.... لَوِ اسْتَقْبَلْنَا مِنْ أَمْرِنَا مَا اسْتَدْبَرْنَا مَا غَسَّلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا نِسَاؤُهُ" یعنې که مونږ د مخه پوهیدای په هغه شي چې وروسته پوه سوو نو به بو وای ور کړی وعلیه الصلوة والسلام ته مګر خپلو بي بي ګانو، یعنې په وخت کی د وفات وعلیه السلام ته مونږ ته دا نه وه معلومه چې ښځه وخپل میړه ته غسل ور کولای، ورو سته مونږ ته معلوم سوه،

قال المصنف **وَلَوْ مَاتَتْ امْرَأَةٌ مَعَ الرِّجَالِ تَيَمَّمُوهَا كَعَكْسِهِ بِخِرْقَةٍ** که مړه وه یوه ښځه په ډله کی د نرو یعنی محارم او غیر محارم، نو دوی دی تیمم ورکړي لکه عکس د دی یعني چې نر مړ سی په ما بین کی د ښځو چې ښځی به محارمی

وی ، دا ښځې دی تیمم ورکړي، او دغه شان هغه وخت چې په یو تیټه ځای کې مړی وی او څوک هم په داسی ځای کې پیدا نه شی چې له هغه مړی سره محرم وی

ښځه ښځې اجنبی وی تاچې لاس یه دهغې د بدن سره وَنه مښلی او سترګې به هم پټوي

دمړو ندو ښځه د ښځې که څه هم سپین سری وی ،، قال المصنف :

## وَإِنْ وُجِدَ ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ يَتَيَمَّمُ بِلَا خِرْقَةٍ وَكَذَا

اوکه موجود وو په ژوندو کی قریب محرم دمړی که مړی که مړی نر وی اوکه ښځه نو تیمم دی

## الْخُنْثَى الْمُشْكِلُ يَتَيَمَّمُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ

ورکړی بیله ټکره - او د غه رنګه دی تیمم ورکړی و هغه د خنثی مشکل په ظاهر روایت کې "

**مسئله**: که خنثی مشکل نه وو بیا د نرخوا یه غالبه وه یا د ښځې . نو بیا دی غسل ورکړی یا ترې ښځه » ط ، م ، قال المصنف

## وَيَجُوزُ لِلرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ تَغْسِيلُ صَبِيٍّ وَصَبِيَّةٍ لَمْ يُشْتَهَيَا

او نر او ښځې له روا دی غسل ورکول و کوچنی هلک او جنلی ته چې اشتهاء د نر نه ورته کیږی ، او امام ابو یوسف وائي چې مکروه دی بیگانه نر او ښځې ته غسل ورکول و نر هلک یا جنلی ته » وجه د اول روایت دا ده چې اعضاء ولره د کشنی هلک او جنلی حکم د عورت نشته ، لکن چې صغیر جدا وی که چیری اشتهاء ورته کیدل بیا نر و نر ته غسل ورکوی او ښځه ښځې ته » بیا تر لس کاله پوری ورو سته یه حکم د بالغ دی » قال

## وَعَلَى الرَّجُلِ تَجْهِيزُ امْرَأَتِهِ وَلَوْ مُعْسِرًا فِي الْأَصَحِّ

او واجب ده پر نر باندی کار سازی د مړې مایني د ده که څه دی مسکین وی په اصح روایت کی ، والمراد بالتجهيز هو الكفن والدفن » دا مذهب دی دا بو یوسف لکن امام مذکور وائی چې دا تجهیز هلته پر میړه واجب دی چې مایینه مسکینه وی ، او دا خبره خوښه کړی صاحب





المغنی والمحیط والظهیرة ، او دامام ابو یوسف دا روایت هم راغلی دی چې تجهیز د ماینی پر میړه واجب دی که څه هم دا غنی او میړه مسکین وی . نو د دی سببه مصنف وویلیه: علی الاصح او په مراقی کی وائی وعلیه الفتوی او دامام محمد مذهب دادی چې پر میړه هیڅ تجهیز واجب نه دی لانقطاع الزوجیة من کل الوجوه » قال المصنف :

## وَلَا بَأْسَ بِتَقْبِيلِ الْمَيِّتِ

او باک نشته په ښکلولو د مړی د محبت د د سببه » لکه چې په صحیح حدیث کی راغلی دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې پر عثمان بن مظعون رض چې هغه وفات سوی وو داخل سو نو بی ص پر ژړا کوبر سو او عثمان رض یه مچ کړی او اوښکی یه پر مخ راتوی سوی ، رواه الترمذی وابوداؤد وابن ماجه والحاکم »

او یا د محبت او تبرک د وا په دپاره وی لکه چې بخاری روایت کړی دی د عائشې څخه هغه وخت چې علیه الصلوة وفات سو د ابوبکر رض په کور کی وو نو څه وخت چې دی خبر سو او را غی که څه هم کور د خلکو ډک وو لکن ابوبکر رض د هیڅ چا سره خبره و نه کړه حتی خونې ته د عائشې رض راغلی او آنحضرت صلی الله علیه وسلم پروت وو او پر مخ مبارک یه کشمیره او اره وه نو مخ مبارک یه ور لڅ کړی او پر ټیټ سو او مچ یه کی او ویی ژړل » تر اخیره د حدیث لکن که مجیده د شهوت دلاري وه کی څه هم ماینه وی نا روا دی ، لانقطاع النکاح من کل وجه نو میړه بیگانه سړي دی » قال المصنف :

## وَمَنْ مَاتَ وَلَا مَالَ لَهُ فَكَفَنُهُ عَلَى مَنْ تَلْزَمُهُ نَفَقَتُهُ

که څوک مړ سو او هیڅ مال یه نه درلود ، نو کفن یه پر هغه چا لازم دی چې د مړی نفقه په وخت کی د ژوند د ده پر ذمه لازم وي ، او که هغه کسان ډیر وه نو کفن یه پر اندازه د میراث پر دوی لازم دی ، قال المصنف

## وَإِنْ لَمْ يُوجَدْ مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ نَفَقَتُهُ فَفِي بَيْتِ الْمَالِ

او که چیری نه وو موجود هغه څوک چې د ده نفقه پر واجبه

• نوكفن دَمړي دى د بَيت المال څخه حكومت وركړي» قَالَ المُصَنِّفُ

## فَإِنْ لَمْ يُعْطِ عَجْزًا أَوْ ظُلْمًا فَعَلَى النَّاسِ

اوكه بيت المال كفن نه كړي ورد سَبَبه څخه د عجزد بَيت المال يعنى په بَيت المال كى روپۍ نه وى اويا دَ جهته دظلم دبيت المال چي پَيسى خووى لكن حكومت ظالم وو، نوكفن دَمړي پر عمومى خلگو دى كه همسايگان وى اوكه نور» دى» قَالَ المصنفُ:

## وَيَسْأَلُ لَهُ التَّجْهِيزَ مَنْ لَا يَقْدِرُ عَلَيْهِ غَيْرُهُ

اوسوال دى كوى دپاره دمړي دكفن وغيره هغه څوك چي قدرت پرځَله نه لري يعنى چي په مړي خبر سي. اوسوال دى دبل چا څخه كوى يعنى بَل قادر سړي ته دى وَوَائي چي ته څه مبلغ راكړه چي فلانى سړي مړدى زه كفن په رانسم، تركيب: التجهيز اول مفعول ديسئل دى. مَنْ لا يقدر فاعِل ديسئل دى

**مسئله**: كه بيبى تركفن بالا سوى بيرته دى هغه سړي ته وركړي چي څُنډى ختى يه وي، اوكه سړي غائب سوا وسوال كونكى نه پيژندى بل مړي ته دى كفن په رانسى او كه مړي نه وو خيرات دى كي،،

**مسئله**: كه يوڅوك لغ وو پر بل چا لسته چي دَده دپاره سوال وكړي بلكه پخپل سوال وكړي **مسئله** كه يوڅوك درنده خوړلى وو نوكفن يه پر متبرع دى پرو ارث نه دى!

**مسئله** كه دَمړي اكثر بدن موجود وو اويا نيمى بدن يه موجود وو سره دَسره اونور يه درنده خوړلى اويا په اوسنۍ زمانه كى دمَيِن په چاودَلو كى تَللى وو نو غسل دى وركي اولمونځ دى هم وركړي، اوكه ترمذكورى اندازي كم موجود وو نو نه غسل سته اونه لمونځ م» يعنى داغسى دى په ټكه كى پټ كړي «ط» **پوه سه**: چي نفس كفن وركول مړي ته خو فرض دى اوكفن دري قسمه دى، كفن سُنت، كفايت كفن، دضرورت كفن نومصنفؒ دغه دري سره بيانوى:

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِجَمِيعِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ اٰمين اٰمين اٰمين





قَالَ المصنفُ

## وَكَفَنُ الرَّجُلِ الْمَيِّتِ سُنَّةً قَمِيصٌ وَإِزَارٌ وَلِفَافَةٌ

اوكفن دَ سنت يه دري جامى دى. يوقميص په نامر لكن دَقميص څخه اصطلاحى نه دى مَراد بلكه دَغاړي څخه نيولى ترپښو پوري لاندي

## مِمَّا يَلْبَسُ فِي حَيَاتِهٖ

بَاندى لستوڼي دى نه وركوى اونه ترخټي» او ازار دى، **پوه سه**: چي ازار او رداء اولفافه په يَوه معنا دى چي هغه يوه جامه ده پَرَه وَرَه اوږده چي ټوله بدن دمړي پټ كړي د سَر څخه ترپښو پورى، او بله لفافه چي هغه هم اوږده او پَرَه وره جامه ده چي اول هغه اواريږى وَمړي ته، او دالفافه ترمړي په بالا وى تاچي دسردخوا اودَپښودخوا غوټه سي، اوټوله مړي په كښى وپيچل سي، او ددى سببه يه لفافه بولي. او دا كفن به د هغه ټكره څخه وي چي ده په ژوند اغوستى يعنى دجمعى په ورځ او په اختروكى،

**مسئله**: مستحب داده چي كفن دښي سپينى كپړي (جامى) وي. لقوله عليه السّلام «حَسِّنُوْا أَكْفَانَ الْمَوْتٰى فَانهم يَتَزَاوَرُوْنَ فِيْمَا بينهم». **مسئله**: به ډير لوړ قيمت دى نه رانسى چي كالي داهل فخر دى په دنيا كى اود رياء اوتكبر دپاره وي لقوله عليه السّلام: لا تغالوا فى الكفن فانه يسلب سريعًا»، حتى كه يوچا وصيت وكړي چي ماته په زر درهمه مثلاً كفن راكړى داوصيت دده نافِذ نه دَى بلكه ميانه كفن دى وركوى جَلال الدين سَيوطيؒ په شرح الصدور كى وائي: اخرج ابن عساكر عن ابن عباسؓ عن النبي صلى الله عَليه وَسَلم: اذامات لاحدكم الميت «چي ستاسو څخه يو مړي وَسو، فَأَحْسِنُوْا كَفَنَه» نو ښه كفن وركړى، وَعَجِّلُوا انجاز وصيته» اوتلوار وكړى په پوره كولو د وصيت دده: وَاَعْمِقُوْا فِيْ قَبْرِهٖ» اوښه جوړ كړى قبر دده، وَجَنِّبُوْهُ جَارَ السُّوْءِ اوگوښه كوى لى په قبر ستان كى د بده همسايه څخه» چا د عليه الصلوة والسلام څخه سوال وكړى. يارسول الله يَنفع الجار الصالح فى الآخرة» آيا نفع لرى صالح همسايه په اخرت كى يعنى په قبر كى چي اول منزل داخرت دى قال م هَل ينفع فِي الدنيا قالوا نعم قال كذالك ينفع فى الآخرة

آیا صالح همسایه په دنیا کی فائده لري! خلګو وویل هو علیه الصلوٰة والسلام وویل داغسی نفع لري په اخرت کی اِنتهی.

**فائده،** رسول کریم صلی الله علیه وسلم ته په درو (۳) جامو کی کفن ورکړ سوی دی، تر درو (۳) جامو با کفن مکروه دی، مګر کم مړي د بالا جامو وصیت کړی وو بیائی زیات مکروه نه دی، او کی دوو جامو وصیت کړی ور نو دده وصیت لازم الاجراء نه دی، ولي چي د خلاف د سنت دی بلکه په درو جامو کی دی کفن ورکوي، ط. زه نه پوهیږم چي پښتنو ولي د مړي کفن د پاره که شاه وي او که ګدا وي کفن سان "مختاره کړي دی، او سره د دی چي په تولو جامو کی تر هغه کم قیمته جامه نشته، او تقریبًا هیڅ څوك د دغه سان کالي په ژوند کی نه اغوندي خصوصًا په اوسنی زمانه کی، حتیٰ چي په عمومي ورځو کی هم نه اغوندی اختر ونه نو څه کوي.

که څوك وائي چي وجه یه داده چي دا کپړه سپینه ده، نو زه وایم چي سپین رنګ خو تر دی بالام سته، او که څوك وائي چي داخو په قبر کی ژر خرابیږي جامه څه کوي! نو زه وایم د دی حدیث به څه جواب وي: حَسِّنُوا اکفان الموتیٰ. آه قال المصنف:

# وَكِفَايَةُ إِزَارٌ وَلِفَافَة

او ویل کفن کفائی دی د نر د پاره او هغه یوازی ازار، او بله لفافه ده، لکن دا اصح روایت دی، او بعض وائي چي قمیص او لفافه کفن کفائي دی. **پوهسه:** چي په حال کی د اختیار د غه کفن کفائي واجب دی بیله کراهته،

**مسئله:** که د سړي مال لږ وو او قریبان یه ډیر وه، نو دغه کفن کفائي اولی دی تر سوال پورې بیا نو د کفن سنت پیاره، او که مال ډیر وو او قریبان یه لږ وه، نو بیا کفن سنت اولی دی. **مسئله:** که پر سړي پور ونه باندی وه چي دده مال یه کافی نه وو، نو هغه پور وړی ما نع د کفن سنت من حیث القیمة او من حیث العدد نه بی کیدلای، قال المصنف

# وَفُضِّلَ الْبَيَاضُ مِنَ الْقُطْنِ وَكُلٌّ مِّنَ الْإِزَارِ وَاللِّفَافَةِ مِنَ الْقَرْنِ إِلَى الْقَدَمِ

او غوره کړه سوی دی سپینی جامی ته چي پنبه وي





م، وائي چي مستعمل یې ولی او نوي سره برابر دی، او هر یو د ازار او لفافه څخه دی د قرن یعنی د سر د ما بین څخه تر پښو پوری وي. وفی المراقی مع زیادة للربط "قال المصنف"

# وَلَا يُجْعَلُ لِقَمِيصِهِ كُمٌّ وَلَا دِخْرِيصٌ وَلَا جَيْبٌ

او نه دی ورکول کیږی قمیص ته، د مړي لستونړي او نه ترخزي، او نه ګریوان چاکوی، ولي چي داتول شیان د پاره د حاجت د ژوندی دي مړي و دغو شیانو ته ضرورت نه لري، او فخر الاسلام په شرح کی د جامع صغیر او رضی الدین په محیط کی او حافظ الدین په کافي کی د جیب څخه جیب مصطلح اخستی دی چي خلق شیان په کښی اچوی چي په پښتو یې جیب بولي بکسر الجیم

قال المصنف **وَتُكَفُّ أَطْرَافُهُ وَتُكْرَهُ الْعِمَامَةُ عَلَى الْأَصَحِّ** او اطراف د کفن دی نه سره جوړوي، ولي چي حاجت ورته نشته، قال ط اولی کف ورکړی وادی بیله کراهته" او مکروه ده لنګوټه په اصح روایت کي، ولي چي په کفن کی د رسول الله صلی الله علیه وسلم لنګوټه نه وه، او بدائع والا یه علت دا بولي چي که عمامه ورکړه سی نو جامی د کفن جوړي ګرځي او سنت خو داده چي تاك وي، وفی المراقی: چي لنګوټه د مړي بعض بنه بولي،

**پوهسه:** چي مراد د بعض څخه متأخرین د احنافو دی. لکن په فتاوای ظهیریه کی وائي چي لنګوټه چي متاخرین حسین بولي د پاره د علماؤ او صلحاؤ ده خاصةً نه د عمومي خلګو د پاره:

قال المصنف **وَلُفَّ مِنْ يَسَارِهِ ثُمَّ يَمِينِهِ وَعُقِدَ إِنْ خِيفَ انْتِشَارُهُ،**

پوهسه: بایی وپیچي نچپه طرفه څخه او بیا د ښي طرف څخه او غوټه دی کړی که ویره د خلاصیدو سیره وه، **پوهسه:** چي اصل پیچل د مړي داي چي اول دی لفافه اواره کړي، او بیا دی ازار سربیره پر اوار کړي، او بیا دی په مړي قمیص واغوندی او پر ازار دی کښیږدي، بیا دی چپه طرف د څخه پر اواره وي. و ره وسته دی راسته طرف پر اوار وی تا چي راسته طرف سربیره سي، او بیا دی لفافه هم داغسی

پر ر اواړه وی. او بیادی غوټه ورکړی که بیړه ددی، ۰۰ چې کفن به سرو پا شل سي یعنی که بیړه نه وه چې قبر ته ددی وو نو بیا غوټې ضرورت نسته کذا فی ط و در»

قال المصنف: **وَتُزَادُ الْمَرْأَةُ فِي السُّنَّةِ خِمَارًا لِوَجْهِهَا وَخِرْقَةً**

او دیا تول کیږی دی ترکفن د ښځی لره د سنت پر طریقه کفن کی یو پوړنی دمخ پټیدو له پارو

**لِرَبْطِ ثَدْيَيْهَا وَفِي الْكِفَايَةِ خِمَارٌ** یعنی د سر د پاره هم، او یوه ټوټه ټکر بل د پاره د تړلو د تیو د دی او دا ټوکر به دومره پسره ور وی چې د تیو ځخه ترناماه پوری به وی، او بعض وائی تر زنګنو پوری. او په کفن کفائی کی دی یو پوړنی بالا کوی» قال المصنف:

**وَتُجْعَلُ شَعْرُهَا ضَفِيرَتَيْنِ عَلَى صَدْرِهَا فَوْقَ الْقَمِيصِ**

او ودی ګرځول سی ویښتان د ښځی دوی (۲) کوڅی او پرځیګر د دی دې کښیښودی ترقمیص سر

**ثُمَّ الْخِمَارُ فَوْقَهُ تَحْتَ اللِّفَافَةِ ثُمَّ الْخِرْقَةُ فَوْقَهَا**

بیړه، او بیادی پوړنی پرسر او مخ ددی د ےواچوی سربیره پرقمیص چې ترلفافی لاندی راسی، بیادی هغه ټوکر د تړلو د تیو سربیره پر لفافه وتړی نوکفنونه به نه پا شل کیږی

قال المصنف: **وَتُجَمَّرُ الْأَكْفَانُ وِتْرًا قَبْلَ أَنْ يُدْرَجَ فِيهَا وَكَفَنُ**

او خوشبوئی دی کړه سی کفنونه که دنروی او که ښځی تا لړواره دمخه د پیچلو د مړی په

**الضَّرُورَةِ مَا يُوجَدُ** هغوکی او کفن د مجبوری که د نروی او که د ښځی هغه قدر دی چې پیدا سو، په صحیح حدیث کی راغلی دی چې څه وخت چې په غزاکی د احد حضرت حمزه رض شهید سو په یوه جامه کی کفن سو. او مصعب ابن عمیر رض چې هم په غزاکی د احد شهید سو یوه شړی ئې درلوده چې پر سر بې ورواچول





پښی بې لڅی پاته سوی او که بې پر پښو ورواچول سر بې لڅ پاته سو. نو علیه الصلوة والسلام امر وکړی چې سر یې ور پټ کړی او پر پښو یې اذخر واښه ورواچوی نو دی کبله مصنف ووېل چې کفن ضرورت ما یوجد دی»

**پوښتنه** په حدیث شریف کی امام احمد په روایت کړی دی او اصحاب سنن بیله نسائی هم روایت کړی دی. دا سی راغلی دی چې علیه الصلوة والسلام وویل: مَنْ غَسَلَ مَيِّتًا فَلْيَغْتَسِلْ وَمَنْ حَمَلَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ». او امر خو د پاره د وجوب وی نو بـاید چې پر غاسِل د مړی غسل واجب سی، او پر حامل د مړی دی ودس واجب سي نو احناف به په جواب کی څه وائي:

**جواب**: حنیفیان وائی چې دا دوهم (۲) امر چې په دغه حدیث شریف کی راغلی دی د پاره د ندب دی. ولی چې په حدیث کی د ابن عباس تصریح په نفی د وجوب راغلی ده: امام محمد په موطاء کی وائی: ونأخذ بانه لاوضوء على من حمل جنازةً ولا على من حَنَّطَ ميتًا اوكفنه اوغسله» وهوقول ابي حنيفة» او ملا علی قاری وائی چې دا امر محمول پر احتیاط دی، او بعض فقهاء چې هغه سړی چې مړی ته غسل ورکړی د یر وار خفاء او مغموم ګرځی نو چې دی په خپله غسل وکړی هغه خفګان بې په نشاط او خوشحالی بدل سي، او دغه رنګه هغه څوک چې مړی پر اوږ و اخستی وی له ترلی څخه سوداء او د ل خستګی ور پیښیږی نو چې اودس وکړی هغه به دفع سی. دا وو حکمت د حدیث مذکور، ط، در..

**فائده**: غاسِل د مړی د ابتداء څخه د غسل تر پایه پوری دا دغه قول تکراره وی «غفرانك یا رحمن». **فائده**: مشروعیت د غسل د و خت څخه دا دم علیه الصلوة والسلام راغلی دی، حاکم یو حدیث چې ده یـه حکم په صحت سره هم کړی دی د اسی روایت کړي دی چې علیه الصلوة والسلام وو ئیله چې آدم علیه السلام غنم رنګه سره ترنګړی اودیر جګ سړی وو» نو څه وخت چې دی وفات سو، ملائکو حنوط او کفن د جنت وړته راوړه او بیا ملائکو غسل ورکړی په او بو او بعد ره سره درې (۳) واره، او په دریم وار کی یواندازه کافور هم استعمال کړه. او په تا کو کفنونو کی و پیچې او په قبر کی لحد ورجوړ

کی او لمونځ د جنازې یه ورکړې. او ملائکو دغه وخت عیال ته ددَه وویل: یَا بنی آدم هذه سنتکم من بعده فکذاکم فافعلوا،

**تنبیه**: په حدیث شریف کې راغلي دي که چا مړي ته غسل ورکاوه، او بعض علاماتي د بد بختۍ په کښې ولیدې مثلاً مخ یې تک تور سو، یا یې نس و پړسیدی او داسې نور شیان، او غاسل هغه شیان پټ کړه خدای پاک به ورده ته خلویښت کبائر گناهونه ورَ وَبخښي، او که چا کفن ورکړي مړي ته خدای به پر هغه واغوندي کالي د سندس او استبرق، چې دوه قسمه وړ لهښم دي،

او که چا مړي ته قبر ورجوړ کړي. او دې یه په کښې پټ کړي» دومره ثواب لري گویا ده ومړي تر ورځې د قیامت کور ورجوړ کړي، وعنه علیه الصلوة والسلام: یا علی غسّل الموتی فانه من غسل میتًا غفرله سبعون مغفرة، الحدیث،

**تاریخي یادگار** نن یعنې د جمعې ورځ ده تردې ورځې د مخه څلور ورځې کیږي چې امریکایانو او انگریزانو پر افغانستان د شپې او د ورځې هوائي بریدونه شروع کړي دي، او سکد توغندي یې پر عام المنفعه ځایو او پر هوائي میدانو او د طالبانو پر شک مند ځایو بلکه پر بیگناه عوامو هم بې رحمانه ظالمانه اوروي پر کابل، قندهار، جلال آباد، مزار شریف، هرات، شندنډ او پر نورو ښارو د افغانستان ورته بمباري د شپې او د ورځې د خوا شروع دي، او د زمیني حملې هم گوابن کوي، او یه موجوده حال کې بعض اسلامي مملکتو هم فضائي حملو ته د امریکا ته اجازه ورکړېده، او هم یه دوه هوائي میدانونه امریکا والاو ته ورکړي دي. او امریکا او انگریزانو قصد کړي دي چې د طالبانو حکومت به د ښنو غورځوي، او بله خواته اوس هندوستان و شمالي اتحاد ته چې د طالبانو مخالف ځواک دی بیشمېره سلاح ورکوي بلکه هیلی کاپټرې هم ورکړي دي، اللهم انصر الاسلام والمسلمین ودمر واهلك اعداء الدین من کانوا اللهم اهزم الکفرة والمشرکین ومن عاونهم.

**پوهه سه** چې مصنف تر دې او سه پورې بیان د غسل او کفن د مړي کاوه. ولې چې هغه د جنازې لپاره شرط دی او شرطونه خو هر ځای تر مشروط د مخه ذکر کیږي لکه طهارت تر لمانځه د مخه ذکر کیږي نو ځکه





چې مصنف د بیان څخه د شرطو فارغ سو نو اوس شروع په مشروط کوي فقال:

# فصل

دا نوري خبر دی د مبتدأ محذوف ای هذا فصل
او د ورو سته نور وجه اعرابي تعلق نه لري

**اَلصَّلٰوةُ عَلَيْهِ فَرْضُ كِفَايَةٍ** لمونځ د جنازې د مړي فرض کفائي دی دلیل د فرض والی خو یه اجماع دامت ده تر که محکم چې منکر یه کافر دی کما فی البدائع والقنیة، او علاوه تر اجماع احادیث صحیحه هم اثبات د فرضیت نه په کیږي، ولې اخبار احاد دي، قال علیه الصلوة والسلام: صلّوا علی کل برٍ وفاجرٍ، او هغه ایت مبارک چې طحطاوی پر صلوة جنازه دلیل گرځولي دی یعنی قوله تعالی: وَصَلِّ عَلَيْهِمْ، الآیه هغه استدلال صحیح نه دی، ولې چې مقصود په ایت کې خود دعاده بدلیل ما بعده: اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ، او فرض عین نه دی، ولې چې پر ټولو مسلمانانو فرض ده یو خو محال دی او بل حرج عظیم دی،

او بل دلیل دا دی چې په حدیث کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام وخلکو ته وویل: صلّوا علی صاحبکم، نو که فرض عین وای نو علیه الصلوة والسلام ولې پرېښو

**پوهه سه**: چې جماعت په لمانځه د جنازې کې شرط نه دی که یو سړي لمونځ ورکړي هم فرض ساقط سوه: **مسئله**: د جنازې لمونځ د لوی سړي افضل دی د کوچنې د جنازې تر لمانځه، ق. **مسئله**: نذر کول د جنازې، لمانځه صحیح دی ولې چې قربت مقصوده دی، او د تکفین یا د جنازې سره د تللو نذر نه دی صحیح، بحر،

**فائده**: چا چې وئیلي دي چې د جنازې لمونځ د خواصو څخه د دې امت دی هغه غلطه خبره ده. ولې چې د مخه تیره سوه چې ملائکو وادم علیه الصلوة والسلام ته پسله غسله د جنازې لمونځ کړی، او امام د جنازې د آدم ؏ حضرت جبرئیل علیه السلام وو» کما فی النهایة او ابن عماد وائي چې امام د لمانځه حضرت شیث علیه السلام وو،

پوښتنه: أُمنا خديجة الکبریٰ رضی الله تعالیٰ عنها چی پسله نبوت څخه د علیه الصلوٰة والسلام لس کاله وروسته وفات سویده، او علیه الصلوٰة والسلام د جنازی لمونځ نه دی ورکړی **جواب**: په هغه وخت کی د جنازی لمونځ مشروع نه وو قال الواقدی،

قال المصنفؒ **وَاَرْکَانُهَا التَّکْبِیْرَاتُ وَالْقِیَامُ** او ارکان د جنازی د لمانځه تکبیرونه دی او په ولاړه کول دی، مراقی وائي چی اول تکبیر شرط دی په اعتبار د شروع د جنازی په لمانځه او رکن دی په اعتبار د دی چی په ځای کی د رکعت ولاړ دی لکه دری تکبیره نور، چی هر یو په ځای کی د رکعت ولاړ دی. گویا د جنازی لمونځ څلور رکعته دی، محیط **مسئله**: د جنازی لمونځ په ناستی بیله عذر نه دی روا. او په سپرتیا کی هم نه دی روا. او که څوک د باران په سبب تول ختمی وه، بیا په سپرتیا روادی، ط،

قال المصنفؒ **وَشَرَائِطُهَا سِتَّةٌ اِسْلَامُ الْمَیِّتِ** او شرطونه د لمانځه د جنازی شپږ دی، اول اسلام د مړی دی، ولی د المونځ خوشفاعت دی او شفاعت د کافر دپاره نشته **پوښتنه**: چی اسلام عام دی که پخپله مسلمان وی او که په تبع د مور او پلار وی لکه د مسلمان کوچنی چی مړ سی، نو د جنازی لمونځ به ورکوی، او یا په تبع د دار وی لکه په دار اسلام کښی چی کشنی پیدا سی، **مسئله** که بالغ سړی څخه چا اسلام و پوښتی او د هغه نه وو زده، چی مړ سی د جنازی لمونځ به نه ورکوی، حموی س، قال

**وَطَهَارَتُهُ** او بل شرط په پاکوالی دی د مړی د نجاست حکمی او حقیقی څخه ولی چی مړی لکه امام دی او د امام طهارت شرط دی، زاد فی المراقی، وَطَهارةُ مکانِهِ، نو د جنازي لمونځ ورکول نه دی روا چی غسل نه ورکړه سوی. او یا په بدن نجاست وي،
**مسئله**: پاکوالی د کفن هم شرط دی نو که کفن د ابتداء څخه نجس وو خو پری دي مینځی وه نه لمونځ د جنازی نه دی روا، او که وروسته تر غسل د مړی څخه نجاست





او کفن په مردار سو په خزانه کی وائي چي دا نجاست مانع د لمانځه نه دی دفعًا للحرج او ووت
**مسئله**: که ځی مړی بیله غسله ښخ کړی او قبر ئی خاوری ور واچولی، نو د غسل د پاره دی بیرته خاوری نه ځندی غورځوی بلکه قبرته دی لمونځ ورکړی بیله غسله للضرورة، او کی صرف په قبرکی ایښی وو خاوری نه وی پر ور اچولی نو دی مړی او کانږی غسل دی ورکړی بیا دی لمونځ ورکړی:
او کی غسل نه وو ورکړی او لمونځ یه ورکړی د سببه د هیری، او یا د سببه د جهل، او مړی ښخ کړی خواری یه پر واچولی، بیا دی قبرته لمونځ ورکړی. ولی چی هغه د مخه لمونځ خو فاسد وو، او مراد د مکان څخه ځای د مړی د پورتی دی، ... نو که مړی پر جنازه وو او جنازه پاکه وه او لاندی ځمکه مرداره وه د جنازی لمونځ یه روادی، او که مړی پر ځمکه پروت وو نو د ځمکی طهارت شرط دی، او هغه خبره چی صاحب الفوائد کړیده. چی سره د نجاست د ځمکی یه هم لمونځ روادی. ولی چی کفن د مړی حائل دی، د اعتبار ور خبره نه ده، ولی چی په قنیه کی وائي چی کفن تابع د مړي دی نو حائل نه سو کیدای، درویش وائی: که مړی په پاک تلتک کی پیچلی وو کما هو المعتاد او لاندی ځمکه مرداره وه لمونځ د جنازی یه روادی ولی چی تلتک په سبب د عدم اتصال په بدن پوری د مړی تابع نه دی،،
**مسئله**: که د امام خپله بی او د سیانه وه پیاد او لمونځ یه ورکړی، وروسته ور معلومه سوه نو که څه هم قوم تول په اوداسه وی لمونځ به بیرته راگرځوی، ولی د تولو اقتداء نه وه پښی روا، او که امام اودس درلودی د قوم یا تولو او یا بعضو اودس نه درلودی لمونځ صحیح سو په سبب د یوازی امام، ولی چی د جنازی په لمانځه کی جماعت شرط نه دی، ط، در،
**مسئله**: که د جنازی په لمانځه کی اودس مات سو او بل څوک یه خلیفه کړی لمونځ یه صحیح دی **مسئله**: که ځمکه مرداره وه او د سړی څوکۍ یا گوتونه مثلاً په پښو وه لکن د پښو سره جوت تلی ده څوکۍ مثلاً پاک وو کی څه هم لاندی تلی مردار وی لمونځ د جنازی په کښی روادی،،
اللّهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما ولمن نظر الیه بعین الانصاف آمین آمین

قَالَ المصنفؒ **وَتَقَدُّمُهُ وَحُضُوْرُهُ** لمارانکا الامام، اوبل شرط دادی چې مړی به دمخ وخواته وی
اوبل شرط دجنازی د لمانځه دادی چې مړی به حاضر وی و غائب مړی ته لمونځ نه دی روا. مراقی وائی که اکثر بدن دمړی یا نیمی سره دسره، حاضر وی دجنازی لمونځ به روا دی:

**فائده:** نجاشی په فتحه دنون چې دحبشی بادشاه وو او قوم به اصحمه وو چې عربی معنا به عطیة الله ده او مسلمان وو. نوکله ورځ چې دی په حبشه کی مړ سو آنحضرت صلی الله علیه وسلم په صحابه وؓ ته خبرو کړی او غائبانه د جنازی لمونځ ورکړی نو ددی څخه دا سوال پیدا کیږی چې حضور دجنازی شرط نه دی، نو مراقی په جواب کی ددی سوال وائی: چې جنازه د نجاشی ملکو ایور ته کړه. چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم ولیدله نوئی لمونځ ور کړی. دا د نجاشی کرامت وو او د نبی علیه السلام معجزه وه، او په لمانځه کی دجنازی یوازی د امام لیدل ضروری دی دخلګو لیدل نه دی. او بعض فقهاءؒ وائی چې دا غائبانه لمونځ خصوصیت د نجاشی دی،
او بعض علماء وائی چې مراد د صلاة څخه په قصه کی د نجاشی صلاة لغوی دی، یعنی دعاء یه ورته وکړه دجنازی اصطلاحی لمونځ نه دی. لکن دا اخیری جواب احادیثو سره سمون نه خوری ولی چې په حدیث کی راغلی دی چې څه وخت چې علیه الصلوٰة والسلام خبره د مرګ د نجاشی خلګو ته ووایه نو د څخه سوا او صحابهؓ په صفوکی پس ودریدل، نو ددی څخه واضح معلومیږی چې مصطلح دجنازی لمونځ یه ورکړی. والجواب الاول هو المشهور المقبول. المطابق لما اخرجه الطبرانیؒ وابن سعدؒ فی الطبقات چې جبرئیلؑ راغلی و علیه الصلوٰة والسلام او دی په تبوک کی وو، او ورته وی وئیله چې معاویه په مدینه منوره کی وفات سوی دی د جنازی لمونځ ور کوی علیه الصلوٰة والسلام ورته وو ئیل هو، نو جبرئیلؑ پخپل وزر وهل او جنازه ښکاره او حاضره سوه. نو علیه السلام چې لمونځ ور کاوه دوه صفه ملکی پس ودریدی چې هر صف یه اویا زره وو، نو پس له لمانځه علیه الصلوٰة والسلام د جبرئیلؑ څخه پوښتنه وکړه چې دا سړی په څه سبب د رجی ته رسیدلی وو، جبرئیلؑ ورته وو ئیله چې په





محبت د سورة اخلاص چې د. قائمًا اوقاعدًا ذاهبًا او جائیًا وعلی کل حال دا سورت مبارك وایه: درویش وائی: چې ددی حدیث څخه عظمت او شرافت د سورة اخلاص هم معلومیږی سبب دادی چې دا سورة مبارك توحید محض دی د خدای جل شانه. قَالَ المصنف

**وَكَوْنُ الْمُصَلِّىْ عَلَيْهَا غَيْرَ رَاكِبٍ وَغَيْرَ قَاعِدٍ بِلَا عُذْرٍ**

او کوم خلك چې پر جنازه باندی لمونځ کوی هغه به پر پوده باندی سپور او ناست نه وی بیله عذره، په مراقی کی وائی چې قیام رکن دی په لمانځه کی دجنازی. نو بیله عذره یه ترك نه دی روا، او وائی چې سره د عذره بیا صحیح دی، لکه چې امام مریض وی نو دی په ناستی لمونځ ورکوی او خلك دی پس ولاړ وی، لکه چې په نورو لمونځو کی چې هم داغسی روا ده، لکن دا په نیز د شیخینو. او امام محمدؒ یه روانه بولی، دجنازی د لمانځه په ناستی، دغه اختلاف بناء دی په اختلاف د اصلی لمونځو ولې چې هلته امام محمدؒ اقتداء د قائم په قاعد پسی روانه بولی او شیخینؒ یه روا بولی، نو چې د امام لمونځ قاعدًا روا دی په عذر سره د مقتدی په طریق اولی روا دی. قَالَ المصنفؒ:

**وَكَوْنُ الْمَيِّتِ عَلَى الْاَرْضِ فَاِنْ كَانَ عَلٰى دَابَّةٍ اَوْعَلٰى اَيْدِي**

اوبل شرط د صحت د لمانځه دجنازی دادی چې مړی به پر ځمکه پروت وی، نو که مړی پر یوه دابه وو او یا پر لاسو دخلګو

**النَّاسِ لَمْ تَجُزْ عَلَى الْمُخْتَارِ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ** وو د جنازی لمونځ نه دی روا پر مختار مذهب مګر نه دعذر د سببه، یو عذر خو دادی چې ځکه ختی او چکړ وی مړی نه پر ایښول کیږی»

**مسئله:** دا شرط په باره کی دهغه چا دی چې د امام سره یه اول د لمانځه نیولی وی چې د مدرك په نامه یادیږی. او که د چا څخه بعض تکبیرونه تیر سوی وه، چې مسبوق یه بولی نو دغه سړی بیر یدی چې که ږه پاته تکبیرونه سره د دعا ګانو وایم جنازه پورته کیږی دعا ګانی

دی پرېږدی، صرف تکبیرونه دی پرله پسی وَوَائی اوکه نه بیریدی تکبیرونه سره د دعاگانو وَوَائی وهوالمشهور وعلیه الفتوٰی، وَقیل غیرذالک،،

**فَائِـدَه**: بوشرط چی مصنفؒ نه دی راوړی. دا دی چی امام به بالغ وی لکه په نورو لمونځونو کی، اوبل شرط دا دی چی امام به دیوجزء سره دَمړی برابروی» در، قهر، لکن دا شرط هلته دی چی مړی یو وی اوکه مړی ډیروه دیوصف د مخه ترامام دی کښیږدی اوامام دی پر برابرد هغه مړی په دوی کی چی افضل وی ودرېږی،، در، ط، قَالَ المُصَنِّفُ

## وَسُنَّتُهَا اَرْبَعٌ قِيَامُ الْاِمَامِ بِحِذَاءِ صَدْرِ الْمَيِّتِ ذَكَرًا كَانَ اَوْ اُنْثٰى

اوسنت د لمانځه دجنازی څلوردی ۱ـ ولاړه دَ امام ده پربرابرد څیگرد مړی که مړی نر وی اوکه ښځه، ولی چی په څیگر کی زړه دی. اوپه هغه کی نور دَایمان دی. نوپه دې دریدوکی اشاره وشفاعت ته دایمان دَمړی ده، **مسئله** صغیراوکبیر په دی دریدوکی یوشی دې،، م ط، س،

**پوهـسه**: چی دریده پربرابرد صدر مذهب مختار دَی،، اولعض وائی چی دَنر دی پر برابرد سر دریږی، ولی چی سر معدن العقل دَی. وفیه انه لافرق بین الرجل والمرأة فی ذالک فلاوجه لتخصیص الرجل، اوبعض وائی چی دنر اوښځی دواړودی پربرابردوسط درېږي،، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَالثَّنَاءُ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الْاُوْلٰى

۲ـ اودوهم شرط ویل دی دسبحانک اللّٰهمّ تر پایه پوری پس له اولی تکبیر قال فی المراقی یجوز قراءة الفاتحة بقصد الثناء کما نصّ علیه علمائنا: **پوهـسه** چی مسئلة قراءة الفاتحة لویه اختلافی مسئله ده. امام شافعیؒ قرائت دفاتحة الکتاب فرض بولي، اوامام مالکؒ وائی چی قرائت دفاتحه په بناری دمدینی معمول په صلاة الجنازه کی نه دی، **سوال**: په بخاری کی داسی حدیث راغلی دی چی ابن عباسؓ یوې جنازی ته لمونځ ورکړی اوفاتحة الکتاب یه وَوَئیله: وقال لتعلموا انه من السنّة»





**واجاب عنه** الطحاویؒ چی قرائت دفاتحی چی داصحاب الکرامؓ څخه منقول دی هغه پروجه د دعاء اوثناء دی نه پروجه دَ تلاوة القرآن، اود مذهب احنافو علماءهم دا وائی که فاتحه پروجه دثناء ووائی خو پروا نه لری، اوکی په نیت دقرآن ووائی هغه نه دی رَوا، وهذا مصرّح فی کتب المذهب، کالمحیط، والتجنیس، والولوالجیة وغیرها، بلکه پدی قصد یه ویل مکروه تحریمی دی، ط ۲۸۱، ومزید التفصیل فی م وط.

## ومن خصائص صلاة جنازة النبی صلی اللّٰه علیه وسلم لایجوز فی غیره من الاموات

دادی چی آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم چی په ورځ ددوشنبی وفات سو، اوغسل اوکفن ورکړه سو، اودی مبارک پرتخته په خونه کی دبی بی عائشهؓ کښیښول سو، نو ابوبکرؓ و عمرؓ حجری ته ورغله اوپه صف کی پر برابر دعلیه الصلوٰة وَالسلام ودریدل. اودوی سره بعض مهاجرینؓ اوانصارؓ هم ملګری وه خونه چی په حجره کی ځائیده. نودجنازې لمونځ یه وَرکړی یعنی په امامت دابوبکرؓ وروسته ابوبکرؓ اوعمرؓ وَوئیله، اَلسَّلامُ عَلَیْكَ ایها النبی وَرَحْمَتُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُه، اومهاجرینوؓ اوانصاروؓ هم ورته سلامونه وَویل. بیا حضرت ابوبکرؓ الصدیق (وحضرت عمرؓ داسی ووئیله، اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَشْهَدُ اَنَّه بَلَّغَ مَا اُنْزِلَ اِلَيْه» ای اللّٰه مونږ شاهدان یو چی علیه الصلوٰة وَالسلام ورساوه هغه دین چی دده ته نازل کړی سوی وُو: وَنَصَحَ لِاُمَّتِهِ، اونصیحت یه وکړی خپل امت ته، وَجَاهَدَ فِی سَبِيْلِ اللّٰهِ، اوجهاد یه وکړی دکفارو سره په لاره کی دخدائ: حَتّٰى اَعَزَّ اللّٰهُ دِيْنَه» حتیٰ چی غلبه خدای پاك ورکړه ودین ته دَده، وَتَمَّتْ كَلِمَتُه، اوپوره سوه کلمه دخدائ یعنی» لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰه، واومن بهٖ وحده لاشریك له» اوایمان راوړه پرخدای یوازی چی شریك نسته دَ له، وَاجْعَلْنَا اِلٰهَنَا مِمَّنْ يَّتَّبِعُ الْقَوْلَ الَّذِىْ مَعَه» مونږ اګرځوی ای باداره زمونږ دَهغه کسانو څخه چی متابعت کوی دَهغه قول چی دَده سره وو» یعنی القران والاحادیث، وَاجْمَعْ بَيْنَنَا وَبَيْنَه» اوسره جمع کړی مونږ او اودی یعنی په ورځ دقیامت کی، حَتّٰى تُعَرِّفَنَا بِهٖ وَتُعَرِّفَه بِنَا» حتی په مونږ وپیژندی

مبارک اوپه ده ۴ مبارک وپیژنو، فانه کان بالمؤمنین رءوفا رحیما، ولحج
مبارک وو پر مؤمنانو مهربانه: لا نبتغی بالایمان بدلا، مونږ نه غواړو د ایمان
په مقابل کی بدل، ولا نشتری به ثمنا ابدا، او مونږ نه رانیسو په ایمان سره ثمنا
همیشه، اوخلکو به ویل امین، او دا خلک به بیا وتل او نور به داخلیدل حتی چی
ټولو خلکو ته ئې دیدن وکړو او علیه الصلوة والسلام ته ورکړی. په اخیرکی کښنیان راغله
هم دا وظیفه اداء کړه. او په بعض روایاتو کی داسی راغلی دی چی صحابه کرام رض دلیری او
نژدی خلکو ته راوله څخه د دوشنبی د ورځی ترزواله پوری دسه شنبی د ورځی
داوظیفه دلمانځه او د سلام ویلو جاری وساتل، او بعض روایات داسی هم راغلی دی چی
تر درو ورځو پوری لمونځونه وکول جاری وه. امام طحطاوی په نقل دسید شارح وائی چی
فراډی او مکرر لمونځونه د خلکو علیه الصلوة والسلام ته امر مجمع علیه دی هیڅ اختلاف
په کښی نشته، ط، ص ۲۸۲ س در، قال المصنف:

# والصلوة علی النبی صلی الله علیه وسلم بعد الثانیة

او درود دی وائی پر نبی علیه الصلوة والسلام وروسته تر دوهم تکبیر یعنی اللهم صل علی
محمد آه یعنی د التحیات درود. او دا درود افضل دی او که بل درود ووائی هم روا دی.

**تنبیه** اولی داده چی تر دریم تکبیر وروسته چی دعا کوی په اخیرکی دی درود ووائی
بلکه دهری دعاء ادب دادی چی په سر او پای کی درود ووائی. چی په حدیث شریف کی
راغلی دی: الاعمال موقوفة والدعوات محبوسة حتی یصلی علی اولا، واخیرا جوهره
سراج، سیئر، وبهذ اللفظ وان لم یکن فی الحدیث المرفوع لکن معناه صحیح مطابق للاحادیث
الاخر، قال المصنف:

# والدعاء للمیت بعد الثالثة ولا یتعین له شئ وان دعا بالماثور فهو احسن وابلغ

او بل سنت دلمانځه دجنازی دعا ده ومړی ته پسله دریم تکبیره څخه او دعاء د مړی دپاره معین شی نشته،





او که چیری هغه دعا چی منقوله ده په حدیثو کی وکړی نو ډیره ښه او ابلغ ده: یعنی: اللهم
اغفر لحینا ومیتنا وشاهدنا وغائبنا وصغیرنا وکبیرنا وذکرنا وانثانا. اللهم
من احییته منا فاحیه علی الاسلام ومن توفیته منا فتوفه علی الایمان
ثم یقرء الصلوة علی النبی کما مر، قال المصنف:

# ومنه ما حفظه عوف من دعاء النبی صلی الله علیه وسلم

او د ماثور دعاوو څخه هغه دعا هم ده چی عوف رض یاد کړیده. د دعا څخه د نبی
علیه السلام یعنی د جنازی په لمانځه کی، چی یو صحابی رض وفات سوی وو، چی ضمائر د دغی دعا
گرده وهغه مړی ته راجع دي، هغه دعا داده: اللهم اغفر له وارحمه. خدایه ته دی
وبخښی او پر ده رحم وکړی" وعافه "او دی خلاص کی د عذاب څخه" واعف عنه "او
ده ته بخښنه د گناهو وکړی: واکرم نزله، او ده ته ښه میلمستیا ورکړی، یعنی ډیر
ثوابونه په اخرت کی او نعیم القبر ورکی، ووسع مدخله" او فراخه کړی ځای د داخلید
د ده یعنی قبر، واغسله بالماء والثلج والبرد.

**پوه سه**: چی په دی دعا کی مقصود پاکوالی د مړیده د ټولو صغیره او کبیره گناهونو
څخه او د غمو څخه د دنیا او اخرت، ولی پر یوه د کالو ذکر ونو، په دنیا کی په اوبو کیږی، او د
واوری په اوبو او د ږلیو په اوبو. ونقه من الخطایا. او ته ئې پاک کړی د ټولو گناهو څخه
"کما ینقی الثوب الابیض من الدنس، لکه چی پاکول کیږی سپین کالی د خیرو څخه
"وابدله دارا خیرا من داره" او ده ته بدل ورکړی سرای چی قبر دی چی ښه وی تر سرای د ده
په دنیا کی، واهلا خیرا من اهله وزوجا خیرا من زوجه، او ده ته ورکړی اهل چی یا مراد
ملائکة الرحمة دی او یا همسایگان د مړو دی چی هغه بهتروی تر همسایگانو د ده په
دنیا کی او ده ته ورکړی مایند چی خیروی تر مایندی د ده په دنیا کی، یعنی په جنت کی،

**پوه سه**: چی زوج اسم جنس دی هر څو ماینو ته شامل دی، "وادخله الجنة"
او ته دی داخل کړی وجنت ته، واعذه من عذاب القبر وعذاب النار" او دی

وَساتی د عذاب څخه دَقبر اود عذاب څخه داور یعنی دوږخ، داوه دعا د علیه الصلوٰة والسلام حتیٰ عوف وائی چې رمایه ښه کی داخوښه وه چې کشکی دامړی زه وای، رواه مسلمٌ، والترمذیٌ والنسائیٌ»

**مسَئَله** که چیرته داغه اوښ دی دعاوی نه وی زده، نو داغه قدر دعاء دی وکړی: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَنَا وَلَهٗ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ» **پُوهِ سَه**: چې اکثر عوام ده ژبې دغه قدر دعاء د عربئ هم نه وی زده، نو اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آه دی ووائی لکن دَمړی نیت دی په کښی کوی، قال المصنفؒ

## وَيُسَلِّمُ بَعْدَ الرَّابِعَةِ مِنْ غَيْرِ دُعَاءٍ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ

او سلام دی وګرځوی پسله څلورم تکبیر یعنی وجوباً بیله دعاء په ظاهر روایت کی، او بعض علماوو ښه ګنړلی ده دعاء وروسته تر سلام یا اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا اٰتِنَا الخ یا رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا الخ په مراقی کی وائی چې په دوارو سلامو کی دَمړی اود قوم نیت کوی یعنی امام او مقتدیان به دامام نیت هم کوي، **مسَئَله**: سلام دی په زوره نه وائی دجنازی په لمانځه برخلاف دَنورو لمنځو او دعاء دی هم کراره کوی لکن تکبیرونه دی په زوره وائي: قال

## وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي غَيْرِ التَّكْبِيرَةِ الْأُولٰى

او لاسونه دی نه پورته کوی په غیر کی ده اول تکبیر» اود اهم ظاهر الروایته دامام اعظمؒ څخه او ډیر مشا ئخو څخه دَبلخ ده هر تکبیر لاسونه پورته کوي، **پُوهِ سَه**: چې امام محمدؒ په خپل کتاب موطا کی وائي چې دجنازی د لمانځه سلام پرسړی دوه ښه قدر په زوره وائي چې ورته څرمه سړی اوری،، ثم قال وهو قول ابی حنیفةؒ: او امام ابی یوسفؒ وائی چې امام دی نه غایت جهر په سلام سره کوی لکه په نورو لمونځو کی اونه دی کراره وائي، او مقتدیان خودی کراره وائي قال المصنفؒ

## وَلَوْ كَبَّرَ الْإِمَامُ خَمْسًا لَمْ يُتَّبَعْ وَلٰكِنْ يَنْتَظِرُ سَلَامَهُ فِي الْمُخْتَارِ

او که امام پنځه تکبیره ووئیله په پنځم تکبیر کی دده متابعت نه کړه کیږی لکن





مقتدی دَده سلام انتظار وکړی په مختار روایت کی، ولی چې پنځم تکبیر منسوخ دی، او په غیر مختار روایت کی راغلی دی چې څرنګه چې امام پنځم تکبیر وائی مقتدی دی وګرځوی لکن مختار روداده چې د امام سره یوځای سلام وګرځوی، **مسَئَله**: که امام سهواً پردری تکبیره سلام وګرځاوه مقتدیان دی څلورم تکبیر ووائی او بیا دی سلام وګرځوی» مر» **فَائِدَه**: په دعاء کی د لمانځه دجنازی د ښځی دی تهوله ضمیرونه مونث وائي، ط» **مسَئَله**: مستحب په صفونو کی د لمانځه دجنازی دادی چې صفونه دی طاق وی هرڅو چې وی حتیٰ په فقهی شریفی کی مسئله ده چې که حاضرین دجنازی د لمانځه شپږ کسان وه. نو په امام پسی دی په اول صف کی دری کسه ودریږی او په دوهم کی دی دوه کسه ودریږی او دریږی به هغه یو سړی د دوهم صف تر شا، حاصل دا چې تر دری (۳) صفه دی کم نه وي.. او که خلک پنځه یا څلور وه چې دری صفه یه نه پوره کوي یعنی د(۶) شپږ وپر رقم. نو په اول صف کی دی ۲ نفره وی په دوهم کی دی هم دوه ۲ نفره وی او په دریم صف کی دی یو سړی وی، د پنځو په صورت کی به اول دوه وی بیا یو بیا یو، همدا رنګه دا او په صورت کی- او د څلورو او یا دری په صورت کی دی کیف یشاء ودریږی، در، قال

## وَلَا يَسْتَغْفِرُ لِمَجْنُوْنٍ وَصَبِيٍّ

او دعا دی نه کوی وَلیونی او نه کچنی ته: کچنی خو اصلا ګناه نه لري. او د لیونی څخه هغه لیونی مراد دی چې دَرلیونی وی ولی چې هغه هم ګناه نه لري، او که جنون عارضی وو یعنی وروسته تر بلوغ آفت دجنون ور پیښ شوی. نو د هغه یاره دی د مغفرت دعاء کوی. ولی چې امکان شته چې په وخت د افاقت کی دی د بعض ګناهونه کړي وی. خصوصاً چې اوائل دَبلوغ دَهیجان دَشهوت وخت دی، او جنون عارضی خو دا ښی نه دی چې ما قبل ګناهونه دی لغوه کړی» ط در، قال

## وَيَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَاجْعَلْهُ لَنَا اَجْرًا وَذُخْرًا

ای الله! ته وګرځوی دغه مړي چې لیونی یا کشنی دی زمونږ دپاره ثواب مقدم او وګرځوی دغه مړی

ولې چې دا وصیت باطل دی، کما قاله الصدر الشهیدؒ وفیه رد علی ابن رستم ان الوصیة المذکورة جائزة. قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَاِنْ دُفِنَ بِلَاصَلٰوةٍ صُلِّیَ عَلٰی قَبْرِهٖ وَاِنْ لَّمْ یُغَسَّلْ مَالَمْ یَتَفَسَّخْ

اوکه مړی ښخ کړه سُو بیله لمانځه وَرکولو یعنی خاوری یې هم پرواچولې نو پرقبر دده دې دجنازې لمونځ ورکړی کۀ څه هم غسل نه وی ورکړی ترهغو چې مړی شوړیدلی نه وي، یعنی چونکه دَمړی راکښل حرام دی نو په دی سَبب شرط د طهارت دَمړي دجنازې د لمانځه دپاره ساقط سُو. اوپه غایة البیان کی وائي چې لمونځ دی هم نه ورکوی، ولې چې بې طهارته دَمړي لمونځ نه دی مَشروع. لکن قول د مصنفؒ استحسان دی، وعلیه الفتوٰی، د ر، ط»

**مَسْئَلَه.** کۀ وری نه وی پراچولی نودې بیرته مړی را او کابی غسل دی ورکړی بیا دی لمونځ ورکړی. للقدرة علیٰ غسله کما یکون المیت علی السریر» **پُوښتَنه** چې شوړیدَل دَمړی کوم معین وخت نه لري بلکه معتبر په تفسخ کی ظن غالب ذړوندی دی. ولې چې تفسخ په اعتبار دابدانو مختلفه کیږی. یعنی چېرچاغ سَړی ژر شوړیږی اوډنګر سَړی ژر نه شوړیږی. اوپه زمانه کی هم فرق لری. یعنی په گرمی کی ژر شوړیږي اوپه یخ کی ژر نه شوړیږی.

**فَائِدَه:** پسله تفسخ ولې دجنازې لمونځ نه وَرکوی؟ سبب یې دادی چې لمونځ دجنازې بدن د میت غواړی. اوترشوړیدو وروسته خو بدن نسته صرف اجزاء دي.

**پُوښتَنه:** په حدیث کی د بخاري په روایت دعقبه بن عامرؓ داسی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وَسَلم پسله اته (۸) کاله شهد او احد لمونځ وکړي نو په دونه زمانه کی خامخا مړی شوړیږی بلکه غوښی یې لاهم توئیږی اوهډوکی جلاجلاکیږی. **جَوَاب:** بعض محدثین وائی چې صلوٰة په دغه حدیث کی په معنیٰ دعا دی او دعا مړی ته هروخت روا ده، لکن صحیح جواب دادی چې شهداءؓ





داحد نه وه شوړیدلی. اونه به وَشوړیږی تکیما الهم من الله عزوجل» دلیل یې دادی چې په خلافت کی دحضرت معاویه رضی چې ده غوښته چې شهداء داحد بل ځای ته نقل کړی تاچې هغه چینه چې په احد کی وه د شهداء احد په هدیرو کی تیره کی، نو چې قبرونه د شهداء احدؓ یې ژغ کړه، نوویئ لیدل چې شهداءؓ هم هغسی پراته وه لکه چې اول ایښوول سوی وَه»

حتیٰ چې بیلچه ناگاه دگوتی څخه دحمزهؓ ومښته ترگوتې یې وینې راغلی. نومعاویهؓ دوی بیرته بیت کړه او د دوی نقل یې صرف نظر کړی، اویا دا لمونځ ورکول خصوصیت دانحضرت صلی الله علیه وَسَلم وو، لکه چې په ډله ډله وآنحضرت صلی الله علیه وَسَلم ته لمونځ ورکول کما مَرَّ دخصوصیاتو څخه دده مبارک دی، اودغه رنگه خندول ددفن دده مبارک د دوشنبې دورځې څخه ترچارشنبې ترماښام پورې خصوصیت دده مبارک دی، اوسره ددې چې په حق کی دبل چا دونه ځنډول مکروه تحریمی دی، اویا ددی سَببه دفن د علیه الصلوٰة والسَّلام وځنډیدی تاچې ټوله صحابه کرامؓ حتی الغا سَبین ورده ته لمونځ ورکړی، ولې چې صلوٰة جنازه پرټولو اصحاب کرامو فرض عین وه داسی هم نه وَه چې فرض دصلاة الجنازه دده مبارک. په اولو ډله سره پوره سوا ونورلو نځونه نفلی وَه، ولې که داسی وای نو بیا سلمانانو تریوم القیامة پوری وقبرانورته د علیه الصلوٰة وَالسلام دجنازې لمونځ ورکولای

**مُهِمَّه فَائِدَه:** امام طحطاویؒ اونورفقهاءؒ وائي چې جسد مبارک د علیه الصلوٰة وَالسلام هغسی لکه چې اوله ورځ چې په قبرکی ایښوول سوی دی هغسی تازه پروت دی بل: هُوَحَیٌّ یُرْزَقُ ویَتَنَعَّمُ بسائر الملاذ وَالعبادات» وکذا سائر الانبیاء علیهم السلام: لما جاء فی الحدیث: انَّ الله قد حَرم علی الارض ان تأکل اجساد الانبیاء او کما قال: قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَاِذَا اجْتَمَعَتِ الْجَنَائِزُ فَالْاِفْرَادُ بِالصَّلٰوةِ لِکُلٍّ مِّنْهَا

اوکه سره یوځای سوی ډیری جنازې نو هرجنازې لیعنی مړی ته دهري جنازې جلاجلا لمونځ

**اَوْلٰى وَيُقَدِّمُ الْاَفْضَلَ فَالْاَفْضَلَ** وركول اولىٰ اوښه كار دى اوبيا دى په ترتيب سره وركړي چه په مړوكى دى اول افضل دهغومړو لمونځ وركوي اوور وسته بل افضل ته تر اخيره پورى

**فَائِدَه:** كه يوه جنازه د مخه تر نور و راغلى وه كه څه هم مړى يه مفضولوى خوبيا هم هغه مړي ته دى دمخه لمونځ وركړي وهكذا ، م، ط، د، قَالَ

**وَاِنْ اِجْتَمَعْنَ وَصُلِّىَ عَلَيْهَا مَرَّةً وَّاحِدَةً** لكه په حرمينو شريفينو كى په سبب دازدحام اوكه ډيرى جنازى جمعه سوى، هم اوس داغسى رواج دى لكن په يوه پلا يه لمونځ وركاوه، يعنى كه څه هم خلاف الاولىٰ خودى لكن روادى اوكه عذر وو بيا خلاف الاولىٰ هم نه دى،

**دَرُوْيش وائى:** چى اينبوولو كى دجنازو دوه صورته دى يود ظاهر الروايه صورت دى دحضرت الامام الاعظمؒ څخه چى مصنفؒ وائى. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**جَعَلَهَا صَفًّا طَوِيْلًا مِمَّا يَلِى الْقِبْلَةَ بِحَيْثُ يَكُوْنُ صَدْرُ كُلِّ** اووه دى گرځوى امام دغه ډيرى جنازى يواوږد صف وطرفته دقبلى په داسى ډول **قُدَّامَ الْاِمَامِ** چى څيگر دهرمړى مخته د امام وي. اوغيرظاهر الروايه دادى چى توله مړى دى صف عريض وگرځوى. اوامام دى وافضل ته دمړو برابر ودريږى، اوابن ابي ليلىٰؒ وائى چى سره هرمړى به كښته ترسره دبل مړي وى په اندازه دفضيلت ددوى. اوامام داول مړى دڅيگر برابر ودريږى، امام اعظمؒ وائى چى داسى وضعه ښه ده، ولى چى نبى عليه الصلوٰة والسلام اوابوبكرؓ اوعمرؓ په قبروكى پرد غسى وضع دى اودلا نځه وضع پر ترتيب دوضع دقبرده». قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَرَاعَى التَّرْتِيْبَ فَيُجْعَلُ الرِّجَالُ مِمَّا يَلِى الْاِمَامَ ثُمَّ الصِّبْيَانُ** اوبيا اينبوولو كى دمړو جنازى دلا نځه دپاره دى مراعات دترتيب دافضليت دمړو وكړى.





**بَعْدَهُمْ ثُمَّ الْخُنَاثٰى ثُمَّ النِّسَاءُ** پسى هغه دادى چى ترلان دى وامام ته څرمه او بيادى كښيان ترهغوور وسته اوبيا دى نرښځيان وى اوبيا دى ښځى وى يعنى لكه دنورو لمونځو دپاره صفونه چى هم دغسى ترتيب يه دى. اوكه چيرى توله نروه نوحسنؒ دامام اعظمؒ څخه روايت كړى دى چى هغه قول دامام ابويوسفؒ هم دى، چى افضل دمړو اويا مشر دمړو وامام ته نږدى كښيږدى» قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَلَوْ وُضِعُوْا بِقَبْرٍ وَّاحِدٍ وُضِعُوْا عَلٰى عَكْسِ هٰذَا** اوكه يه متعدد مړى په يوه قبركى دفن كول يعنى په سبب د ضرورت چى مړى ډيروو نودهريوه دپاره جلا قبر كښل حرج وو، نودغه مړى دى پرعكس دترتيب مذكور په قبركى كښيږدى. يعنى دقبلى وخواته دى افضل فالافضل دمخه اېږدى. اواكثره علماؤ اوكثره قرانًا دى دمخه اېږدى لكه چى په شهدآءؓ كى داحد دغه ترتيب مراعات سوى وو چى په كتابوكى داحاديثو مبارك كه ووددى تفصيل موجود دى، قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَلَا يَقْتَدِى بِالْاِمَامِ مَنْ وَجَدَه بَيْنَ التَّكْبِيْرَتَيْنِ** اواقتداء دى نه كوي په امام پسى هغه څوك چى امام ته ورسيږى اوامام په مابين كى ددوو تكبيروو ى بلكه انتظار **بَلْ يَنْتَظِرُ تَكْبِيْرَ الْاِمَامِ فَيَدْخُلُ مَعَه** دى وكړى چى امام بل تكبير ووائى نودى په لا نځه كى ورسره داخل سى، اوداهم مذهب دامام اعظمؒ اود امام محمدؒ دى اوامام ابويوسفؒ وائى چى څنگه چى مقتدى حاضر سو دامام سره داخل سى په لا نځه كى اهغه تكبير چى امام دمخه ترحضور ددده ويلى دى هغه تكبير مقتدى گوياونيوى، نومثلًا كه دمقتدى څخه فقط اول تكبير تير سوى وو، نو په مابين كى داول تكبير اود دوهم تكبير سره دى اقتداء په پسى وكړى، نو ددى مقتدى تكبير ونه پوره سوه اودامام سره به يوځاى سلام گرځوى پر نيزد امام ابويوسفؒ » اوپه نيزد

د طرفینو" دیوه تکبیر به قضا راوړي، وعلیٰ هذا فقس الصور الاخر،"

دلیل د مذهب د امام اعظمؒ او د محمدؒ دا دی چې تکبیرونه د جنازې په ځای کې د رکعتو دلا ئخه ولاړ دی. او په نورو لمونځو کې خو مسبوق حکم دا دی چې دی به پسله سلامه دامام تیرسوي رکعتونه راګرځوي، ودا سې نه ده روا چې مسبوق به په خلال کې د لمانځه د امام خپل تیرسوي رکعتونه راګرځوي، نو پر دغه قیاس په لمانځه کې د جنازې چې امام تکبیر تیرسوي تکبیر اوګرځاوه، نو ځکه دی به انتظار د بل تکبیر کوي،

**پیوسته**: چې مذکور في المتن ظاهر روایت دی کما في النهر هو الصحیح، اوکافي والان جیح وقول د امام ابویوسفؒ وګرځیده. او په درمختار کې وائي وعلیه الفتوی والله اعلم بالصواب" قال المصنف:

## وَيُوَافِقُهُ فِي الدُّعَاءِ ثُمَّ يَقْضِي مَا فَاتَهُ قَبْلَ رَفْعِ الْجِنَازَةِ

او دغه مسبوق مقتدي به موافقت کوي د امام سره په دعاء کې، یعنی کې او ریده چې مشائخ د بلخ وائي چې دعاء دي دا سې کوي چې هر صف والا د دغه صف نخچې واوري، اوبیا دغه مسبوق دی قضاء راوړي دهغه تکبیرو چې دده نه تیرسوي وي، د مخه تر پورته کیدو د جنازې نو که دی مطمئن وو چې نه که ما بین التکبیرات دعاوي کوم جنازه نه پورته کیږي، نو تکبیرونه سره د دعاء دی قضاء راوړي. او که بیریدی چې جنازه پورته کیږي نو فقط قضاء سوی تکبیرونه دی وواﺋي،" قال المصنف:

## وَلَا يَنْتَظِرُ تَكْبِيرَ الْإِمَامِ مَنْ حَضَرَ تَحْرِيمَتَهُ

او انتظار د بل تکبیر د امام دی نه کوي هغه څوک چې په وخت کې د تحریمې حاضر وي، لکن د امام سره یوځای تحریمه به نه وي وېلی، یعنی دی دې تکبیر ووائي او په اول تکبیر کې د امام شریک سو، او سلام دی یوځای ورسره وګرځوي،







قال المصنف

## وَمَنْ حَضَرَ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الرَّابِعَةِ قَبْلَ السَّلَامِ فَاتَتْهُ الصَّلٰوةُ فِي الصَّحِيحِ

او که حاضر سو جنازې ته پسله څلورم تکبیره د امام اما د مخه تر سلام نو لمونځ د جنازې څنډې فوت سو په صحیح روایت کې، چې د امام مذهب د طرفینو دی په بزازیه کې وجه دا وائي چې د امام تول تکبیرونه خو تیرسوي دی نو دي به وازي تر څو نګه تکبیر ووائي، او امام ابویوسفؒ وائي چې دغه سړی دي فورًا " الله اکبر" ووائي نو ګویا د څلورم تکبیر د امام ونیوی. او چې امام سلام وګرځوي ځوي درې تکبیره نور به دی قضاء راوړي، قبل رفع الجنازة کما سبق في الاختلاف الاول" قال في الخلاصة وغیرها وعلیه الفتوی کما في ماسبق،" ط مردر. قال المصنف

## وَتُكْرَهُ الصَّلٰوةُ عَلَيْهِ فِي مَسْجِدِ الْجَمَاعَةِ وَهُوَ فِيهِ أَوْ خَارِجَهُ

او مکروه دی لمونځ د جنازې پر مړي په مسجد جماعت کې یعنی چې مخه وخته لمونځ د جماعت پکښې کیږي. په دې کې احتراز

## وَبَعْضُ النَّاسِ فِي الْمَسْجِدِ عَلَى الْمُخْتَارِ

دی عید ګاه د مسجد څخه او که مړی په مسجد کې وي او بیا د باندې تر مسجد وي لکن بعض خلګ په مسجد کې لبی ولاړ وي، **پیوسته**: چې بعض فقهاء وائي چې دا کراهت تنزیهي دی. او دې ته ترجیح ورکړی ده. ابن الهمامؒ په فتح القدیر کې او کراهت تحریمي دی علی المشهور مصنفؒ وائي چې دا مختار روایت دی، درویش وائي چې څرنګه چې مسئله د مړي دلمانځه په مسجد کې ډیره مبتلیٰ بها مسئله ده نو باید مزید تحقیق په وکړه سي.

نو **پیوسته**: چې بعض فقهاء سبب د کراهت د مړي د لمانځه په مسجد کې دا بولي چې احتمال د تلوث د مسجد سته په نجاست د مړي. نو پر دې تقدیر کراهت به تحریمي دی، او پر دی تقدیر چې مړی خارج المسجد وي او خلګ په مسجد کې وي باید لمونځ د جنازې مکروه نه وي. او کلام د شمس الائمة السرخسي هم پر دغه دلالت کوي . . .

حیث قال. وعندنا ان کانت الجنازة خارج المسجد لم یکره ان یصلی علیها فی المسجد انما الکراهة فی ادخال الجنازة فی المسجد: انتهی، وقال صاحب المبسوط فان امن التلوث لم تکره علی سائر الوجوه» یعنی که مړی په مسجد کی وی او که نوی، وفی المحیط وعلیه العمل وهو المختار آه. او روایت دامام ابویوسف ؒ څخه نقل کړی دی. انه لا یکره صلوة الجنازة فی المسجد اذا لم یخف خروج شئ من المیت یلوث المسجد» وزاد الامام الامام الطحطاوی ؒ چی کراهت هلته دی چی تلویث د مسجد ظن غالب وي او که صرف توهم وو او یا شک وو په هغه سره کراهت نه ثابتیږی،

او بعض فقهاء په سبب کراهت دا بولي چی په دی کی شغل د مسجد دی په داسی شئ دی چی مسجد جماعت د هغه د پاره نه دی یعنی صلوٰة الجنازه. نو په ردی تقدیر صلوٰة الجنازه په ټولو تقدیرو مکروه دی لکن کراهت په تنزیهی دی، م»

**فائده**: ملاعلی قاری ؒ په شرح کی د موطا دامام محمد ؒ وائی چی مسجد حرام د دی کراهت څخه په هر تقدیر مستثنی دی، ولی چی مسجد حرام هم د جماعات خمسو ځای دی. او هم د جمعی د لمانځه او هم د اخترو د لمونځو هم د استسقاء د لمانځه او هم د کسوف او خسوف د لمانځه او هم د جنازی د لمانځه وعلیه العمل الی یومنا هذا، درویش وائی چی په دوهم سبب د کراهت که مړی په مسجد کی وي او خلک د باندی پسی ولاړ وي کراهت نشته او که مړی د باندی تر مسجد وی او خلک په مسجد کی پسی ولاړ وی بیا مکروه دی، کذا فی الجوهرة. ط. قال الامام الطحاوی ؒ ثم محل الکراهة اذا لم یکن عذر وان کان عذر فلا کراهة اتفاقاً، نو یو عذر دا دی چی مصلی د جنازی معتکف وی کما فی المبسوط، او بل عذر دا دی چی باران وی کما فی الخانیه» درویش وائی که په مقبره کی فارغ ځای د جنازی د لمانځه بالکل نه وو. او نږدی بل خالی ځګه نه وه، نو دا هم عذر کیدای سی چی لمونځ دی و مړی ته په مسجد محله کی ورکړی او بیا دی مقبری ته یوسی او دفن یې کړی» او هغه چی په حدیث شریف کی راغلی دي. من صلی علی جنازة فی المسجد فلا اجر له» دلالت پر کراهت تنزیهی کوی» ولی چی نهی د لمانځه څخه ئی نه وکړی»





قال المصنف ؒ **وَمَنْ اِسْتَهَلَّ سُمِّیَ وَغُسِلَ وَصُلِّیَ عَلَیْهِ وَاِنْ لَّمْ یَسْتَهِلَّ**
او که چیری آواز پورته کړی یعنی وژړل کشنی په وخت کی د زیږیدو نو دی نوم پر کښیږدی

**غُسِلَ فِی الْمُخْتَارِ وَاُدْرِجَ فِی خِرْقَةٍ وَدُفِنَ وَلَمْ یُصَلّٰی عَلَیْهِ**
یعنی که څه هم د ستی مړ سي، او غسل دی ورکی او لمونځ د جنازی دی ورکی. او که بغاړه نه وکړه یعنی مړ سو پیدا سو غسل خو دی ورکړی پر مذهب مختار یعنی که تام الاعضاء وی او که بعض اجزاء وي، او په یوه کپړه یعنی ټکره کی دی وه پیچی یعنی کفن شرعی نه غواړی او ښخ دی کړی او لمونځ دے نه ورکوی»

**پوښتنه**: چی د استهلال لغوی معنا پورته کول د آواز دی کما فی قولهم: اِسْتَهَلُّوا الهلال ای رفعوا صوتهم عند رؤیة الهلال» لکه پښتانه وائي هغه د میاشت» لکن مراد د استهلال څخه د لته معنای شرعی ده، یعنی چی یوه علامه د ژوند پر پیدا سی یا وژاړی او یا حرکت وکړی، وغیره لکن په دی شرط که کشنی راسته پید اسو یعنی سر یې د مخه راووتی، نو چی ترځیګر راووزي، او که چپه وو یعنی پښی ئی د مخه راووتی نو چی تر نامه پوری راووزي»

**مسئله**: مستهل کشنی هم میراث وړای سي یعنی کی پلار مثلاً د حمل په وخت کی مړوو، او دده څخه هم میراث وړه کیږی چی دی مړ سي، لکن په نیزد امام اعظم ؒ دا هلته دی چی استهلال دده په شاهدی ده دوو نرو د پاره یا د دو ښځو او یو نر ثابت وي» او یاران ؒ وائی چی په دی شاهدی یوازی قول د ښځو هم منل کیږی. ولی چی د زیږید و په وخت کی خونر موجود نه وي عادةً، او په حق د لمانځه یوازی قول د مو او یا قول د قابلی هم منل کیږی. البته قول د مورد میراث په باره کی یوازی نه دی قبول په اتفاق سره»

اَللّٰهُمَّ اغفر لِمُؤلفه ولکاتبه ولناشره ولمن طالعه ولمن نظر الیه بعین الانصاف،

بوزی اوکی خپه کوونکی هغه سړی میلمه کی مثلًا اوبخپل کور په خپه مړکړی، اویا دمو مخنوق کوړ ته وړسی اوهلته یه په خپه مړکړی، نوحاصل دمسئلی دادی چی دغه خانق که ونیول سی اومړ یه کړی دجنا زی لمونځ دی نه وړکوی، ولی چی دغه خانق ساعی فی الارض دی په فساد سره ، مړ قـال المـصنفؒ :

**وَمُكَابِرٍ لَيْلًا بِالسِّلَاحِ فِي الْمِصْرِ** هغه چا ته چی دهشت گردی کوی په بنارکی دشپی سره د سلاح، نودغه سړی چی په دغه حالت کی ووژل سی دجنازی لمونځ دی نه ورکوی اوداغه ړنگه دی لمونځ دجنازی نه ورکوی

**وَمَقْتُولِ عَصَبِيَّةٍ** اویاوژل سی یوځولت دقومی جنګ په محاذکی نود جنازی لمونځ دی نه ورکوی قال المصنف **فـائـده** لمونځ نه ورکول ودغوکسانوته دپاره د اهانت ددوی دی، اودپاره دزجردنوروخلګودی دسے ورته کارځي، قال المصنفؒ

**وَإِنْ غُسِلُوا وَقَاتِلُ نَفْسِهِ يُغَسَّلُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ** که خوهم ومقتول عصبیه اودغوټولوکسانوته غسل ورکول کیږی، اوقاتل دخپل ځان که عمدًا وی اوکه خطأ وی غسل دی ورکړه سی اولمونځ هم ورکړه سی، وهذا مذهب ابی حنیفةؒ ومحمدؒ لانه مؤمن قد اذنب، کالزانی مثلًا وقال ابویوسفؒ لایصلّی علیه زجرًا لغیره، **فـائـده** قاتل دځان اعظم دی وزرًا ترقاتل دبل چا، **فـائـده**: ملامسکین په شرح کی دکنزوائی چی مقتول ته دعصبیت دی غسل هم نه ورکوی، وهکذا فی التنویر ط، قال المصنفؒ:

**وَلَا عَلَى قَاتِلِ أَحَدِ أَبَوَيْهِ عَمَدًا** اولمونځ دجنازی دی نه ورکوی وقاتل ته دیوه دمور اوپلار په قصدسره اوکه په خطاء سره ځندی ووژل سی هغه ته دی غسل هم ورکوی اودجنازی لمونځ هم **فـائـده**: دقاتل احد الابوین مذکوړ حکم هلته دی چی زوی ظلمًا احد الابوین مړکړی، اوکی پلار حربی وو اویا باغی وو اوزوی مړکړی نو دا زوی چی مړسی غسل اودجنازی لمونځ په اتفاق د فقهاؤ ورکوی





# فَصْلٌ فِي حَمْلِهَا وَدَفْنِهَا

دافصل دی په بیان کی دمړی دجنازی دوړلو اوبیا دده دفن کولو

**فـائـده**: وړل دمړی ترهدیری پوری اودفن دده فرض کفائی دی، اووړل دمړی عبادت دی. هرمسلمان نه دانبائی چی ودغه حمل ته دی مبادرت کوی. په احادیثو مبارکه ووکی ثابته ده چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم جنازه دسعدبن معاذرض پرخپلو مبارکو اوږو اخستی ده، **شـکـایـت**: ملاصاحب چی دجنازی سره ملګری وی خصوصًا چی ځان یه یه په خیال غټ ملا وړځی داخستلو څخه دجنازی بیخی ځان ساتی اوداخپل اهانت بولی الامن وفقه الله للمبادرة الی العبادة: قـال المـصنفؒ :

**يُسَنُّ لِحَمْلِهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ** سنت دی دپاره دوړود جنازی څلورنن یعنی نه ښځی، ولی چی ښځی خویوضعیفی دی اوبل ځای دفتنی دی ودی، اوپه حمل کی دښځو احتمال دکشف عورت ددوی سته، او دڅلورو والی وجه په داده چی دمیت تکریم وسی، اوپرحاملینو بار سپک سی، نودی سبب وړل دمړی په شاه اویا پربوده مکروه دی، ولی چی په دی اهانت دمړی دی، یعنی مړی لکه نورمتاع چی خلګ یه په شاوړی یا پر دوابود اسی ګرځی،

**مـسـئـله**: کرنه نه وه بیا یه ښځی وړای سی، **مـسـئـله**: کشتی مړی دی یوځولت پرلاسواخلی اوبیا دی وبل ته ورکوی وهکذا الی المقبرة **مـسـئـله**: په اوسنی زمانه کی چی مقبری ډیری لیری دی نودمړی پرچارپائی یا تخته کښیږدی اوپه موټرکی دی مقبری ته ورسوی، در، قـال المـصنفؒ :

**وَيَنْبَغِي حَمْلُهَا أَرْبَعِينَ خُطْوَةً** اوښائی یعنی هرسړی ته قوړل دجنازی څلویښت (۴۰) ګامه بالاترهغه ثواب

په ډېرۍ لکن حق دَمړی په څلوېښت (۴۰) گامه پوره کیږي، وقَالَ المصنفؒ

## يَبْدَءُ بِمُقَدَّمِهَا الْأَيْمَنِ عَلَى يَمِينِهِ وَيَمِينُهَا مَا كَانَ

شروع دې کوي یعنی په اول لس گامه کې په مخنی حصه دجنازې چې طرف ته استدي، او حامل

## عَلَى جِهَةِ يَسَارِ الْحَامِلِ

د ایږدې پرخپله ښاسته اوږه، او راسته طرف د جنازې هغه دې چې پرجهت دچپه طرف دحامل وي ولچې مړی خودشا پرتخته پروت دی، حاصل داچې حامل خپل چپه طرف دی د باندې ترلرگو دجنازې ورگرځوي اوچارپائی دې پرخپله ښسته اوږه کښیږدي، قَالَ المصنفؒ:

## ثُمَّ مُؤَخَّرُهَا الْأَيْمَنِ عَلَيْهِ ثُمَّ مُؤَخَّرُهَا الْأَيْسَرِ عَلَى يَسَارِهِ

او بیادې یعنی په دوهم لسم گاموکې دې کښیږدي دپای پښه دجنازې هم پرښسته اوږه خپل او بیادې کښیږدي یعنی په دریم لس گامه، هغه دجنازې دپای طرف چې چپه دې پرچپه اوږه خپل یعنی ښسته اوږه دجنازې تر لرگو دباندې ورگرځوي او چپه اوږه دې دجنازې ترچپه نغل لاندې کړي، قَالَ المصنفؒ:

## ثُمَّ يَخْتِمُ الْأَيْسَرِ عَلَيْهِ

او بیادې ختم کړي چپه طرف پرجانب ایسرباندې **فائده:** په حدیث شریف کې راغلی دی، مَنْ حَمَلَ جَنَازَةً أَرْبَعِينَ خَطْوَةً كُفِّرَتْ عَنْهُ أَرْبَعِينَ كَبِيرَةً، او په حدیث کې دابوهریرهؓ راغلی دی که چا یو وړه جنازه په څلور طرفه سره دَمړی حق یې اداء کړي، قَالَ المصنفؒ

## وَيُسْتَحَبُّ الْإِسْرَاعُ بِهَا بِلَا خَبَبٍ وَهُوَ مَا يُؤَدِّي إِلَى اِضْطِرَابِ الْمَيِّتِ

اومستحب ده چابک وړل دجنازې بیله ځغاستي، او خبب هغه دی چې مړی سره بښوروي، په حدیث شریف کې راغلی دے په روایت دابن مسعودؓ: اِسْرَعُوا بِالْجَنَازَةِ فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُونَهَا إِلَيْهِ





وان غیرذلک فشرٌ تضعونها عن رقابکم، **فائده:** په تجهیز او تکفین کې دې هم اسراع (چابکي) کوي، قَالَ المصنفؒ:

## وَالْمَشْيُ خَلْفَهَا أَفْضَلُ مِنَ الْمَشْيِ أَمَامَهَا كَفَضْلِ صَلٰوةِ الْفَرْضِ عَلَى النَّفْلِ

او تګ د خلګو تر جنازې وروسته، افضل دی تر تګ تر جنازې د مخه، د حضرت علیؓ مخه روایت دی، چې نرما قسم په هغه خدای دی چې علیه الصلوٰة والسلام په حقه سره نبي راستولی دی، چې فضیلت د تلونکي وروسته ترجنازې برهغه چا چې د مخه ترجنازې ځي، لکه فضیلت د فرضي لمانځه پر نفلي لمانځه، ابوسعید الخدريؓ ورته وویل چې ته پخپله رایه داخبره کوي اوکه شی دې چې تا د علیه الصلوٰة والسلام نه اوریدلی دی، حضرت علیؓ پر غضب سو، چې یاره پخپله رایه داخبره نه کوم بلکې ما اوریدلی د غه خبره ده علیه الصلوٰة والسلام نه یو وار، اونه دوه واره اونه دری (۳) واره حتی تر اووه (۷) حضرت علیؓ حساب کړه یعنی تر اووه، واره می بالاځندی اوریدلی ده. دولتې وائي چې سبب د غضب دعلیؓ دا وو چې د اخوامورد بینه دی په هغوکې راځي لره څه دخل سته چې نه ئي پوښتنه کوي، قَالَ المصنفؒ:

## وَيُكْرَهُ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالذِّكْرِ

او مکروه دی پورته کول د اواز په ذکر سره، او قرآن شریف دی هم په زوره نه وائي یعنی په وخت کې دوړلو د جنازې. **فائده:** مستحب ده هغه چا لره چې جنازه پر ده تیریږي او یا پر وویني چې داسي دې ووائي: سُبْحَانَ الَّذِي لَا يَمُوتُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوم، او مړي ته دې د خیر دعاء وکړي، او یا دې داسي ووائي: هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ، اَللّٰهُمَّ زِدْنَا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا، او ترجنازې وروسته کراركراره سُبْحَانَ اللّٰهِ، لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ دې ووائي:

**فائده:** د دنیا خبرې دجنازې دوړلو پر مخه بیا تروخته پورې د دفن مکروه دي.
او مکروه تحریمي دی تګ د مخکو دجنازې سره. او مکروه دی چې څوک په دجنازې تر لمانځه

دعخه د هدیری تخته راځی، بحر» قــالَ المصنفُ:

**وَالْجُلُوسُ قَبْلَ وَضْعِهَا وَيُحْفَرُ الْقَبْرُ نِصْفَ قَامَةٍ أَوْ اِلَى الصَّدْرِ**

او د غاړه نه مکروه ده نا ستــه د خلګو د مخه تر ایښو وَلو د جنازی یعنی د اوږو څخه د خلګو ولی چی شاید

**وَاِنْ يَزِدْ كَانَ حَسَنًا** په ایښود لو د جنازی به د خلګو کمک ته ضرورت پیدا سی او که تبل کیږی دی قبر ترنیمی د قامت د سړی او یا تر ځیګر پوری

او که تر دی زیات وکنی ښه کار دَی چی میت به ښه محفوظ سی» او بد بوئی به ئی د باندی نه راوځی»

**فائدہ:** په کور کی د مړی ژړا په تویَولو د اوښکو پروانه لری. ولی چی په حدیث شریف کی راغلی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وَسَلم په وخت کی د مرګ دخپل زوی ابراهیمؓ په تویَولو د اوښکو ژړَلی دی. او عبد الرحمٰن بن عوفؓ چی وَرته وَوَیل.. وَاَنْتَ یارسول الله یعنی ته هم ژاړی یا رسول الله علیه الصلوٰة وَالسلام په جواب کی ورته وویل.. هَذِهٖ رَحمة یعنی دا ژړا منلی عنه نه ده بلکه وسیــله او رقت د زړه دی. البته نوح او چغی وهل یا کالی خیرل یا تندی ټکول مکروه دَی» **مســئله:** که چا په جنازه کی د تګ اراده نه درلوده نه دی ورته ولاړیږی او په لعض حدیثو کی چی امر په ولاړ یدو راغلی دی هغه منسوخ دَی» مَراقی» قــال المصنفؒ:

**وَيُلْحَدُ وَلَا يَشَقُّ اِلَّا فِي اَرْضٍ رِخْوَةٍ** او قبر ته دی لحد ورکړل سی او شق دی نه ورکړو کیږی مګر په داسی ځګه کی چی سسته وی یعنی لحد نه قبلوی نرمیږی **پوه سه:** چی لحد دا بولی چی د قبر د قبلی په خوا کی یوه غاره جوړه کړی. چی مړی په کښی ځائیږی، او مړی ته په هغه لحد کی کښیږدی او خښتی که موجودی وی او یا لرګی که خښتی نه وی ور ته کښیږدی او غاړونه د خښتو او یا د لرګو په ختوو تړی او بیا خاوری پر واچوي، او شق و دې ته وائی چی اول فراخه قبر جوړ کی او بیا په مابین کی د قبر په قدر د مړی یوه چُرګه وکینی او مړی په هغه چرګه کی کښیږدی، او بیا خښتی یا لرګی د چُرګی پر خوله کښیږدی، نو وروسته خاوری





پر واچوی نو مسئله داده که ځګه کلکه وَه خو سنت لحد دَی، او که ځګه خوړه او سسته وَه یا سَره وه چی د لحد قابله نه وه بیا دی نو شق په کښی وکاږی. قال علیه الصلوٰة وَالسلام اللحدُ لَنَا وَالشق لغیرنا **مسئله** که مړی په تابوت کی وی او ښخ یه کړی پروانه لری» م قــالَ المصنفُ:

**وَيُدْخَلُ الْمَيِّتُ مِنْ جِهَةِ الْقِبْلَةِ** لو داخل کړه کیږی دی مړی د جهت څخه د قبلی یعنی مړی دی د قبلی و خوا ته کښیږدی او خلګ دی تر مړی لاسونه لاندی کړی او سم دی راواخلی او په قبر کی دی کښیږدی که لحد وی او که شق وی، او خلاف السنت ده چی مړی پر تخته پروت وی او سَر یه اول قبر ته واچوی او وروسته یه نور بدن، لکه په عربستان کی چی رواج دَی، ولی په ورته کارکی شاید د مړی بعض رطوبات حولی او پری ته ور سیږې، او بل د بی ادبی د مړی دَه او بد فالی ده چی اول مړی ته د اخرت تا سرچپه ور واچاوه، کذا فی المدخل ط » در،

لکن امام طحطاویؒ وائی چی د تابوت سره د مړی ښخول مکروه نه دی چی ځګه یا خوړه وی او یا نما که وی او که داسی نه وه نو د تابوت سره ښخول مکروه دی په اجماع د علماوو، درویش وائی که مړی سره ټوټه ټوټه وَوا او په تابوت کی سره جمع کړی وو بیا د تابوت سره ښخول یه جائز بلاکراهت دَی، لکه په موجوده زمانه کی چی مسلمانان د امریکایانو او روسانو په بمباری سره ټوټه ټوټه شهیدان کیږی، او اندامونه ئی په تابوت کی سره ټولیږی» اللهم ارحم علی ملة افغانستان وخلصهم من هذا البلاء النازل علیهم من جانب الامریکیین وَ الروسیین والملحدین» اللهم انصرهم نصرًا عزیزًا وخذ اعدائهم اخذ عزیز مقتدر» دی ځای ته زه عاصی په داسی وخت کی راورسیدم چی د شعبان د میاشتی ۱۴ نیټه وه او د ظلم و هفتو څخه پر لیپی د شپی او د ورځی پر تولو ښا رود افغانستا ن او پر قریو او پر مسجدو او شفا خانو د امریکایانو د خوا څخه او ر تویوونکی بمباری روانه دَه» او په زرو ښځی او کوچنیان په دی اور کی کبابیږی. یا الله جَلَّ شانك د ا اور د افغانستا ن د مسلمانانو د سرو څخه په خپل قدرت مړ کړی، او تر دی سخت اور د امریکایانو، انګریزانو او روسانو،

**پوښتنه**: چې مقدار د پورته والي د قبر په ظاهر روایت کې په قدر د یوې لوېشتې وي، او بعض علماء وائي چې په قدر د څلورو ګوتو دې وي، لکن قدر د یوې لوېشتې هلته کېدای شي چې قبر ته لږ طولاً او عرضاً ورکړي او ورو سته یې مسنم کړي، ولې کې دلته بنا شي نو په دې صورت کې ... دتسنیم پر شکل پورته کړي. لکه زمونږ د پښتنو قبرونه نو تر سره چې سېږی تخمیناً یو ګز لوړېږي. او دا ظاهر روایت څخه دې خلاف، بلکه د ظاهر څخه داحادیث مبارکه ووهم خلاف دی، لکن قهستاني وائي چې په یو روایت کې. چې بالا والي تر یوې لوېشتې روا دی، د روایت وائي چې بیا هم اوله طریقه ډېره ښه ده او د اختلاف څخه وتلې ده. او بې له شک نه چې یک لخته تربیع مکروه دی. او د غر تنګه د قبر په ګچو او یا په سمنټو کې نیول اشد کراهة دی. لنهی النبی علیه الصلوٰة والسلام عن تجصیص القبور وتربیعها،

**مسئله**: دا پروا نه لري چې پر قبر او به وپاشي د پاره د ټینګ والي د خاورو، او بل دا چې علیه الصلوٰة والسلام پر قبر د سعد رض او پر قبر د خپل زوی ابراهیم او به پاشلې وې، او پر قبر د عثمان بن مظعون رض یې خلګو ته وویل چې او به پرو پاشئ **پوښتنه**: چې تسنیم د قبر مذهب دی د امام اعظم او د امام ثوري او د امام لیث او د امام احمد او د مالک او امام شافعي وائي چې تربیع د قبر افضله ده **فائده**: چا چې قبر د نبي علیه الصلوٰة والسلام لیدلی دی هغه مسنم وو، قال المصنف:

## وَيَحْرُمُ الْبِنَاءُ عَلَيْهِ لِلزِّينَةِ وَيُكْرَهُ لِلْإِحْكَامِ بَعْدَ الدَّفْنِ

او حرام ده بناء یعنې ګنبده جوړول پر قبر د پاره د زینت، او مکروه ده د پاره د محکم والي پس له دفن د میت، لنهی النبی علیه الصلوٰة والسلام عن ذالک، امام طحطاوي وائي چې کراهت یې تحریمي دی **فائده**: مصنف بعد الدفن وویله د دې معنا داده چې که بناء او قبه د مخه جوړه وه نو د مړي ښخول په هغه کښې کراهت نه لري، کذا فی البرهان۔





**مسئله**: پر قبر ډېرې اچول د پاره د حفاظت د قبر د زړه والي او د نبش څخه، او د پښتو لاندې کېدو د پاره پروا نه لري، وفی الدرر، وقیل لا بأس بالبناء علی القبر وهو المختار، وائي چې دا قول د ظاهر المذهب او لا دشو څخه خلاف دی، وفی التجنیس والمزید، لا بأس بتطیین القبور یعنې په خټو ګلول د قبرو پروا نه لري وعلیه الفتوی، قال المصنف

## وَلَا بَأْسَ بِالْكِتَابَةِ عَلَيْهِ لِئَلَّا يَذْهَبَ الْأَثَرُ وَلَا يُمْتَهَنُ

او پروا نشته په کتابت سره پر قبر، د دې لپاره چې د امړي د اقربا وو څخه ورک نه شي یعنې او اثر پروانه شي او خلک بې ادبي ورسره و نه کړي،

**فائدة سنية** کتابت پر قبرو دومره قدر روا دی چې پر یوه ډبره او یا د ګچو څخه جوړې سوې تختې باندې د مړي نوم او پېژند نه نوشته کړي او یا یو بیت فارسي یا عربي یا پښتو هم ورسره نوشته کړي، او هغه چې په بعض بلادو کې رواج دی چې د مړي وسرته د ډېرې ښنخته ودره وي او پر هغه باندې، الحمد لله تر ... یا ایت کرسي، یا سورة اخلاص نوشته کړي هغه مکروه تحریمي دی، ولې چې سپي بعض وختونه هدیري ته ورځي او پر دغه ښنخته بولي کوي، قال المصنف

## وَيُكْرَهُ الدَّفْنُ فِي الْبُيُوتِ لِاخْتِصَاصِهِ بِالْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ

او مکروه دی دفن کول د مړي یعنې که کشنی او که لوی، په کور کې خوله په خونه د استوګې کې دده یې دفن کوي، او یا یې په غولي کې د سراي دفن کوي، ولې دا د دفن خاصه د انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام ده، او د نورو مسلمانانو د پاره مقبره ځای د دفن دی، قال المصنف:

## وَيُكْرَهُ الدَّفْنُ فِي الْفَسَاقِي

او مکروه دی دفن کول د مړي په فساقي وو کې" په فتح القدیر او مراقي کې وائي پوښتنه چې فساقي یو فراخه ځای نه وائي چې په محکله کې جوړ کې لکه" زیرخانه" چې ډېر مړي ځای یوي او هلته مړي

ودوړي او په کښې اېږدي په سربېره په بناء پرجوړه کړي وي، چې سرې په ولاړې
په کښې دړ يدلاى شي، وجه دکراهت په داده چې دا خلاف السنة ده، او بل دا چې
لحد دمړي دپاره په کښې شسته، او بل دا چې بېله ضرورت نه دېرمړي په يوځاى کې
اېښول دي، او بل دا چې مړي نرو ښځې په يوه خونه کې اېښول دي، قال المصنف

# وَلَا بَأْسَ بِدَفْنِ اَكْثَرَ مِنْ وَاحِدٍ فِيْ قَبْرٍ لِلضَّرُوْرَةِ وَيُحْجَزُ

او پروا نشته په ښخولو کې د يو نه زيات مړي په يوه قبر کې، چې ضرورت وي مثلاً مړي

# بَيْنَ كُلِّ اِثْنَيْنِ بِالتُّرَابِ

دېر وي او يا قبر کن ضعيفه وي الى غير ذالک من الضرورات، او په مابين کې د دوو
مړودي خاوري حائل گرځوي، ولې چې عليه الصلوٰة والسلام د احد په غزا کې شهداء د احد
دغسې دفن کړه،

**پوښتنه**: که ضرورت وو دريو څلورو يا بالا دي هم په يوه قبر کې دفن کړي، نو که
مړي يو جنس وه يعني نران وه مثلاً نو افضل فالافضل دي د قبلې وخواته اېږدي، او که مختلف
وه نو اول دي لوى خلک د قبلې وخواته کښېږدي، بيا دي کشنيان، او بيا دي نر ښځيان
او بيا دي ښځې، لکن لږ حائل دي په مابين د مړو په خاورو سره وي، دروېش والي چې
علامه امام طحطاوي په مابين کې د دفن په فساقي کې او د دفن د ډېرو مړو په يوه قبر
کې په فرق په نه دي پوه شوى نو ځکه په پر مصنف اعتراض کړى دى كما يظهر بالرجوع
الى ص۵۰۵ من تلک الحاشية ولا يخفى الفرق على ما ذكرناه، قال المصنف

# وَمَنْ مَاتَ فِيْ سَفِيْنَةٍ وَكَانَ الْبَرُّ بَعِيْدًا اَوْخَافَ الضَّرَرَ

او که څوک مړ شو په کښتۍ کې او وچه لېرې وه، او يا ويره د ضرر د مړي وه مثلاً چې تغير

# غُسِّلَ وَكُفِّنَ وَصُلِّيَ عَلَيْهِ وَ اُلْقِيَ فِي الْبَحْرِ

يا بد بوئي به وکړي نو غسل دي ورکې او کفن





دي هم ورکې اولمونځ دجنازې په هغه کښتۍ کې ورکې او بيا دي درياب ته سپار کې،

**مسئله**: که دمړي اجزاء خاورې شوه نور وادي چې بل مړي د اول مړي په قبر کې ښخ
کړي **مسئله**: دمړي اړ کوماتول او يا بل ځاى ته نقل کول نه دي روا که څه
هم اهل ذمه وي. او د قبرو سره غور ځول چې نبش په بولي هم نه دي روا که څه د ډېرې زمانې
قبروي، او د اهل حرب دمړو نبش روا دى کما فعل بهم فى وقت بناء المسجد النبوىؐ فى المدينة

قال المصنف

# وَيُسْتَحَبُّ الدَّفْنُ فِيْ مَحَلٍّ مَاتَ بِهٖ اَوْقُتِلَ فَاِنْ نُقِلَ

او مستحب دى دفن دمړي په هغه محل کې يعنى په هديره کې د هغه محل چې مړي هلته مړوى يا قتل شوى

# قَبْلَ الدَّفْنِ قَدْرَ مِيْلٍ اَوْمِيْلَيْنِ لَا بَأْسَ بِهٖ وَكُرِهَ نَقْلُهٗ اَكْثَرَ

# مِنْهُ

وي او که نقل کړي په قدر د يوه ميل يا دوه ميله پروا نشته، او مکروه دي نقل دمړي
بالا تر دوه ميله، **مسئله**: که دمړي وځاى ته يوه نږدي هديره وه او بله هديره يو څه
گوښه وه لکن په لرې هديره کې ډېر صالح کسان مدفون وه نو په نږدي هديره کې دفن کول
اولى دى، او که په جوار د صالحانو په دفن کول اولى دى، بحر انق که څه هم حکم جزمي په
يوه خوا نه دى کړي. لکن ددروېش په عقيده جوار الصالحين هديره اولى ده لانه انفع للميت

**پوښتنه**: چې استحباب د دفن په محل کې دموت، بود ليل په دا دى چې محله ته وله
ځاى دمړوده نو نقل دمړي تکليف بلافائده دى، او تاخير د دفن هم په نقل کې راځي او دا تاخير
مکروه دى،

او بل دليل په هغه دعائشې رضى الله تعالى عنها حديث دى، چې دده ورور عبد الرحمن
په شام کې مړوو او مړي د هغه په مکې شريفې ته نقل کړى وو، او دا رض زيارت ته ورغله
نو دي رض داسې وويل که ستا د دفن کار زما په لاس کې واى ما به دشام څخه نه نقل کولى
بلکه هلته مې دفن کولى. **دروېش والي**: چې مسئله د نقل دمړو د يوه هيواده څخه بل
هيواد ته سره د بعد مسافت په اوسني زمانه کې چې د افغانستان مسلمانان په پردو هيوادو

کی نګه پاکستان او ایران او هلته شپې اوورځې د هجرت تیروي، او دوی یو قریب ځه پرسې نو قدرت مند خلګ یه افغانستان ته وړي د دی سببه چې دوی اکثرًا په کیمپو کې وسې بې. نو که دا کیمپ بووخت مهاجرینې ځندی ولاړې سی خلګ د پاکستان یا ایران د غه هدیرې سره اواره وی. او د کیښت کار ځندی اخلې یا کورونه پرجوړوی، که څه هم قبرونه معلوم وی او هدیره برحاله وي، نو ددی کبله دوی خپل مړي داخل ته د افغانستان وړي چې هلته چې د دوی د هجرت موضوع پای ته ورسیږي او افغانستان ځای د من او امان وګرځي، نو د مصنف دقوله سره سم چې تردوه میله بالا نقل یه مکروه دی، باید د انقل مکروه سې، منګرکه نوی اجتهاد رواوای اودغه فوق الذکر عذرونه په نظر کې ونیول سوی وای نودغه نقل بې مکروه نه بللای، ای لانها اعذار واضحة، بلکه وروسته به راسې چې بعد الدفن یه هم په عذر نقل د مړي وبل مکان ته روادی، لکن داحکم هلته دی چې مړي ته به یعنی په اول مسئله کې تغیر سد بوئ وغیره نه پیښیږي ورنه بیا مکروه دی»

قال المصنف:

## وَلَا يَجُوزُ نَقْلُهُ بَعْدَ دَفْنِهِ بِالْإِجْمَاعِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ

او نه دی روا نقل د مړي بل ځای ته پسله دفنه په اجماع سره مګر هغه وخت روادی که د قبر

## الْأَرْضُ مَغْصُوبَةً أَوْ أُخِذَتْ بِالشُّفْعَةِ

محکه یا تول هدیره مغصوبه وي

یعنی په زوره خلګو مړي په محکه کې د یوچا بیله اجازې دفن کوله، نو بیا روا ده چې مړي د قبر څخه راوباسي بل ځای ته دي یوسي یعنی د سړي خپلې مملوکې محکې ته یا وقفي هدیرې ته، او یا دغه محکه چې قبر یه په کښې دی چا په شفعه وګرځول د مشتري څخه یعنی یوچا د بل چا څخه محکه په بیعه اخستې وه او مړي یه په کښې بنخ کی د د نیم سړي د شفعې دعوه پرې وکړه او هغه محکه یه وګټله نو مشتری دی خپل مړي وروسته تر دفن بل ځای ته نقل کړي، در» او که پرقبرو باندې دیوسړک، روډ، یا د ولی نقشه راغله نو خلګو ته روا ده چې د مړو هډوکي وغیره بل ځای ته نقل کړي» در» ولندرة وقوعه لم يذكره المص





فی منورة نقل المیت بعد الدفن» قال المصنف:

## وَلَوْ دُفِنَ فِي قَبْرٍ حُفِرَ لِغَيْرِهِ ضَمِنَ قِيمَةَ الْحَفْرِ وَلَا يُخْرَجُ مِنْهُ

او که قبر جوړ سوی وو د بل ژوندی د پاره او بل چا خپل مړي په کښې دفن نو ضامن کېږلو د قبر دی ورکړي یعنی یا د ترکې څخه د میت او یا د بیت المال څخه لکن مړي دی نه کاږي، نو که محکه فراخه وه نو د بل چا په قبر کې مړي ایښوول مکروه دی، او که محکه د متبرې تنګه وه بیا کراهت نسته لکن قیمت د حفر به ورکوي»

**فَائِدَه:** په ژوندکی د ځان د پاره قبر جوړول روا دی چې عمر بن عبد العزیز او ربیع بن خثیم او نورو علما وو د ځان د پاره په ژوند قبرونه جوړ کړي وه، قالوا ویوجر فیه» قال المصنف:

## وَيُنْبَشُ لِمَتَاعٍ سَقَطَ فِيهِ وَلِكَفَنٍ مَغْصُوبٍ وَمَالٍ مَعَ الْمَيِّتِ

او د مړي قبر دی سره وشني په سبب د مال چې په قبر کې لوېد لی وی که نقد وی که واج، او دغه

## وَلَا يُنْبَشُ بِوَضْعِهِ لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ أَوْ عَلَى يَسَارِهِ وَاللهُ أَعْلَمُ

رنګه قبر دی د مړي شني په سبب د کفن مغصوب یعنی که چیرې مالک د کفن بیله اخستلو د کفن نه راضي کیږي، او د دی د پاره دی د مړي قبر نه شني چې مخ پرقبله یه نه وی ایښوول سوی او یا پر چپه بغل ایښوول سوی وي،

**فَوَائِدُ شَتَّى** **فَائِدَه:** چې خلګ د مړي د دفن څخه فارغه سي مستحب دا ده چې نیږدې د قبر د دې د کښیني دومره اندازه چې او بن حلالیږي او غوښې یه وېشل کیږي، او په هم دغه وخت کې مړي دعا کوي او تلاوت د قرآن کریم دی کوي، په حدیث شریف کې راغلي دی چې مړي په دوی سره الفت طلبوي او په دعاء یا قرائت سره یه نفع اخلي، وهابیان او نور دوی ته ورته کسان دا کار مکروه بلکه بدعت سیئه یه بولي»

**فـائـده:** ډېرو متاخرينو څخه دمذهب وائي چې څرنګه چې خلګ د دفن څخه د ميت فارغ سي هر سړی د خپل په کار پسې ځي، او د مړي قريب د خپل کار ته پرېږدي او د امکېږده چې د مړي پر کور سره عونډ سي **فـائـده:** په حديث شريف کې راغلي دي چې آنحضرت صلی الله عليه وسلم چې به د دفن څخه د مړي فارغ سو، نو به وقبر ته ودرېدی او خلګو ته به يې داسې وويل « استغفروا الله لاخيكم وسلوا له التثبت فانه الآن يُسئل » يعني تاسي طلب د بخښنې وکړی د خپل ورور د پاره، او سوال وکړی د خدای جل جلاله څخه ده د پاره د تثبت دعا وکړی يعني پر قول ثابت چې کلمه مباركه ده د ثابت والي په جواب کې د ملكو ولې چې دده څخه اوس سوال کول کيږي يعني چې موږ ځندی ولاړ سو. **فـائـده:** په مضمرات کې وائي چې نقل د مړي پس له دفنه درې (۳) قسمه دي يو وجه يې جائز بالاتفاق ده، او بله وجه يې حرام بالاتفاق ده، او په بله وجه کې اختلاف، اما الاول، چې مړي په محکله مغصوبه کې دفن سوی وي، او يا كفن مغصوب وي، او مالك د محكې نه راضي كيږي مگر په نقل د مړي دده د محکې څخه او يا مالك د كفن نه راضي كيږي مگر په كښلو د كفن دده څخه نو روا ده چې مړی راوکاږی، كه محكه مغصوبه وه نو بل ځای ته دې نقل كړي او كه كفن مغصوب وو هغه سړي ته دی كفن وركړی او مړی دی په بل كفن كې هلته دفن كړي، واما الثاني لكه مور يا پلار يې وو وائي چې زموږ زوی د قبره راوكاږی چې موږ يه مخ ووينو، يعني چې دی ئې دفن كوه دوی نه وه حاضر، او يا مور پلار وغيره ووائي چې موږ خپل مړی خپلې هديرې ته وړو. نو دا نا روا ده بالاتفاق، واما الثالث، چې قبر ته ديوی خوا اوبه ور ننوتلې وي نو بعض فقهاء وائي چې روا دي چې مړي د دغه ځای څخه بل ځای ته نقل كړی، ولې چې داسې روايت راغلی دی چې صالح بن عبيد الله چا د قريبانو څخه په خوب وليدئ، او صالح په خوب كې هغه ته وويل چې ما د دغه قبر څخه بل ځای ته نقل كړي، ولې چې زه اوبه او بو په عذاب كړم، نو قريبانو چې قبر وسپړی نو هغه نقل دده چې محكې ته څرمه وو په اوبو کې وو نو عبد الله بن عباس فتوی ورکړه چې نقل يې کړي، او فقيه ابو جعفر الطحاوي چې سنه دی نقل کوي،





**فـائـده:** بعض فقهاء وائي چې دفن د مړي د شپې مکروه دی که بيله عذره وي، لكن صحيح دا ده چې كراهت نشته كه څه هم دفن كول د ورځې اولى دي، ولې چې عليه الصلوة والسلام د چارشنبې په شپه دفن سوی دی، او عثمان رض او فاطمه رض او عائشه رض هم د شپې دفن سوي دي، **فـائـده:** تلقين د مړي ورسته تر دفن شافعيه مستحسن بولي، او بعض فقهاء د حنفيانو يې حسن بولي، هغه داسې چې مړي ته دی ووائي: چې ای فلانی د فلانی زويه ته در ياد كه چې ته خو د دنيا څخه پر كلمه د « لا اله الا الله محمد رسول الله » وتلی يې، او ته په دنيا كې راضي وي « په الله ربا، او په اسلام راضي وي دينا، او په محمد راضي وي نبيا، او په قرآن راضي وي اماما، او كه د مور نوم يې نه وو ور معلوم منسوب دی كې وحواء ام البشر ته دی تلقين په باره كې طبراني او ر د حديث راوړی دی، لكن هغه حافظ سيوطي ضعيف بللی دی مګر ابن الصلاح وائي چې د دی حديث تائيد په عمل د اهل شام سوی دی، لكن د پښتنو په وطنو كې دا تلقين نه دی رواج ولې چې ډېرو فقهاوو د حنفيانو په دی تلقين سره نه دی قائل، والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب »

**فـائـده:** د جنازی سره د قريب او يا يو همسايه چې صالح وي تلل افضل دی تر نفلي لمونځو او كه نه قريب وي او نه صالح سړی وو بيا نفل افضل دی **فـائـدة سنية** په مراقی كی وائي چې مكروه ده ناسته د قريبانو د مړي په دروازه كې د سرای يا په يوه كوټه كې چې خلګ د تعزيت او فاتحې د پاره ورته راځي، ولې چې دا د اعمالو څخه د جاهليت دی او عليه الصلوة والسلام هم منع ځندی كړيده، او وها بيان هم ورته خبره كوی، لكن امام طحطاوي وائي چې د اهلته مكروه دی چې د اقرباء د ميت غالی او كمبلې هواری كړي، او د دوی د كوره څخه چای راوزی او د غمی د خوارو د پاره تياری وغيره، نو دی ته اشاره كړيده سيد په شرح كې چې وائي: وَلَا بَأْسَ بِالْجُلُوسِ لَهَا « اى للتعزية الى ثلاثة ايام من غير ارتكاب محظور » او نهر فائق والا د تجنيس څخه نقل كړی دی او وائي: وَلَا بَأْسَ بالجلوس لها ثلثة ايام او مراقی وائي چې مكروه ده ناسته د فاتحې د پاره په مسجد كې لكه د پښتنو چې عادت دی »

درویش وائی: ملایا نوهم خولہ پټه نیولی ده، ځکه چې په مسجد کې د فاتحې په وخت کې سر پرسرچاپانی ناځي اوکور ته چې اواری وی او بیا لښتان پراته او د نسوارو توکړ داوم پرتې وي۔

درویش وائی: د اقرباء د مړي په کور کې ځای نه لري او فاتحه خوانان او قریبان او خر خلک چې راځي خوځنافاتحې ته راځي، نو که اقرباء د مړي په مسجد کې بیله ذکرسوی کار و کښینې او تلاوت د قرآن کیږي او مړي ته دعا کوله کیږي او دنیا ئې خبرې اونو مجلس نه وي نو امکان لري چې د اغنیې فاتحه خوانی به په مسجد کې رواوی بسبب العذر المذکور

فـائـده: په مراقی کې وائي چې مکروه د میلمستیا د کورنه د مړي، للسرور لا للشرور وهي بدعة مستقبحة» او په بزازیه کې وائي چې مکروه دی میلمستیا د کورنه د مړي په اوله ورځ او په دوهمه ورځ او په دریمه ورځ» درویش وائي چې په اوله ورځ کې دی همسایګان د مړي کورته ډوډۍ وغیره ورلیږي کما یدل علیه الحدیث الشریف» او برهان حلبیؒ وائي چې په دی باره کې یو حدیث سته چې روایت یې امام احمد او ابن ماجه کړی دی په سند صحیح سره د جریر بن عبد الله رضی الله عنه نه چې هغه وائي: کنا نعد الاجتماع الی اهل المیت وضعهم الطعام من النیاحة، یعنی من فعل الجاهلیة» برهان حلبیؒ وائي چې دا حدیث خو صرف د اولی ورځې پر کراهت الضیافت دلالت کوي، ولی چې جاهلیت والا هم دغسی کوله بلکه په بزازیه کې په کتاب الاستحسان کې وائي: وان اتخذ طعامًا للفقراء کان حسنًا» او په الاستحسان کې د فتاوی خانیه کې وائي: وان اتخذ ولی المیت طعامًا للفقراء حسنًا الا ان یکون فی الترکة صغیرًا فلا یتخذ ذالک من الترکة»

درویش وائي چې حاصل د کلام دادی او **اختلاف** دادی چې د ضیافت او خیرات فرق سته، ضیافت هغه میلمستیا ده چې ورته غوښې او تکلفی خوراک برابر کړي او اغنیاء د کلی او کوڅې او غنیان قریبان راوغواړي، او د فقیرانو دعوت په کښې نه وي، داسې ضیافت د مړي په کور کې مکروه دی. پر او لوشپو کې ولې داسې ضیافت خود خوشحالۍ وي لکه واده وغیره په وخت کې کیږي د غم په وخت کې نه کیږي» او خیرات دا بولي چې یوه اندازه غوښې مثلًا





پاندې کړي او ډوډۍ پخه کړي او د کلی کوڅې یا نورو مسکینانو ته خبر ورکړی او هغه خیرات په وخوری د اکراهت نه لري که څه په اوله ورځ وی: وبهذا یحصل التطبیق بین الاحادیث واقوال الفقهاء» وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ»

**فـائـده** تعزیت یعنی دل اسائی ورکول: چې په اصطلاح یې مونږ فاتحه بولو مستحب ده نرو او ښځو لره: قال علیه الصلوٰة والسلام من عزی اخاه بمعصیبة کساه الله من حلل الکرامة یوم القیامة: وقال علیه الصلوٰة والسلام من عزی مصابًا فله مثل اجره

**فـائـده**: یو وار چې فاتحې ته سړی ورسی نو نه سباڼی ده لره چې بله پلا ورځي: کذا فی المراقی: وَالصَّبْرُ بِالصَّدْمَةِ الْاُوْلیٰ

**فـائـده** سړی ته چې مصیبت ورسیږي بالفوره دی اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ ووائي. ولی چې په حدیث شریف کې چې روایت یې بخاري کړی دی علیه الصلوٰة والسلام وائي: اِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْاُوْلیٰ. یعنی کامل صبر په شیځ اول تکلیف دی چې سړي ته ورسیږي، او په بل خبر کې راغلی دي. که د چا هغه مصیبت چې ده ته رسیدلی وو، په له ځلو ښتو په کلو ورپیاد سو او هغه ځنی کلمه تکرار کړي دوهره ثواب لري لکه چې په ورځ کې د وقوع د مصیبت.

**فـائـده**: طبرانیؒ او نورو ډیرو محدثینو روایت کړی دی چې علیه الصلوٰة والسلام فرمائی که یو مسلمان ته د قریب د مرګ مصیبت ورورسیدی نو دی په یاد هغه مصیبت چې زما د رحلت په سبب ده ته رسیدلی دی، فَاِنَّهَا مِنْ اَعْظَمِ الْمَصَائِبِ» چې زما د وفات مصیبت تر ټولو لوی مصیبت دی» و لله در القائل.

اُصْبُرْ لِکُلِّ مُصِیْبَةٍ وَتَجَلَّدْ ؛ وَاعْلَمْ اَنَّ الْمَرْءَ غَیْرُ مُخَلَّدٍ، یعنی صبر کوه ای مسلمانه د هر مصیبت په وخت کې او ځان قوی کړه یعنی زړه قوی لره، او په دې پوه سه چې هیڅ سړی په دنیا کې د همیشه تو بحق نشته، وَاِذَا ذَکَرْتَ مُصِیْبَةً تَسْلُوْبِهَا ؛ فَاذْکُرْ مُصَابَکَ بِالنَّبِیِّ مُحَمَّدٍ ؛ او که ستا په یاد وو مصیبت چې سته زړه د لاسا ئې ورکوی. نو ته بیا د که د زړه د دلاسائی د پاره هغه مصیبت چې تا ته په وفات کې د علیه الصلوٰة والسلام در رسید

رسیدلی وو» وقالت فاطمة الزهراء رضی الله تعالیٰ عنها بعدموت ابیها صلی الله علیه وسلم: ؎ مَاذَا عَلٰی مَنْ شَمَّ تُرْبَةَ اَحْمَدٍ

اَنْ لَّا یَشُمَّ مَدَی الزَّمَانِ غَوَالِیَا

ترجمه: یعنی هیڅ حرج نسته پرهغه چاچې بوی کړی خاوری دقبرانور د علیه الصلوٰة والسلام پر دی کی چې بوی نه کړی د زمانی په تیریدو کی» غوالی «خوشبوئی چې یو بهترینه مرکبه خوشبوئی ده، ولې چې د علیه الصلوٰة والسلام دقبرد خاورو خوشبوئی تر ټولو خوشبوی گانو د دنیا بالاده» ؎

صُبَّتْ عَلَیَّ مَصَائِبُ لَوْ اَنَّهَا

صُبَّتْ عَلَی الْاَیَّامِ صِرْنَ لَیَالِیَا

او توی کړه سوه پرما ډیر مصیبتونه یعنی په سبب د مرگ د علیه الصلوٰة والسلام که چیری توی سوی (وای مصائب) د غه پر ورځو هغه به شپی گرځید لای» صدقت رضی الله تعالیٰ عنها وصلی الله تعالیٰ علیٰ ابیها وسلم ؎ قَالَ الشَّاعِرُ: په مدح کی د علیه الصلوٰة والسلام:

آفاقها گردیده ام مهر بتان ورزیده ام ؛
بسیار خوبان دیده ام اما تو چیزی دیگری ؛ عاشق ذات انور نبوی. حسن تلوکانی چه خوش گفته است:
تعالی الله زهی شاه یگانه ؛ زهی بخت وکمال جاودانه ؛ چه گویم وصف آن ذات کریمش ؛ که پیدا نیست مثلش در زمانه ؛
طفیلش گشته موجودات عالم ؛ غرض ذاتش دگر باقی بهانه ؛ بنور اوست روشن جسم آدم ؛ نه دریای کمالش را کرانه ؛
زمن یا رب بروح پر فتوحش ؛ رسان هردم درود جاودانه ؛ رسول حق تعالیٰ اوست بیشک ؛ حسن آورده ایمان غائبانه ؛

درویش وائی: چې ډیری مسئلی په دی باب کی چې ډیر تفصیل یې غوښتی ما په دې مختصر شرح کی صرف نظر کړی، تا چې طبع د قارئینو کرامو ملال نه سی پیدا ۔ وعلی الله

التکلان ومن یتوکل علی الله فهو

حسبه





# فَصْلٌ فِیْ زِیَارَةِ الْقُبُوْرِ

دا فصل دی په بیان کی د زیارت دقبرو یعنی د مړو د زیارت. قال المصنف

نُدِبَ زِیَارَتُهَا لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ عَلَی الْاَصَحِّ مندوب دی یعنی بنه کار دی زیارت دقبرو نرولره او ښځولره پر اصح روایت. لکن پرقبر به نه خیژی، او بعض فقهاء وائی چې ښځو لره زیارت دقبرو حرام دی. اول د دوی جزع او بې صبری ډیره ده. او بل ښځې خصوصاً د اخیری زمانی به زیارت ته تلل بهانه و نورو کارو ته وگرځوی. لکن مصنف په مطلق کی و چې که څه هم په اول کی نر او ښځې دواړه منع وی د زیارت څخه دمړو. لکن وروسته چې رخصت را غلی او نهی منسوخه سوی. نو دا رخصت نر او ښځو دواړو ته شامل دی. لقوله علیه الصلوٰة والسلام: زُوْرُوا الْقُبُوْرَ تُذَكِّرْكُمُ الْمَوْتَ: تاسی زیارت دقبرو کوئ چې تاسی ته مرگ در پیادوی، او په بل حدیث کی داسی را غلی دی: كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِیَارَةِ الْقُبُوْرِ فَزُوْرُوْهَا وَاجْعَلُوْا زِیَارَتَكُمْ لَهَا صَلٰوةً عَلَیْهِمْ وَاسْتِغْفَارًا لَهُمْ. یعنی نه وم چې تاسی می منع کړی واست د زیارت څخه دقبرو پس تاسی زیارت کوئ دقبرو او گرځوئ زیارت ستاسی قبرولره دعا گوئې و مړو لره او طلب د بخښی د دوی د پاره او دعا. نگه د محمد بن النعمانؓ څخه مرفوع حدیث مروی دی: مَنْ زَارَ قَبْرَ اَبَوَیْهِ اَوْ اَحَدِهِمَا فِیْ كُلِّ جُمُعَةٍ غُفِرَ لَهٗ وَكُتِبَ بَرًّا» رواه البیهقی، ترجمه: که چا زیارت د مور او پلار او یا د دواړو دقبرو او یا د یوه د دوی په هر جمعه کی. نو بخښنه به وکړه سی ورته، او دی به نوشته سی برًا یعنی د مور او پلار فرمان وړونکی:

**پوهه**: چې «بر» مقابل د عاق دی. قَالَ الْاِمَامُ الطحطاویؒ اخرج ابن ابی الدنیا والبیهقیؒ فی شعب الایمان، عن محمد بن واسعؒ قال بلغنی ان الموتیٰ یعلمون بزوارهم یوم الجمعة ویومًا قبله ویومًا بعده» وقال ابن القیم الاحادیث لسو ان الاحادیث

والاثار تدل على ان الزائر متى جاء علم به المزور وسمع سلامه وانس به "

یعنی هر وخت چې قبر ته د مړي ورسي نو هغه مړی په پوهیږي او دده سلام اوري او دده سره الفت کوي، وَرَدَّ عَلَيْهِ " او دده د سلام جواب ورکوي ". نو دا عام دی که صاحب القبر شهید وي او که نه وي، او په دی حدیث شریف کی وخت اینبول د وړځی دجمعې نسته.

**فَائِدَه** مستحب ده چې که چیری پر قبرو پښی لګیدلی باید چې پښی ئی لڅې وي، او مړي ته به دعا کوي او یا به تسبیح او یا دی د قرآن پاک یو سورت وائي: وفي الشرح چې که چیری لاره وه بیله پښو ایښولو پر قبرو په سبب د ضرورت پروا نه لري، قال الامام الطحطاوي: ولا یکره المشی في المقابر بالنعلین وکرهه احمدُ: **پوهه:** چې د دی عبارت معنا داده چې صرف په ادیرو (هدیره) کې د چوتره سره تګ مکروه دی " دا معنا نه ده چې پر قبرو د نعلینو په تیریدو کی کراهت نسته، ولی چې هغه مکروه اتفاقاً دی الا لضرورة.

**مسئله** سړي دی په هدیره کی شپه نه کوي، ولی په هغه کی سړي ته دهشت پیښیږي.

**مسئله**، څوک چې د قبرو زیارت ته ورځي قصد به ئی رضا د خدای او اصلاح د خپل زړه وي او نفع د مړي په دعا سره او یا په تلاوت د قرآن سره. **مسئله**: قبر دی نه مسه کوي او نه دی ښکوي، فانه من عادة اهل الکتاب " او بل مسه کول خصوصیت د حجر اسود او رکن یماني دی او ښکول خاصه د حجر اسود ده، او د ښځو د زیارت په باره کی قدیماً او حدیثاً د علماوو اختلاف دی " چنانچه مصنف د ښځو د پاره هم مندوب بولي. او د قاضي خان څخه سوال وکی چې ښځی زیارت ته تلای شي او که نه! قاضي ورته وویله چې ته ئی د صحت او د فساد پوښتنه کوي بلکه د دی پوښتنه وکړه چې څونه قدر لعنت پر دوی اوري، په فتاوی تاتارخانیه کی وائي چې څه وخت چې ښځه د کور وزي بیله ضرورت شرعي نو دا په لعنت کی د خدای او د ملائکو ده، او د هر طرفه په دی پسی شیطانان وي، او چې هدیری ته ورسي روح د مړي پر دی لعنت وائي، او چې د کور وخواته





راروانه شي هم د خدای په لعنت کی به وي، او بدر الدین العینی په شرح کی د بخاري کی د دی څو اوږد بیان په په زیارت کی د ښځو کړی دی په اخیر کی داسي وائي: چې زیارت پسله دی چې ښځو ته مکروه دی بلکه دی وائي چې په اوس وخت کی حرام دی، خصوصاً د ښار و د قبرو د ښځو ولې چې د هغو په وتو کی قطعي فتنه او فساد سته کما مرمنا اوط " د "س، نځرد ابي ښځي ولی چې د هغوی نقل کړی دی که ښځی چې زیارت د قبرو ته ځي نیت یه غم نوی کول وي، او ژړا وي، کما جرت به عادتهن، نو دوی ته زیارت د قبرو نه دی روا، او هم د غه دی محمل او معنا د هغه حدیث صحیح چې علیه الصلوٰة والسلام فرمائي: لَعَنَ اللّٰهُ زَائِرَاتُ الْقُبُوْرِ " او که د دوی نیت عبرت اخستل وي او تبرک په زیارت د قبرو او صالحو بندګانو وي او مخالفت الشرع کار هم نه کوي، نو پروا نه لري چې سپین سري وي، او د ځوانانو ښځو ته مکروه دی، لکه جماعت ته ورتله وه د ځوانانو ښځو کما في کتب الفقه " قال ط " والاصح ان الرخصة ثابتة للرجال والنساء کما قال المص: لان السیدة فاطمة رضي الله تعالیٰ عنها کانت تزور قبر حمزة رض کل جمعة وکانت عائشة رضي الله تعالیٰ عنها تزور قبر اخیها عبد الرحمٰن رض بمکة "

**درویش وائي**: چې زمونږ د زمانی ځوانانی ښځی دی باید پر هغو مبارکانو ښځو قیاس نه شي او نه په اوس زمانه کی عالم ته روا ده چې ځوانانو ښځو ته فتوی د جواز ورکړي " کما لایخفیٰ فتامل " در، وفي المراقي چې سنت دی زیارت د قبرو په ولاړه او دعا و مړو ته هم په ولاړه لکه چې علیه الصلوٰة والسلام د جنت البقیع هدیری ته چې به ورتلی نو په ولاړه بی داسی وویله: السلام علیکم دار قوم مؤمنین وانا ان شاء الله بکم لاحقون اسئال الله لی ولکم العافیة " او په شرح کی د مشکوٰة وائي چې زائر له بنائي چې قبر ته دی نږدی دریږي، که ولاړ او که ناست وي لکه د ژوندو سره کار " په قهستاني کی وائي چې پر برابر د مخ دی دریږي، او امام غزالي په احیاء العلوم کی وائي چې مستحبه په زیارت کی د قبر دا ده چې مخ دی د مړی و خواته وګرځوي او شا وقبلی ته، او په حال کی د دعا دی هم دا غسی ولاړ وي: وعلیه عمل عامة المسلمین "

اووهابیان وائي چې په حال کې ددعا دې مستقبل القبله درېږي، **پوهسه**: چې په حدیث شریف کې چې "دارقومٍ مؤمنین" راغلي دي په حذف سره دمضاف یعنې اهل دارقومٍ مؤمنین لکه چې په بل روایت کې صراحةً راغلي دي، اوابن عبدالبرؒ په سندصحیح سره دابن عباسؓ څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي: مَا مِنْ مُؤمِنٍ يَمُرُّ بِقَبْرِ اَخِيهِ الْمُؤمِنِ كان يعرفه فى الدنيا فَيُسلم عليه الاعَرَفَه وَرَدَّ عليه السَّلام"

**پوښتنه**: آنحضرت صلی الله علیه وسلم ان شاءالله ولې ووئیله! اوسره ددې چې الحاق دمړوسره خو یقیني دی **جواب**: بعض علماء وائي ویل دمشیت صرف تبرکاً وه، اوبعض علماء وائي: اى على اَتَمِّ الحَالات" اودعافیت معنیٰ داده چې تحفظ څخه دخدائ اورځ داخرت محفوظ وي. قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَيُسْتَحَبُّ قِرَاءَةُ يٰسٓ لِمَا وَرَدَ اِنَّهُ مَنْ دَخَلَ الْمَقَابِرَ وَقَرَءَ

اومستحب ده یعنې زیارت کونکي لره ویل دسورة یٰسٓ. ولې چې په حدیث کې راغلي دي چې روایت

## يٰسٓ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْهُمْ يَوْمَئِذٍ وَكَانَ لَهُ بِعَدَدِ مَا فِيْهَا حَسَنَاتٌ

په انسؓ کړي دی. چې ده ویل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې وویل چې په تحقیق چې څوک داخل سي هدیرو ته اووائي سورة یٰسٓ یعنې ثواب یې ومړو ته دمقبرې وبخښي خدائ به سپک کړي دغومړو څخه په دغه ورځ عذاب اویابه عذاب ځندي پورته کړي اووي به قاري لره ثواب په قدر دمړو ددغې هدیرې اوحسنات،

**پوهسه**: چې په ورځ دجمعې هم عذاب دبرزخ څخه پورته کیږي، اوبیا نه راګرځي عذاب پرمسلمانانو، ط، **پوهسه**: چې داثواب اورفع دعذاب هلته صورت نسي چې سرې هدیرې ته ورسي اولیٰسٓ شریف هوري ووائي **فائده**: ددې حدیث څخه دامعلومه سوه چې قرائت دقرآن په هدیره کې روادی بلکه مستحب دی" اووهابیان په هدیره کې قرائت دقرآن ناروا بولي، امام محمّد وائي چې دلیل داستحباب





په ورود دآثارِ نبویه ووډي په دې باب کې. قال الطحطاوى وهوالمذهب المختار، كما صرح به الفقهاء، فى كتاب الاستحسان، اوملاعلي قاريؒ چې وائي چې په دې باره کې صحیح حدیث نه دی راغلي دمنلوو نه ده په مقابل کې دتصریح دامام محمّد اودنورو فقهاوو. قَالَ

## وَلَا يُكْرَهُ الْجُلُوْسُ عَلَى الْقَبْرِ لِلْقِرَاءَةِ فِى الْمُخْتَارِ وَكُرِهَ الْقُعُوْدُ

اونه ده مکروه ناسته پرقبر دپاره دقرائت دقرآن، ولې تروړلاړې په ناستې قرائت سره په تسلي او

## عَلَى الْقُبُوْرِ لِغَيْرِ قِرَاءَةٍ وَوَطْئُهَا وَالنَّوْمُ عَلَيْهَا وَقَضَاءُ

اطمنان ویل کیږي، اومکروه ده ناسته پرقبرو بیله قرائت دقرآن، اودغه رنګه مکروه ده تړپښو

## الْحَاجَةِ عَلَيْهَا وَقَطْعُ الْحَشِيْشِ وَالشَّجَرِ مِنَ الْمَقْبَرَةِ وَلَا

لاندې کول دقبرو اوداغه رنګه مکروه دی خوب کول پرقبر اودغه رنګه مکروه ده بلکه اشدکراهة بولي یې غوټ کول پرقبر، اودغه رنګه مکروه دی رېبل دلند او

## بَأْسَ بِقَطْعِ الْيَابِسِ مِنْهُمَا

وښو اوبوټي کول دلندې ونې دهدیرې. او پروانسته په رېبلو کې دوچو وښو اویادوچې دقبرو،

**فائده**: په کتابو کې وائي چې په لمرشي کې چې سروي هغه لره ژوند سته، اوچې ژوندي وي هغه تسبیح دخدای پاک وائي: کریمه، وَاِنْ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ، اوچې مړسي نو تسبیح یې قطعه کیږي، نوانسانانو اوحیوانانو مرګ اوډونه خو معلوم دی، اودنباتاتو ژوند دادی چې شین اولوند وي، چې وچ سو نو مړسي اوتسبیح یې قطع سي، اودبوټو ژوند دادی چې روغ وي لکه درود کانړي چې دېره ماته سي نومړسي اوتسبیح ویل یې قطع سي، نو بناءً علیٰ هذا ولېنه دادې چې شنه اولانده وي یادرخته دهدیرې چې شنه اولنده وي، تسبیح دخدای جل سلطانه وائي نوپه دې تسبیح ویلو کې ددوی مړوته نفع رسیږي، نوځکه یې قطع مکروه ده، نوته فکروکړه،

چې په تسبیح د وَبنو اود رختو اورو غو کا نړو مړو ته نفع رسیږي، نو په قرائت د قرآن
دا انسانانو مسلمانانو د خوا څخه به مړو ته څرنګه نفع نه رسیږي» نو دوهابیا نو دا قول
چې قرائت د قرآن نفع و مړي ته نه رسیږي او قرائت د قرآن د قبرو سره مکروه دی» د شریعه
نبویۀ څخه مخالفه خبره ده،،

**درویش وائي:** چې هم داراز دی چې مسلمانان د خپلو مړو و مړو ته شنغزی او یا نوری
درختی شنی کوی او ترلوی والی پوری پالنه کوي، او هم دا ښه دی چې په وخت کی د ښخولو
خلک د خپلو قریبانو په قبرونو غنم دانی یا اوربشی پاشي چې راشنه سي، او مړي ته به
فائده ورسیږي، اود دی بیان څخه هغه مسئله هم توضیح سوه چې په فقه شریفه کی وائي
چې په گچو او یا په سمینټو د قبرو جوړول ناروا دی، ولې چې بیانات نه پرښنه کیږي
وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ،،

**مسئله شرعیه** ابو حفص عکبري وائي چې مسلمان کولای سي چې ثواب د خپل و بل چا ته
وبخښي که هغه بل څوك مړوي او که ژوندی، بیله دی چې د ثواب
څخه د عامل کم سي، دارقطني د علي رضي الله تعالیٰ عنه څخه روایت کړی دی چې نبي علیه الصلوٰة
والسلام ووئیله، چې څوك چې تیریږي پر هدیرو باندی او قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ، یوولس
واره ووائي او ثواب یې د هدیری و مړو ته وبخښي. نو دی قاري ته به خدای ورکړي ثواب
په قدر د مړو د دی مقبری، او طبراني او بیهقي په شعب الایمان کی د ابن عمر رض څخه روایت
کړی دی. چې هغه ووئیل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل: اِذَا تَصَدَّقَ اَحَدُكُمْ
بِصَدَقَةٍ تَطَوُّعًا فَلْيَجْعَلْهَا لِاَبَوَيْهِ فَيَكُوْنُ لَهُمَا اَجْرُهَا وَلَا يَنْقُصُ مِنْ اَجْرِهِ شَيْءٌ، ط،
که څوك صدقه وکړي یوه صدقه نفلی نو دی د هغې صدقی ثواب د مور او پلار د پاره
وګرځوی نو خدای مور او پلار ته د دَه اجر او ثواب ورکوی بیله دی چې د ثواب څخه د عامل
دی څه شی کم کړي،،

**اِلٰهی!** درویش وائي چې زما په تو له عمر کی چې ۸۳ کاله ته رسیږي ما هر څه نوافل د عبادات
بدنیه وو، او یا قولیه وو یا مالیه وو،، ما کړي دی د هغو ټولو ثوابونه زما مور او پلار ته ورسوی
اٰمین اٰمین





**پوښتنه:** چې معتزله وائي چې هیڅ څوك نسی کولای چې د خپل عمل هر عمل چې وي
وګرځوي هر څوك چې وي او دوی دا ایت خپل دلیل بولي، وَاَنْ لَّيْسَ لِلْاِنْسَانِ د بل لپاره
**وَالْجَوَابُ عَنْهُ**، چې دا ایت منسوخ دی قاله ابن عباس رض په هغه ایت اِلَّا مَا سَعٰی،
وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ، الاٰیه، ولی د دې څخه دا معلومه سوه چې ...
اولاد په سبب د صلاح د ه اباء وو جنت ته داخلیږي، او عکرمه رض وائي چې دا مذکوره ایت
خاص دی په قوم سره دا براهیم ع او د موسیٰ ع. او هر چه امت د محمد م دی هغوته ثواب د ما سعوا
او د ما سعی لهم، ورکول کیږي، او نور جوابونه چې شمیر ۲ شپږ ته رسیږي، په حاشیه کی
د طحاوي مطالعه کړه»

**فائده کلام پرواهه،** امام مالك په موطاء کی وائي چې حضرت علی رض پر قبر سر ایښو، او څنګ یې
او فقیه ابو جعفر طحاوي په شرح کی د معانی الاثار موصول
حدیث د نافع رض روایت کړی دی، چې ابن عمر رض پر قبر کښینستی، او امام مالك وائي چې د فعله
څخه د علي رض او د ابن عمر رض څخه دا معلومه سوه چې د جلوس پر قبر چې نهی شوی ده غلی جلوسه
د پاره د قضاء حاجت یعنی بول وغیره، واخرج الطحاوي حدیثا مرفوعا بروایة رجال ثقات،
عن زید بن ثابت رض: قال انما نهی النبی صلی الله علیه وسلم عن الجلوس علی القبور
لحدث او بول او غائط، او فقیه ابو جعفر طحاوي چې اعلم د خلکو دی په مذهب د ابو حنیفه
وروسته تردیرو خبرو یې داوئیلی دی، وهذا قول ابی حنیفة رح وابی یوسف رح ومحمد رح او
ملا علی قاري داسې فیصله کړیده چې نهی د ناستی څخه پر قبر نهی تنزیهی دی او فعل
د علی رض او د ابن عمر رض د پاره د بیان د رخصت دی»

**درویش وائي:** چې په قول د ملا علی قاري ټول حدیثونه، او اقوال مختلفه د فقهاو
سره جمع کیږي، فینبغی ان یفتی به واللّٰه اعلم بالصواب، عاصي وائي سره
د اکتاب به په پښتنو کی ویل کیږي.. زما هر و کی به په قبر کی خاوري کیږي،،
که بوو دور ماته دعا د مغفرت کې، خدای دې دی هم و بخښي په اخرت کې»
غرض نقشیست کز ما یاد ماند: که هستی را نمی بینم بقائی: مگر صاحبدلی روزی ز رحمت: کند در حق این مسکین دعائی:

آئے تھے ہم مثل بلبل سیر گلشن کر چلے ؛ دیکھ مالی باغ اپنا ہم تو اپنا گھر چلے ؛

احب الصالحین ولست منهم ؛ لعل الله یرزقنی صلاحا ؛

# بَابُ اَحْكَامِ الشَّهِيْدِ

باب ثابت دی په بیان ک د احکامو د شهید. **پوهه سه**: چې شهید پر وزن د فعیل
دی نو یا په معنیٰ د مشهود له دی، ولې چې ملائکه ده ته شاهدی اداء کوي په دخول د جنت
سره د پاره د اکرام د ده، او یا په معنیٰ د مشهود علیه دی، ولې د ده وینې او تپونه پر ده شاهدی
اداء کوي چې د حق په لار کې مړ سو، او یا فعیل په معنا د فاعل دی، لشهوده عند الحق جل
شـ ... ق عنده بما شاء الله، او یا د دی سببه چې روح ئې دار السلام ته داخلیږي فی الحال
بخلاف ارواح غیره من المؤمنین، ولې چې د هغو حضور دار السلام ته په ورځ د قیامت کیږي.
او یا د دی سببه چې پر شهادة الحق والا روو نو ځکه شهید سو، او یا د دی سببه چې دی
حاضریږي و هغه کرامت ته چې د ده د پاره خدای پاک ورته ایښي، وهذا حاصل ما فی المراقی والطحطاوی
لکن بعض مذکوره معناوي خاص په هغه شهید پوري دي چې لاعلاء کلمة الله شهید سي. تنبیه
قال المصنف **الْمَقْتُولُ مَيِّتٌ بِاَجَلِهِ عِنْدَنَا** یعني بای سبب کان یعني لم یسبق من اجله ورزقه شيء. یعني په نزد د اهل
السنة والجماعت، او معتزله وائي چې د مقتول اجل قاتل پرې قطع کړی، او که قاتل نه وای وژلی
نو دی به ژوندی پاته وای. قال المصنف

**وَالشَّهِيْدُ مَنْ قَتَلَهُ اَهْلُ الْحَرْبِ** او شهید په شرع شریفه کې که په مباشرت سره مړ کړي لکه چې په توري یا نیزه
او یا په کلاشنکوف وغیره یې وولي، او یا تسبباً وي لکه په اوبو کې غرق کړي، یا اور پرې ولګوي
کړي یا اهل الحرب مسلمانان بمبار کې لکه چې په هر دا اوس امریکایان خذ لهم الله ولعنهم





چې مسلمانان د افغانستان نن او ښځي بمبار وي، او په دی او ریه کیا بوي، قال المصنف
**اَوْ اَهْلُ الْبَغْيِ اَوْ قُطَّاعُ الطَّرِيْقِ اَوِ اللُّصُوْصُ فِيْ مَنْزِلِهِ لَيْلًا**
او یا یې باغیان د حکومت اسلامي مړ کړي. او یا یې غله قتل کړي چې لاره یې نیولې وي. او یا یې په کور کې غله
مړ کړي د شپې **پوهه سه**: چې قید د شپې اتفاقي دی ولې اکثره
**وَلَوْ بِمُثَقَّلٍ** غلا د شپې په وخت کې تر سره کیږي ورنه کې د ورځې غله مړ کړي هم شهید دی.
که څه هم په درانه شي یې مړ کړي لکه لوبیه د ډبرې چې ور ایله کړي، قال المصنف:
**اَوْ وُجِدَ فِي الْمَعْرَكَةِ وَبِهِ اَثَرٌ** او یا په جنګ ځای کې مړ پیدا سو نو که دا معرکه د اهل حرب وي او که بغاتو وي
او که د قطاع الطریق وي او پر ده باندې یو اثر او علامه د جنګ هم وي لکه، تپ، سوځل،
ماتوالی د سر یا د پښو وغیره، او یا یې تر سترګو او یا تر غوږو وینې راغلې وي،

**فَائِدَة** حربي هر هغه کافر ته وائي که هندو وي او که یهودي وي که نصراني وي وغیرهم
چې تر حکم د امام المسلمین لاندې نه وي، او که د دغو طوائفو څخه خوک په
دار الاسلام کې اوسیږي او تر حکم د امام المسلمین لاندې ئې ګذاره کوله هغه ته ذمي وائي
او که د دار الحرب څخه په پاسپورټ او اجازه دار الاسلام ته راغلي وو هغه ته مستأمن وائي.

**فَائِدَة** څرنګه لکه مسلمانان چې ماموره دي په جنګ د اهل حرب، دغسې نګه ماموره
دي په قتال د بغاتو، نو حکم د اهل الحرب او بغاتو یو دی. ط. قال المصنف
**اَوْ قَتَلَهُ مُسْلِمٌ ظُلْمًا** مصنف قتل ووایه، ولې که یو سړی د بامه ولوېږي او مړ سي
او یا دیوال وغیره پر ونړېږي مړ سي، او یا په اور سره مړ سي
او یا په اوبو کې غرق سي. نو دا تول کسان په احکامو کې د دنیا شهیدان نه دي البته فی الاخرة
شهیدان دي، او په ناحقه یې مړ کړي، نو کې په رجم کې مړ کړي او یا په قصاص کې مړ کړي هغه
شهید نه دی چې د ی پر چا حمله وکړي، او یا پر مال د چا حمله وکړي، نو هغه سړي مدافعةً وا
وګرد مخ کړي او حمله کوونکی مړ کړي **عَمْدًا** په قصد سره نو که چا بل څوک مړ کې په خطاء

هغه شهید نه دی کله څوک چې ښکار کوي او پرې مړ شي نو هغه مبتلی دی»

**مسئله**: قال صاحب البحر: من وجد مذبوحا ولم يُعلم قاتله او وجد مقتولا في محلة ولم يعلم قاتله فهو ليس بشهيد لانه لا يدري أقتل ظالما او مظلوما عمدا او خطأ.

**مسئله**: که یو څوک زخمي مړ کړی شي او یا دا اخیل مړ شي مړ کړی شي هغه شهید دی او قصاص چې نشته هغه په سبب د عارض دا بیته یا سید ته دی» قال المصنف: ومړ په کړی شي په نهه دلته سلاح تور، خنجر، چړه وغیره

**بمحدد**
**پوهنه**: چې د تولو کوي یا د کا لکه ف تولی هم بمحدد کې داخل دی، اګرچه تېره نه وي ته په عارض داورد بار تودی. نو په محدد سره په شبه عمد وایستی لکه چې په ډېر ننه ډېره یې مړ کړي ...

قال المصنف: **وَكَانَ مُسْلِمًا بَالِغًا خَالِيًا عَنْ حَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَجَنَابَةٍ**

او دی مړ شوی څوک مسلمان احتراز دی له هغه څخه کوم چې مسلمان وي، او بالغ به وي احتراز دی له ځیني څخه، او خالي به وي معنوي د حیض او نفاس او جنابت څخه، ولې چې کشی مقتول ته او شې حائضه یا نفساء یا جُنب ته غسل ورکول کیږي. او نوی کفن هم یعنې پخوانی کالي دی نسخه وي. قال المصنف:

**وَلَمْ يُرْتَثَّ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْحَرْبِ** او دې مقتول د جنګ نه وي کړي پېله یا ته رسید و د جنګ»

**پوهنه**: چې مُرتث شرعا هغه څوک دی چې د صف څخه د جنګ ایستل شوی وي او یا دوا په سوی وي، او یا خوراک یې کړی وي د باندې تر صف انقتال، نو مرتث سړی شهید دی په حکمونو د اجرت یعنې ده ته هغه ثواب موعوده د شهید وي، کړه کیږي نو د اشرائط ټول موجود وي نو دا غه مقتول په حکم کې د شهداء د احد دی. قال المصنف

**فَيُكَفَّنُ بِدَمِهِ وَثِيَابِهِ وَيُصَلِّي عَلَيْهِ بِلَا غُسْلٍ** کړه شي نو دفن دي

دو یعنی وینې دې نه مینځی او ډېر دکالو چې غوستي به وي. او د جنازې لمونځ





دی ورکړی بیله غسل، هم دا غه حکم کړی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم په شهداء کې د احد» بعض خلک پوښتنه کوي چې شهداء خو ژوندي دي په حکم د دې آیت کریمه «بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ» او ژوندو ته خو جنازې لمونځ نه دی روا **جواب** دوی ځو ژوندي دي په احکامو کې د اجرت کما یدل علیه قوله تعالی: عِنْدَ رَبِّهِمْ او د جنازې لمونځ خو د احکامو څخه د دنیا دی، نو ځکه د دوی ترکات وېشل کیږي او ماینې یې بیا بل میړه کولای شي دا ټوله او هم دا رنګه نور د احکامو څخه د دنیا دي» **سوال**: نو لمونځ د جنازې خو د پاره د طلب د بخښنې دی د مړي د پاره او شهداء خو خدای جل جلاله بخښلي دي **جواب** که داسې وای نو نبي علیه الصلوة والسلام ته ئې ولې! د جنازې لمونځ ورکاوه: مع انه معصوم عن الذنب» او کشي ته ولې د جنازې لمونځ ورکوي وسره د دې چې پر کشي خو هیڅ ګناه نشته، بلکه عمومي حکمت د جنازې د لا څخه. اداء د حق د میت ده چې په ذمه کې د مسلمانانو لازم دی. هر ... قال المصنف:

**وَيُنْزَعُ عَنْهُ مَا لَيْسَ صَالِحًا لِلْكَفَنِ كَالْفَرْوِ وَالْحَشْوِ** او کاږی دې د ده څخه

هغه شیان چې صالح د کفن نه وي. لکه پوستین او چینه چې په ما بین کې پنبه وي، او هم وانې چې خولی دی هم څنډی و کاږي او بوټونه دي هم څنډي وکاږي. او ازار و لنګ وانې چې پوښ او چپنه. او صدري دي هم څنډي کاږي، لکن پرتوګ دي نه څنډي کاږي» قه»

قال المصنف **وَالسِّلَاحَ وَالدِّرْعَ وَيُزَادُ وَيُنْقَصُ وَكُرِهَ نَزْعُ جَمِيعِهَا**

لکه توره، توپک، کلاشنکوف وغیره، او زغره د جنګ د او سیني قمیص او زیاتوی دی بله جامه که موجود جامې د شهید تر کفن سنت کمې وي، او کمې دی کې که د شهید څخه لبعض کالي که تر کفن سُنت ښا لاوي د پاره د حق د ورثه وو، او مکروه دی کښل د ټولو جامو د شهید، ولې دا کار خلاف السنه او خلاف الاجماع وي، نو مکروه تحریمي دی» در»

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولوالديهما ولجميع المؤمنين والمؤمنات امين امين امين

قال المصنف: **وَيُغَسَّلُ اِنْ كَانَ جُنُبًا** که جنب وو نو غسل دی ورکړی شي پوره ... چه دا مذهب دی د امام اعظم او بنا ...

... غسل دی ... په صحیح حدیث کی راغلی دی چه حنظلة بن راهبؓ چه به ... د احد شهید سو. علیه الصلوٰة والسلام ووئیل چه ما ولیدل ملکی چه غسل به ورکوی حنظلة بن ابی عامر ته په مابین کی د اسمان او ځمکی په اوبو د ورېځی په لوښو کی د سپینو زرو، ابواسیدؓ وائی چه موږ ورغلو او د حنظله رض مړی موو کتی نو د سر نه ولښتا نو به اوبه توئیدلی، نو علیه الصلوٰة والسلام د دی بیا ره چه ودی شهید ته ولی ملکو غسل ورکوی، نو به د حنظله رض ومابینی ته سړی واستاوی هغی ورته ووییل چه دی چه د کوره و تو جنب وو، په بل روایت کی راغلی دی چه ده چه د جنګ اوغږ واوریدل نو د ډیره تلواره وغسل نه وکړی، قال المصنفؒ:

**اَوْقُتِلَ صَبِيًّا اَوْمَجْنُونًا** او یا کوچنی او لیونی مړه کړه سول. ولی لوی نه غسل ځکه ورکوی چه هغه ګناه کاره کیدلای سی، او کوچنی او لیونی لره خو ګناه نسته نو په معنا کی د شهد او د احد نه دی، چه پرسد او لویان خلک وه. قال المصنفؒ

**اَوْحَائِضًا اَوْنُفَسَاءَ اَوْ اُرْتُثَّ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْحَرْبِ**

یا ښځه چه شهیده سوه حائضه یا په نفاس کی وه. او دلیل یه هغه د جنب دلیل دی، او یا وخندیدی یعنی ژوندی وو، پسله ختمیدو د جنګ، قال المصنفؒ:

**بِاَنْ اَكَلَ اَوْشَرِبَ اَوْنَامَ اَوْتَدَاوٰى اَوْمَضٰى عَلَيْهِ وَقْتُ**

د ارتثاث صورت دا دی چه یا خوراک وکړی او یا اوبه وچښی او یا بیده سی او یا دوا وکړی، او یا وخت

**الصَّلٰوةِ وَهُوَيَعْقِلُ اَوْنُقِلَ مِنَ الْمَعْرَكَةِ لَا لِوَطْىِ الْخَيْلِ اَوْ**

د لمانځه پر تیر سي او دی په هوش کی وي، او یا د جنګ د ځایه نقل کړی بیله دی سببه چه اسان





به ... لاندی نه کړی بلکه د پاره د دواء وغیره نقل کړه سی، نو که د جهت څخه د خوف د ... نقل کړه سو هغه مرتث نه دی غسل دی نه ورکوي **پوهسه**: چه یوازی ... دی ... بلکه قدرت پر اداء د لمانځه هم غواړی نو د غه تهپی په هوش کی خو وو مګر ... په هیڅ ډول پر اداء د لمانځه نه د بلو دی حتی مرتث نه دی یعنی غسل ... کوی، قال المصنفؒ:

**اَوْصٰى اَوْبَاعَ اَوِاشْتَرٰى اَوْتَكَلَّمَ بِكَلَامٍ كَثِيْرٍ** او یا یه وصیت وکړی خواه په کار و د دنیاوی یا د اخرت لکن دا مذهب دی د ابو یوسفؒ او امام محمدؒ چه په وصیت سره د امور د اخرت مرتث نه دی، او فقیه ابوجعفر طحاویؒ چه په وصیت سره هله مرتث ګنړل کیږی کله کی وصیت تر دوو خبرو بالا وو او که په یوه خبره یا په دوو خبرو وصیت وکړی مرتث نه دی او یا یه یو شئ رانیوی او یا یو شئ خرڅ کړی او یا یه ډیری خبری وکړي، قال المصنفؒ

**وَاِنْ وُجِدَ مَاذُكِرَ قَبْلَ انْقِضَاءِ الْحَرْبِ لَايَكُوْنُ مُرْتَثًّا**

او که دا مذکوره شیان او کارونه پیدا سوه د مخه د جنګ تر ختمیدو نو بیا مرتث نه دی حتی چه غسل دی نه ورکوي، قال المصنفؒ:

**وَيُغَسَّلُ مَنْ قُتِلَ فِى الْمِصْرِ وَلَمْ يُعْلَمْ اَنَّهٗ قُتِلَ بِمُحَدَّدٍ**

او غسل دی ورکوی هغه چاته چه په ښار کی مقتول پیدا سی، او د دا یه نه معلومیږی

**ظُلْمًا اَوْقُتِلَ بِحَدٍّ اَوْقَوَدٍ وَيُصَلّٰى عَلَيْهِ** او غسل دی ورکوی هغه چا ته چه دی په محدد ظلماً وژل سوی دی او یا په حد زنا کی او یا په قصاص کی او لمونځ د جنازی دی هم ورکړي.

**فَائِدَه** هغه کسان چه مرتث ګنړل سول هغه په امورو کی د دنیا شهیدان نه دی یعنی غسل به ورکوی او په امورو کی د اخرت: من الانعام والمراتب

الحانية للشهداء دوی د نورو شهداو وسره شریك دي.

**فائدة سنية:** پوه سه: چې علامه جلال الدين السيوطي پخپل كتاب تثبيت كې به نقل د طحطاوي شهداء د اخرت نور كسان هم راوړي دي چې د عنه كسان په صحيح حديثو كې هم په ډله كې د شهداء د اخرت راوړه سوي دي صراحةً يا اشارةً وقياساً.

۱ **مبطون:** هغه چې د كس د مرض مړ سي يعني يا د استسقاء په مرض يا د اسهال په مرض. ۲ **غريق**، دی چې په رود يا خاكې ولوېږي او غرق سي نو مړ سي. ۳ صاحبُ الهدم چې ديوال يا خونه پرونه ورپېږي او مړ سي ۴ ذات الجنب په مرض مړ سي، دا مرض يو قسم دانې دی چې په داخل كې د يوه بغل پيدا سي او ډېر سخت درد ورسره وي او بعض فقهاء وايي چې ذات الجنب سكاروي ته وايي. او لوړ تبې ته هم وايي.

۵ چې بنځه په جمع كېنې مړه سي يعني د لنګيدو په وخت كې خواه عيال يې په نس كې پاته سي او مړه سي، يا متصل په ننګيدو پسې مړه سي. ۶ په مرض د سل مړ سي چې د يو مرض دی په سينه كې پيدا كيږي او بدن كرار كرار مخ پر نقصان وي او بدن يې هم زېږيږي. ۷ او يا په دق مړ سي چې هغه مرض دی چې په انه كې دانې پيدا سي او تبه ورسره وي، چې په اوسني اصطلاح يې تور ژبې بولي. او دا مرض د سرطان يو قسم دی چې مايوس العلاج دی، او په ډېره زمانه سري څنډی مريږي يعني طولاني مرض دی هغه د السل.

۸ چې په مسافرۍ كې څوك مړ سي. ۹ او يا په صرع سره مړ سي، چې په اصطلاح د پيريانو مرض يې بولي ۱۰ په محافظت كې د ځان او يا مال او يا د ماينې مړ كړه سي ۱۱ چې په عشق كې څوك مړ سي كه عشق حقيقي وي، لكه د خدای او عليه الصلوٰة والسلام عشق، او يا په مجازي عشق كې د نړيا د سببه مړ سي، لكن شرط دا دی چې د حرام كار څخه به پرهيز ورسره ملګري وي، لكه چې مسه لول په شهوت سره او زنا او لواطت، او بل شرط دا دی چې دی به خپل عشق پټ ساتي

**پوه سه:** چې سبب د عشق مجازي خو حرام دی لكن پس له وقوع څخه په دی سبب كې كه څنډی مړ سي شهيد دی.





۱۲ چې درنده يې مړ كړي ۱۳ چې هغه وكي ته په ستوني كې بند سي او څنډی مړ سي ۱۷ ...
۱۴ چې د ظالم په بندي خانه كې مړ سي او ظلماً بندي وي ۱۵ په ډېرو وهلو كې د حكومت يا جيل ...
چې په ماران يا لړم يا لمړی يا غونډلك ... څنډی مړ سي ۱۷ په طلب كې د علم ...
۱۸ چې ماران يا لړم ... ۱۱ او يا موذن وي لكن يحتسبه خوښه بيله ... ۱۸ ...
څنګه هم په تصنيف اخته وي او مړ سي ... ۲۰ هغه څوك چې هره ورځ ...
اجرت اختلو ۱۹ بل چې په فتنه وهلو كې مړ سي ۲۰ هغه څوك چې هره ورځ ...
او دغه دعا لولي: اللّٰهُمَّ بَارِكْ لِيْ فِي الْمَوْتِ وَفِيْمَا بَعْدَ الْمَوْتِ. نو دا هم دی پخپل
ورش مړ سي هم ثواب د شهيد لري، درويش وايي چې دغه مذكوره شيان اكثره سيوطي
دی او بعض درويش پر قياس كړي دی» وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

**درويش وايي:** چې د روژې مباركې مياشتې ته تخميناً ۱۰ ورځې پاته وي د كال ۱۴۲۲ه
د چارشنبې په ورځ زه د كتاب الصوم و شرحې ته راورسيدم، اللّٰهم وفقني لما تحب و
واحفظني من شغل المنافيات. والحمد لله معطي التوفيق والصلوٰة والسلام على نبيه
الصدوق وعلى آله وصحبه اهل الصدق والصفاء اجمعين.

# كتاب الصوم

داكتاب دى په بيان كى د معنىٰ دروژى او د احكامو د روژى،

**پوهـسـه**: چى مصنفؒ او بعض فقهاوؤ نورو ترلمانځه وروسته كتاب الصوم راوړى دى كبله چى لمونځ او روژه دواړه عبادات بدنيه دى، او بعض فقهاوؤ ترلمانځه وروسته كتاب الزكوة راوړى دى سببه چى په قرآن شريف كى په ډيرو ځايوكى "اقيموا الصلٰوة وآتوا الزكوٰة" يوځاى راغلى دى، او بل د دى سببه چى بعض فقهاءؒ وائى چى افضل داعمالو نه بيله زكوٰة صوم دى،

**فـائـده**، كه څه هم روژه نيول عبادت قديمه وو، لكن فرضيت دروژو په مياشت كى دروژى د شعبان د مياشتى پر ۱۰ تاريخ او يا پر ۲ تاريخ نازل سوى دى تر هجرت نبوىؐ يونيم كال وروسته، او هم په دغه تاريخ قبله د بيت المقدس څخه وكعبى شريفى ته نقل سوله، قـال المصنفؒ:

**هُوَ الإمْسَاكُ نَهَارًا** دا خومعنا لغوى د صوم ده، نو د دى لغوى معنا پر بناء عرب وائي: صَامَ الفَرَسُ، چى واښه نه خوري او په شرع شريفه كى نَهَارًا، يعنى امساك دى د ورځى، **فـائـده**: شرعى ورځ د طلوع څخه فجر صادق ده ترلمرلويدو پورى، او په نيزد حكماوو د لمرختو څخه ترلمرلويد و پورى نو ځكه دوى وائى: اذا كانت الشمسُ طالعةً فالنهار موجودٌ، قـال المصنفؒ:

**عَنْ إدْخَالِ الشَّيءِ** د داخلولو څخه د شى كه خوراك د هغه عادى وى لكه ډوډى او به وغيره او كه غيرعادى وى لكه ډبره خاورى وغيره چى داخل كړى نس ته، **پوهـسـه**: چى چونكه ادخال متعدى دى نو په دې سره به دخول وايستى مثلاً كه د سړى په خوله كرځ ننوتى روژه يه نه ده ماته، او يا په خونه كى اور بل كړى وو په خوله يه دود ننوتى روژه يه نه ده ماته، او كى چلم وڅكاوه او دو يه





روژه يه ماته ده، مرط، در، **پوهـسـه**: چى ادخال كه عادى شى وو، نو نيت كړى روژه يه ماته ده او كفاره باندى ستنه او كه غيرعادى وو روژه خويه ماته ده مگر هم يه روژه ماته ده او كفاره باندى نسته مگر كفاره نسته باندي» ط، قـال المصنفؒ:

**عَمْدًا أوْخَطَاءً** كه په قصد وى او كه په خطاء، د عمد صورت خو ظاهر دى، د خطاء صورت لكه يو سړى چى روژه يه هم ياد وى په خوله او به لغړوه او څه ندى تيري سى روژه يه ماته سوه لكن دَ دغى روژى امساك دى وكړى او وروسته بى قضا هم راورى او كفارت باندى نسته، مصنفؒ چى عمدا و خطاء ذكر كړل نو مراد يه دادى چى په هيره روژه نه ماتيږى، قـال المصنفؒ:

**بَطْنًا أوْمَالَهُ حُكْمُ البَاطِنِ** يا په نس ته داخله كړي او يا هغه ځاى ته چى هغه حكم د باطن لري، **پوهـسـه** چى د بطن د داخليدو خولارى دى» د خولى دخوا، د پزى د خوا، د غوږ دخوا، لكه چى لنده دوا په غوږ كى څاڅكى كړى، ولى چى د پزى د خوا او د غوږ و د خوا و ستونى ته لاړسته، او بل لارد بطن لوته ده، او بل څخول د ذكر د لارى دواء دي، او بله لار د بطن جائفه تپ دى يعنى هغه تپ چى و نس ته سرى وي، او هغه چى په حكم كى د باطن وى لكه چى په امه تپ كى چى لنده دوا واچوى: امه تپ بولي چى پردى ته د دماغ رسيدلى وي، قـال المصنفؒ

**وَشَهْوَةُ الفَرْجِ** او امساك غواړى يعنى د ورځى د شهوت څخه د فرج كه په جماع معهوده وى لكه هغه سړى كه د نروى او كه د ښځى، او يا قضاء شهوت په عبث كار سره وى چى استمناء يه بولي.

**مسـئـلـه**: په جماع معهود سره هم روژه ماتيږى او هم كفارت پر لازميږى بيان د كفارة الصوم به وروسته راسى ان شاء الله تعالىٰ، او په عبث كار سره روژه ماتيږى او كفاره نه پر لازميږى، طحطاوى، قال المصنفؒ:

**بِنِيَّةٍ مِنْ أهْلِهِ** په نيت سره چى اهل د روژى وي **پوهـسـه** چى نيت د روژى د دى د پاره غواړى چى د عبادت او عادت فرق په

وَسی مثلاً یو سړی چې عادت یې داوی چې د سپیدو څخه بیا تر ماښام پورې روژه ی نه خوړی وهکذا لکن روژی ته یې فکر هم نه وي، او اهل د روژې هغه څوک دی چې په ده کې دری شرطه د صحت د روژې موجود وي. چې اسلام دی، او پاک والی د ښځې دی په حیض او نفاس څخه او بل نیت دی. او بل علاوه پر هغو درو علم بر لزي پر فرضیت د روژې په دغه میاشت کې. که په دار حرب کې وو او که په دار اسلام کې وو نو دار اسلام یې په ځای کې د علم د وجوب ولاړ دی، که څه هم دی علم پر وجوب د روژې نه لري:

**مسئله:** بلوغ شرط نه دی، ولې چې روژه د نابالغ هم صحیح ده، او خدای ثواب ورکوي **مسئله:** که سړی نیت د روژې خوړ کړي مگر بیا بیهوښه سو تر ماښام پورې روژه یې صحیح ده. او که سړی پسله نیت د روژې لیونی سو دغه روژه خو یې صحیح ده چې مصطر د روژې څخه ی صادر نسی. او که داغسې لیونی وو د بلې ورځې روژه یې نه ده صحیح لعدم النیت **مسئله:** ښځه چې د حیض او نفاسه څخه خلاصه سوه مثلاً په شپه کې او غسل یې نه وی کړی نیت د روژې یې صحیح دی کذا فی البحر، ط. **پوښتنه:** چې فقهاوو دا تعریف د صوم ډیر مختصر کړی دی او وائي چې: صوم امساك دی د مفطرات څخه دی د خدای په امر خدای په خپل وخت کې» قال المصنف:

**وَسَبَبُ وُجُوبِ رَمَضَانَ شُهُودُ جُزْءٍ** او سبب د فرضیت د روژو د رمضان د میاشتی حاضر ېدل د یو جزء د میاشتی، یعنی چې صالح د روژې وي یعنی د سپیدو څخه بیا د لمر تر زوال پورې.

**سوال:** یو کښتني چې بالغ سی په مابین کې د میاشتی د روژې نو ده ته خو شهود د جزء صالح للصوم پیدا سو نو پرده باندې باید قضاء د تیرو سوو ورځو هم لازمه سی

**جواب:** په تیرو سوو ورځو کې خو پر ده کې شرط د وجوب نه وو موجود نو قضاء پرې نسته» بحر ط. **پوښتنه**، چې په جزء صالح سره شپه وَوَته او مابعد الزوال وَوَتي، ولې دغه دوه صالح د روژې نه دي، او دا مذهب د فخر الاسلام علی البزدوی





دی، او شمس الائمة السرخسی وائي چې سبب مطلق وخت دی د دغې میاشتی، قال المصنف:

**وَكُلُّ يَوْمٍ مِنْهُ سَبَبٌ لِأَدَائِهِ** یعنې سبب د وجوب د اداء د دغې ورځې ولې چې ورځې خو سره متصلې نه دي په مابین کې د ورځو شپې ستته، لکن په دی یو ه سَه. چې سبب د وجوب د روژې د هرې ورځې نه تولې ورځې، ولې سبب خو تر سبب مخروی نو باید د هرې ورځې جزء اول دی د هرې ورځې وي دابله ورځ ونه سي،

**مسئله** که یو سړی په اوله شپه کې د میاشتی د روژې پرسد وو. او بیا تر سپیده د مخه لیونی سو، او پسله میاشتی د روژې پر سد سو، او یا په اخیره ورځ بعد الزوال پر سد سو نو پر قول د شمس الائمة السرخسی د تولې میاشتی د روژو قضاء پر لازمه ده، ولې چې ده خو مطلق جزء د میاشتی د روژې یعنی اوله شپه په صحت کې ونیوله. او پر قول د فخر الاسلام قضاء د هیڅ ورځی پر ی نسته، ولې چې ده حو جزء صالح د روژې په میاشت کې په صحت کې نه دی نیولی، ومعنی والاقول د فخر الاسلام صحیح بولي وعلیه الفتوی کما فی المجتبی والنهر والدرایه وصححه غیر واحد من الفقهاء وهو الحق کما فی العنایه. **مسئله:** که څوك بالغ سو او یا کافر وو مسلمان سو په مابین کې د میاشتی د روژې نو بیا نه روژه پر فرض دی او د تیرو سوو ورځو روژې پر فرض نه دی، قال المصنف:

**وَهُوَ فَرْضُ عَيْنٍ أَدَاءً وَقَضَاءً عَلَى مَنِ اجْتَمَعَ فِيهِ أَرْبَعَةُ**

او روژه فرض عین ده پر هغه چا چې په هغه کې دا څلور شیان موجود وي. اسلام، پر کافر روژه

**أَشْيَاءٍ اَلْإِسْلَامُ وَالْعَقْلُ وَالْبُلُوغُ وَالْعِلْمُ بِالْوُجُوبِ**

فرض نه ده، عقل، پر لیونی روژه فرض نه ده، بلوغ، پر کوچنی چې بالغ نه وي روژه فرض نه ده

**لِمَنْ أَسْلَمَ بِدَارِ الْحَرْبِ أَوِ الْكَوْنُ بِدَارِ الْإِسْلَامِ**

اوبل به علم بالفعل لري په فرضيت سره د روژی هغه څوک چې مسلمان سی په دار الحرب کی، او صرف بود و باش دده په دار اسلام کی کافی دی دپاره د فرضیت د روژی پر ده که څه هم دی یه په فرضیت یه خبر نه وي» قال المصنف:

## وَيُشْتَرَطُ لِوُجُوْبِ اَدَائِهِ الصِّحَّةُ مِنْ مَّرَضٍ

او شرط دی د واجب والی د اداء لپاره جوړوالی د اسی مرض څخه چې سړی روژه نه سی ورسره نیولای یعنی د جهت څخه د مرض پر تکلیف وی روژه نیول **پوهسه** چې مطلق مرض مراد نه دی ولې چې غالباً انسان دیوڅه مرض څخه خالی نه وي، قال الله تعالیٰ: فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ الاية، قال المصنف:

## وَحَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَالْاِقَامَةُ وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّةِ اَدَائِهِ

او د غړ تګه شرط دی خالی والی د بنځی د حیض او نفاس څخه کاه، او بل شرط د وجوب الاداء مقیم والی د سړی دی یعنی چې مسافر به نه وی لما تلونا من الآية، او شرط دی دپاره د صحت د اداء د روژی» **پوهسه**: چې مراد د اداء څخه نفس عمل د روژی تا چې قضاء ته هم شامله سي، ولې د صحت د قضاء دپاره هم دا غړ شرطونه دي» قال المصنف:

## ثَلَاثَةٌ اَلنِّيَّةُ

دری دی اول نیت دی، وفي المراقي: في وقتها لكل يوم،

**فائده**: صاحب هدایه وائی چې شهود د اول جزء د میاشتی د روژی سبب دی د ټولو روژو د دغی میاشتی، ثم كل يوم سبب لصومه ولا منافاة بينهما، لکن امام طحطاوی پر دی خبره سوال لری دده په حاشیه کی وګوری، قال

## وَالْخُلُوُّ عَمَّا يُنَافِيْهِ مِنْ حَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَعَمَّا يُفْسِدُهُ

او خالی به وی روژه د هغه شی څخه چې منافی ده روژی وی چې حیض او نفاس دی، ولې چې سره د حیض او نفاسه روژه نه اداءً او نه قضاءً صحیح ده، او د غړ نګ به روژه خالی وی د فاسد وونکي





څخه د روژی لکه خوړلـ او جماع وغیره، قال المصنف:

## وَلَا يُشْتَرَطُ الْخُلُوُّ عَنِ الْجَنَابَةِ

او شرط نه دی خالی والی د روژی د جنابت څخه یعنی که سړی د شپې جماع مثلاً کړی وی او سپیدی پر او چاودی روژه یه صحیح ده، او یا د ورځی بیده وو په خوب کی شیطان بازی ورکړه روژه یه صحیح ده، ولې چې ازاله د جنابت خو ممکنه ده، بخلاف الحيض والنفاس والمفسد» قال المصنف:

## وَرُكْنُهُ الْكَفُّ عَنْ قَضَاءِ شَهْوَتَيِ الْبَطْنِ وَالْفَرْجِ وَمَا اُلْحِقَ بِهِمَا

او رکن د روژی ځان ساتل دی د پوره کولو د خواهش د نس او د فرج که نروی او که ښځه، او چې ملحق وی په نس او فرج سره لکه چې وروسته به راسي، إن شاء الله: قال

## وَحُكْمُهُ سُقُوْطُ الْوَاجِبِ عَنِ الذِّمَّةِ وَالثَّوَابُ فِي الْاٰخِرَةِ

او حکم د روژی یعنی اثر مرتب پر روژی نیولو که فرضی وی او که نفلی **وَاللّٰهُ اَعْلَمُ** ساقط والی د واجب دی یعنی که د طرفه څخه د خدائ واجب وي لکه میاشت د روژی او که خودی د بنده د خوا واجب وی لکه نذری روژه، یا نفلی چې شروع یه وکړی او بل حکم یه ثواب دی په اخرت کی، **درویش والئ** چې د شنبی په شپه د شعبان د میاشتی پر ۲۵ نېټه تخمیناً ازبکانو او تاجکانو د مزار شریف ښار په کومک د امریکایانو د طالبانو څخه پس له یوی هفتی سخت جنګ زمینی او بمباری د امریکایانو څخه قبضه پر وکړه» انا لله وانا اليه راجعون ط ۱۴۲۲ھ

---

# فَصْلٌ فِیْ صِفَةِ الصَّوْمِ وَتَقْسِیْمِهٖ

دا فصل دی په بیان کی د صفت د روژی یعنی فرض دیا واجب وغیرهما، او په بیان کی د تقسیم د روژی. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## یَنْقَسِمُ الصَّوْمُ اِلٰی سِتَّةِ اَقْسَامٍ

روژه ویشل کیږی و شپږو قسمو ته. **فَائِدَه**: مصنف د غه اقسام د مخه وارجمل ذکر کړه او اوس به تفصیلاً ذکر کوی، ولی چی تفصیل بعد الاجمال اوقع دی په زړه کی بنه واقع کیږی: لما قال العارف الجامیؒ:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ؛ بامیدی رسد امیدواری؛ وَقَد بَیْن سرذ الک فی المطول،

چه شئ چی مجمل ذکر سي او سړی پوره په پوه نه سي، نو په زړه کی شوق او انتظار ته یی پوهید وپید اکیږی. او په دی پسی هم زیار کا ږي، والعلم الحاصل بعد الشوق والانتظار والطلب والتعب الذ واعظم وقوعًا فی القلب وادفع لالم الطلب والتعب بعد تحصیله. قال المصنفؒ:

## فَرْضٌ وَوَاجِبٌ وَمَسْنُوْنٌ وَمَنْدُوْبٌ وَنَفْلٌ وَمَکْرُوْهٌ

یعنی یو شپږم فرض عین روژه ده لکه روژه د میاشتی د روژی، او واجب، سنت، مستحب، نفل او مکروه ده. **پوه سه**: چی فرض او واجب هر یو دوه قسمه دي. یو معین فرض: لکه اداء د صوم رمضان، او بل غیر معین فرض لکه قضاء د فرضی روژو، او نذر معین چی مثلاً سړی ووائی چی پر ما د میاشتی د وړځی روژه نذر ده، نو دا واجب معین دی، او که سړی ووائی چی پر ما یوه روژه نذر ده دا واجب غیر معین دی، نو په دی ډول اقسام د روژی اته (۸) سوه، قَالَ

## اَمَّا الْفَرْضُ فَهُوَ صَوْمُ رَمَضَانَ اَدَاءً وَقَضَاءً وَصَوْمُ الْکَفَّارَاتِ

هرڅه چی روژه ده چی قسم اول وو هغه روژه د میاشتی د روژی ده که اداء وی چی فرض معین وی او که قضاء وی چی فرض غیر معین دی، لکه روژی د کفارت ظهار چی په سورة مجادله کی





ذکر سوی دی، یا روژی د قتل خطاء چی په سورة النساء کی ذکر سوی دی، او روژی د کفارت د یمین چی په سورة مائده کی ذکر سوی دی، او روژی د فدیة الصید یا روژی د محذور الاحرام لکه چی سر وخریي بیله عذره. نو په دی دوو کفارتو کی که څه هم سړی مخیر دی په مابین کی د ذبح الحیوان او اطعام الطعام او صیام نو چی دی روژی مختاره کړي نو هغه روژی فرض گرځی. دا دوی کفاری په سورة البقرة کی ذکر سوی دي، او یا کفارة افطار صوم عمداً بغیر عذر. **فَائِدَه**: روژه د قران او تمتع که څه هم فرض دی لکن هغه صوم الکفارت نه دي بلکه صوم الشکر دي، **فَائِدَه**: صاحب الملتقی صوم الکفارات واجب بولی نو که چیری هغه مذهب صحیح وی نو مراد د فرض څخه فرض عملی دی چی واجب ته هم شامل دی، نو منکر یې کافر نه دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَالْمَنْذُوْرُ فِی الْاَظْهَرِ

او دوهم قسم څخه د فرض د نذر روژی که نذر مطلق وی او که مقید وی په اظهر روایت کی لقوله تعالیٰ: وَلْیُوْفُوْا نُذُوْرَهُمْ - او بعض فقهاء وائی چی صوم منذور واجب دی، نو دی وجهی مصنف اظهر روایه، قَالَ المصنفؒ.

## وَاَمَّا الْوَاجِبُ فَهُوَ قَضَاءُ مَا اَفْسَدَهٗ مِنْ صَوْمِ النَّفْلِ

او هرچی واجب روژه ده هغه قضاء راوړل دی د هغی نفلی روژی چی فاسدیه کړي، **فَائِدَه**: روژه د اعتکاف منذور بیله میاشتی د روژی هم واجب ده لکن لندرة وقوعه لم یذکره المصنفؒ. فلا یرد السوال بعدم صحة الحصر المفهوم من قوله فهو قضاء آه فافهم

قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَاَمَّا الْمَسْنُوْنُ فَهُوَ صَوْمُ عَاشُوْرَاءَ مَعَ الْیَوْمِ التَّاسِعِ

او هرچی سنت روژه ده هغه روژه د لسمی ورځی د محرم د میاشتی سره د نهم ورځی په حدیث شریف کی راغلی دی چی علیه السلام د لسمی ورځی روژه خو نیوله لکن دا سی وویل چی که زه پاته سوم تر بل کاله پوری زه به د نهم روژه هم ونیسم، او په بل حدیث کی راغلی دی

چې د صوم عاشوراء روژه وی زړوی ګنا هونه د تیر کال یعنی محوه کوی ئې، قال المصنف

## وَاَمَّا الْمَنْدُوْبُ فَهُوَصَوْمُ ثَلَاثَةٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ

او مندوب روژی درې (۳) روژی دی په هره میاشت کی. سبب یې دا دی چې حسنه د مسلمان په لس مثله یې ثواب دی او په حدیث شریف کی راغلی دی چې دغه درې (۳) روژی په هره میاشت کی لکه د ټوله عمر روژی په ثواب کی: قَالَ المُصنفُ:

## وَيُنْدَبُ كَوْنُهَا اَيَّامَ الْبِيْضِ وَهِيَ الثَّالِثُ عَشَرَ وَالْخَامِسُ عَشَرَ

او مندوب دی چې درې روژی په میاشت کی دی ایام بیض وی، او هغه دیارلسم[۱۳] او څوارلسم[۱۴] پنځلسم[۱۵] **پوه سه**، چې د غوره ځوته ایام بیض وائی په اعتبار د شپو یعنی ایام لیالها بیض، ولې چې ټوله شپه سپوږمی ولاړه وی، په حدیث کی چې روایت یې ابوداؤد کړی دی داسې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام مونږ امر کولو چې مونږ ایام بیض روژی ونیسو" آه قال المصنف:

## وَصَوْمُ الْاِثْنَيْنِ وَالْخَمِيْسِ وَصَوْمُ سِتٍّ مِّنْ شَوَّالٍ

او مندوب د قسمه څخه دی روژه د دوشنبی او پنجشنبی او شپږ روژې د کښتنی اختر د میاشتی: لقوله علیه الصلوٰة والسلام: چې اعمال د بندګانو ودړ بار ته د رب العزت په دوشنبی او پنجشنبی پیشیږی نو زما دا خوښه ده چې زما عمل عرضیږی او زما روژه وی او په بل حدیث کی راغلی دی چې که چا د میاشتی د روژی روژه او بل ئې ورو سته شپږ روژی د شوال د میاشتی ونیولې دا لکه ټوله عمر چې روژی ونیولی، قَالَ المُصنفُ

## ثُمَّ الْاَفْضَلُ وَصْلُهَا وَقِيْلَ تَفْرِيْقُهَا

بیا نو افضله دا ده چې دغه شپږ روژی دی متصلې ونسی، یعنی بې له وقفې داخل دی دستی پرله پسې ونیسی، لظاهر قوله علیه





الصلوٰة والسلام فاتبعه آه او بعض فقهاء وائی چې افضل یې جلا جلا نیول دی، د پاره د اظهار د مخالفت د اهل کتا بو چې هغه ترڅو بالانفلی روژی دستی نسی. قَالَ المُصنفُ

## وَكُلُّ صَوْمٍ ثَبَتَ طَلَبُهُ وَالْوَعْدُ عَلَيْهِ بِالسُّنَّةِ كَصَوْمِ دَاوٗدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يَصُوْمُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا

او دغه رنګه مندوب ده هر هغه روژه چې طلب یې او وعده د ثواب یې ثابته وی په حدیث نبوی سره لکه روژه د داؤد علیه السلام چې هغه به یوه ورځ روژه نیوله. او بله ورځ به ئې خوړله او دغسی

## وَهُوَ اَفْضَلُ الصِّيَامِ وَاَحَبُّهُ اِلَى اللّٰهِ تَعَالٰى

روژه بهترینه د روژو ده یعنی بیله فرضی روژو او واجب روژو. او دغسی روژه محبوبه د روژو ده په دربار کی د خدای جل جلاله، ولې چې دا سې روژو کی سړی نه عادت کیږی د روژو سره بخلاف صیام الدهر: قَالَ علیه الصلوٰة والسلام احب الصیام الی الله صیام داؤد واحب الصلوٰة الی الله صلوٰة داؤد کان ینام نصفه ای نصف اللیل ویقوم ثلثه وینام سدسه وکان یفطر یومًا ویصوم یومًا، رواه ابوداؤد وغیره من المحدثین، قال المصنف

## وَاَمَّا النَّفْلُ فَهُوَمَا سِوٰى ذٰلِكَ مِمَّا لَمْ يَثْبُتْ كَرَاهَتُهٗ

او هر چې نفل دی یعنی چې پنځم قسم د روژی دی هغه هغه روژه ده چې ما سوا د هغو اقسامو څخه وی چې بیان یې تیر سو لکن مکروه والی یې نه وی ثابت، قَالَ المُصنفُ:

## وَاَمَّا الْمَكْرُوْهُ فَهُوَقِسْمَانِ مَكْرُوْهٌ تَنْزِيْهًا وَمَكْرُوْهٌ تَحْرِيْمًا

او هر څه چې مکروه دی چې شپږم قسم دی د روژی دی هغه دوه قسمه دی یو مکروه تنزیهي دی او بل مکروه تحریمي دی چې حرام ته نژدی دئ"

قـال المصنفؒ **اَلْاَوَّلُ كَصَوْمِ عَاشُوْرَاءَ مُنْفَرِدًا عَنِ التَّاسِعِ**

اول چې مکروه تنزیهی ده نکه د عاشورا یعنی د لسم دورځی د محرم د میاشتی روژه نیول یوائې د نهم دورځی څخه، او د غه رنګه کراهت نشته که یوولسم ورځ روژه ور سره ونیسی۔

**وَالثَّانِیْ صَوْمُ الْعِیْدَیْنِ وَاَیَّامِ التَّشْرِیْقِ** او دوهم قسم یعنی مکروه تحریمی هغه روژه ده دوو اخترو، ولې چې په روژه نیولو کی اعراض دی د میلمستیا څخه د خدائ او د غه رنګه مکروه تحریمی ده روژه دورځو د تشریق چې هغه درې ورځې دی دورځی څخه وروسته ورځې دی، په حدیث شریف کی راغلی دی چې ایام التشریق ورځې د خوراک او چښاک دی۔

**وَكُرِهَ اِفْرَادُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَاِفْرَادُ يَوْمِ السَّبْتِ**

او مکروه ده یوائې روژه نیول دورځې د جمعې په روژه سره، او د غه رنګه مکروه دی یوائې والی دورځې د شنبې په روژه سره، چې د دغو دواړو روژو څخه په حدیث نبوی کی نهی راغلی دی **پوهـنـه**: چې مکروه افراد دی نو که ترجمعې د مخه یوه ورځ روژه ونیسی او یا تر شنبې وروسته یوه روژه ونسی بیا کراهت نشته، او د غه رنګه که د جمعې او د شنبې دواړه ورځې روژه ونسی بیا کراهت نشته۔ **سـوال**: په صحیح حدیث کی طلب دورځې د جمعې د روژې راغلی دی نو بیا څرنګه مکروه کیدای سی **جواب** چې حدیث د نهی وروسته دی نو د حدیث د طلب ناسخ دی، کذا فی شرح الجامع الصغیر للعلامة السیوطیؒ، او په دری کی وائې چې روژه دورځې د جمعې مندوب ده، کذا قال الامام الطحطاویؒ والمعتمد ماههنا۔ قـال المصنفؒ:

**وَكُرِهَ صَوْمُ يَوْمِ النَّيْرُوْزِ وَالْمِهْرَجَانِ** او مکروه ده روژه د نوروز چې اوله ورځ د پسرلی ده د شمسی کال، او د غه رنګه مکروه روژه دورځې د مهرجان چې د منی اوله





ورځ ده په حساب شمسی کی، نو نوروز اوله ورځ د اول حمل ده چې لمر په اعتدال ربیعی کی وی او مهرجان اوله ورځ د میزان چې لمر په اعتدال خریفی کی وی، **فـائـده**: د غه دوی (۲) ورځې د آتش پرستانو د فرس د اختر ورځې وی، چې د فارس خلګ که څه هم اوس مسلمانان دی خو بیا هم د دغو ورځو د اختر په توګه درانوی کوی بلکه د نوروز ورځ خو تر شرعی اختر بالا ګڼی وجه د نهی د دغو دوو (۲) روژو څخه داده۔ چې په روژه نیولو کی د دی دوو (۲) ورځو تعظیم دی او په حدیث شریف کی نهی راغلی دی د احترام څخه د دغو دوو ورځو، قـال المصنفؒ

**اِلَّا اَنْ يُّوَافِقَ عَادَتَهٗ** مګر د نوروز یا مهرجان روژه مکروه نه ده که اتفاقاً د ده د عادت سره برابره سوه مثلاً ده به همیشه د یکشنبی مثلاً روژه نیوله او یو کال هغه روژه په نوروز یا مهرجان برابره سوه نو بیا کراهت نشته لعدم العلة المذکورة، قـال المصنفؒ

**وَكُرِهَ صَوْمُ الْوِصَالِ وَلَوْ يَوْمَيْنِ وَهُوَ اَنْ لَّا يُفْطِرَ بَعْدَ**

او مکروه ده د وصال روژه که څه هم دوی ورځې وی۔ او صوم وصال داده چې روژه نه ماتوی وروسته تر

**الْغُرُوْبِ اَصْلًا حَتّٰى يَتَّصِلَ صَوْمُ الْغَدِ بِالْاَمْسِ وَكُرِهَ**

لمر لوید و په هیڅ وخت یعنی د شپې حتی چې جوړنه سی روژه د صبا ورځې د پرون په ورځ پوری

**صَوْمُ الدَّهْرِ** او د غه رنګه مکروه ده صوم الدهر چې ټول کال بیله ایام منهیه و وی په روژه وی، **فـوائـد شـتـی** (۱) **فـائـده**: په عمدة الفتاوی کی وائې چې روژه د نوروز یا د مهرجان که بله روژه ور سره یوځای کړی بیا کراهت نشته **فـائـده**: د غه رنګه مکروه ده صمت الصمت چې روژه ونسی مګر هیڅ چا سره هیڅ خبره نه کوی، بلکه دی دې د خیر خبری کوی، یا چې کار یې وی هغه خبری دی هم کوی لکن داسی روژه هلته مکروه ده چې د روژتی په داسی روژه کی عقیده د ثواب وی، او کی اتفاقاً ګرده ورځ د چا سره خبری نه وکړی بیا کراهت نشته **فـائـده**: صوم وصال علیه

السلام ته مکروه نه وه کما ورد فی حدیث رواه البخاری **فائده** نجئ میره چې پرکور وی دا به نفلی روژه بیله اجازی دمیره نه نسی، او هر څه چې فرضی روژه ده که اداء وی او که قضاء وی د میره اجازی ته ضرورت نشته» قال المصنف:

# فَصْلٌ فِيمَا يُشْتَرَطُ تَبْيِيتُ النِّيَّةِ وَتَعْيِينُهَا وَمَا لَا يُشْتَرَطُ

دا فصل دی په بیان کی د هغو روژو چې د شپې نیت په کښې شرط وی او تعیین د منوی روژی، او په بیان کی د هغو روژو چې د شپې نیت او تعیین په کښې شرط نه دی. قال المصنف:

## أَمَّا الْقِسْمُ الَّذِي لَا يُشْتَرَطُ فِيهِ تَعْيِينُ النِّيَّةِ وَلَا تَبْيِيتُهَا

او هر چه هغه قسم دی چې په هغه قسم کی تعیین د نیت شرط نه دی او نه د شپې نیت غواړی

**فائده**: مصنف په عنوان کی د» مایشترط » د مخه کړی د جهت د دی چې هغو وجودی دی شرافت لری تر عدمی» او په تفصیل ما لا یشترط » د مخه کی یو د دی جهته چې د دی اقسام لږ دی، او بل دا قسم شرافت لری چې اداء رمضان دوه قسم دی» قال المصنف:

## فَهُوَ أَدَاءُ رَمَضَانَ وَالنَّذْرُ الْمُعَيَّنُ زَمَانُهُ، وَالنَّفْلُ

هغه ادائی روژه ده د میاشتی د روژی او اداء د کول دی د هغه نذر چې زمانه یې معین وی، لکه چې یو سړی ووائی چې پر ما یه نذر روژه د گشینبې د ورځې دری هفتی او بل نفلی روژه ده» قال المصنف:

## فَيَصِحُّ بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ إِلَى مَا قَبْلَ نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى الْأَصَحِّ

نو صحیح دی هر یو د غو د ۳ و روژو څخه په نیت سره د شپې څخه تر مخه د نیمی ورځې په صحیح مذهب

**پوهسه**: چې مراد د نفلی روژی څخه دا دی چې فرض او واجب نه وی نو که سنت وی او





که مندوب وی او که مکروه کما مرّ **مسئله** که سړی تر غروب د لمر د مخه د صباد ورځې د روژی نیت وکړی نو د غه نیت نه دی صحیح» رد» **فائده**: افضله دا ده چې د دغو د ۳ و روژو نیت معین یعنی اداء رمضان یا صوم منذور معین یا نفل د شپې څخه وکړی **پوهسه**: چې د نیت معنی دا ده چې قصد جازم وکړی چې زه صبا روژه نیسم **فرعه**: که سړی داسی نیت وکړی که صبا زه فلانی سړی میلمه کړم نو روژه نه نسم او کی نه کړم میلمه نو زما روژه ده. په داسی نیت سره روژه نه ده صحیح ولی چې دی جازم نه دی **مسئله** که سړی سحار کړی نو ئی نیت د روژی نیولو د لودی او نه ئی د خوړلو او په دی هم خبر وو چې صبا روژه ده، په دغه علم قدر سره دی روژاتی نه گرځي» ط **مسئله**: که سړی پیشلمی وکړی او د ده غالب گمان دا وو چې سفیدی نه دی چاودلی نو که دی په سفید و پوهیدی روژه یه صحیح ده او که نه پوهیدی نو باید پیشلمی و نه کړی **مسئله**: که سړی چرگ د لودی چې تمیک د پیشلمی پر وخت بی اذان کاوه بعض مشائخ وائي چې د چرگ اذان ته اعتبار نشته» لکن په فتاوا هندیه یعنی فتاوی عالمگیریه کی وائی که سړی دا چرگ تجربه کړی وو» چې پر وخت برابرئی اذان کاوه نو ده ته د چرگ پر اذان اعتماد روادی»

**فائده**: فی المراقی، نسی خالی کیدای مسلمان د نیت او قصد څخه د روژی، په شپو کی د ده د میاشتی د روژی، مگر نه نادر سړی چې یا فاسق معلنا وي، او یا تر غروب الشمس د مخه بیده سی تر سپیدو پوری، حتی چې فقهاء وائی چې پیشلمی په روژه بس نیت دی، د خولی نیت خو هیڅ نه دی لازم،

**سوال**: په حدیث شریف کی راغلی دی چې روژه نشته هغه چا لره چې د شپې نیت و نه کړی **جواب** دا حدیث محمول پر نفی د ه کمال دی نه د ه جواز **پوهسه** چې په قدوری کی داسی عبارت واقع دی» اجزئته النیة مابینه وبین الزوال» اه او مصنف ما قبل نصف النهار وایه، او په دی کی شک نشته چې نصف نهار شرعي څو تر زوال الشمس د مخه ده، نو په اصح ویلو کی رد پر قدوری وکړی»

**فـائِدَة**: دليل دصحت د نيت د روژی ترنصف النهار پوری دادی چی روژه يو عبادت ممنده واحده دی، نوپه اکثرو اجزاؤ کی د ورځی نيت کافی دی، نو ما قبل ځنی د نصف النهار بيا ترغروب پوری ډيره حصه دورځی ده.. **پـوه سـه** چی د مصنف عبارت د جامع الصغير سره برابر دی » قـال المصنف:

## وَنِصْفُ النَّهَارِ مِنْ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلٰى وَقْتِ الضَّحْوَةِ الْكُبْرٰى

او نصف نهار يعنی په شرع شريفه کی دوخت ځنی در اختود سپيده و بيا تر وخت پوری د پاخه ځاښت، که څه هم نهاره په لغت او رياضی ووی د طلوع الشمس ځنی بيا ترلويد و د لمر ده، چی نصف النهار په استواء يعنی تر زوال د ځه پوره کيږی، فاعرف الفرق، قـال المصنف:

## وَيَصِحُّ بِمُطْلَقِ النِّيَّةِ وَبِنِيَّةِ النَّفْلِ وَلَوْكَانَ مُسَافِرًا

او صحيح کيږی يعنی درې سره قسمه روژه، چی فرض روژه ده، نذر معين دی، او نفلی روژه ده، په

## أَوْمَرِيْضًا فِى الْأَصَحِّ

مطلق نيت سره يعنی چی تخصيص د فرضی روژی، يا نذری روژی يا نفلی روژی نه وی ورسره، او د غه رنګه درې سره روادی په نيت د نفلی روژی، که څه هم سړی مسافر يا مريض وی په اصح روايت کی، او دا مذهب دی د فخر الاسلام علی البزدوی او د شمس الائمة السرخسی، دليل يې دادی چی مسافر او مريض ته چی روژه رواکړه سوی وه په سبب د تکليف پر دوی، نو چی دوی دا تکليف پر سر واخستی او روژه يې ونيوله نو دوی ګويا عذر ونه درلودی، فيقع عن صوم الفرض »

**پـوښتـنـه**: دی سړی خو د روژی د نيت سره د نفلی قيد زيات کړی دی نو بايد نفل سی ولی چی دوی ته چی خوراک وغيره اجازه په سبب د عذر د سفر يا مرض سته، نو نفل بايد په طريق اولی وی، ته رواوی لکه چی بعض فقهاوو هم پر دغه عقيده دي **جواب** زيادت د قيد د نفليت لغوی دی لما مر انفًا چی دوی پر حکم کی د "من لا عذر له" دی "

**فـائِـدَه**: په مريض کی چی روژه ونسی په نيت د نفلو يا د واجب اخر دری قوله دي





(۱) يو دا قول دی چی مصنف اصح ګڼلی دی چی روژه د رمضان ځنی د نيت د نفلو يا واجب اخر لغوه دی کما مر قـاله المصنف تبعًا لفخر الاسلام وشمس الائمة: او (۲) دوهم قول دادی چی روژه يې د "ما نوی" ځنی ده يعنی نفل يا بل واجب، او هم دا مذهب مختار د صاحب هدايه دی، او د نورو ډيرو مشا يخو حتی بعض علماء وائی چی دا ظاهر المذهب د امام اعظم دی، او (۳) دريم قول تفصيل دی په مرض کی يعنی که دا سی مريض وو چی روژی تاوان ورته کاوه په قول د طبيبا نو مګر سره د هغه مرض روژه ونيول په نيت د نفلو وغيره نو روژه يې د "ما نوی" ځنی واقع کيږی او که روژی تاوان نه ورته کاوه لکه " سوء الهضم، نو روژه يې د رمضان ځنی ده " بحر

قـال المصنف

## وَيَصِحُّ أَدَاءُ رَمَضَانَ بِنِيَّةِ وَاجِبٍ اٰخَرَ لِمَنْ كَانَ

او صحيح ده اداء د روژی د مياشتی د روژی په نيت د بل واجب لکه

## صَحِيحًا مُقِيْمًا

کفارة يمين يا منذور مطلق هغه چا لره چی دی په صورت جوړ هم وی او مقيم وی، ولی چی ورځی د روژی د مياشتی معيار د فرضی روژو دی نو په خطاء فی الوصف سره هم فرضی روژه ده، قـال المصنف:

## بِخِلَافِ الْمُسَافِرِ فَإِنَّهُ يَقَعُ عَمَّا نَوَاهُ مِنَ الْوَاجِبِ الْاٰخَرِ

او مخالف حکم دی د مسافر چی نيت د واجب اخر وکړی په مياشت کی د روژی، چی هغه روژه د "ما نوی" ځنی چی واجب اخر دی واقع کيږی، او دا هم مذهب دی د امام اعظم او يارانو چی د فرضی روژی د رمضان کيږی" والدلائل للمذهبين فی المبسوطات"

قـال المصنف

## وَاخْتَلَفَ التَّرْجِيْحُ فِى الْمَرِيْضِ إِذَا نَوٰى وَاجِبًا اٰخَرَ فِى رَمَضَانَ

او اختلاف دی د ترجيح په مريض کی چی روژه په نيت د واجب اخر ونسی په مياشت کی د روژی يعنی بعض فقهاء ترجيح ورکوی ته چی روژه د مريض د "ما نوی" ځنی ده، او بعض فقهاء وائی چی روژه يې د رمضان ځنی واقع کيږی"

وقد مر بیانه، قال المصنف:

## وَلَا يَصِحُّ الْمَنْذُوْرُ الْمُعَيَّنُ وَقْتُهُ وَزَمَانُهُ بِنِيَّةِ وَاجِبٍ

او نه صحیح کیږي یعني د ذمې څخه د ناذر نذر نه ساقطیږي هغه منذور چې ناذر په وقت معین کړی وي

## اٰخَرَ بَلْ يَقَعُ عَمَّا نَوَاهُ مِنَ الْوَاجِبِ فِيْهِ

لکه چې ویلي ئې وي چې د چهارشنبې روژه د دې هفتې پر ما نذر ده، په نیت د بل واجب لکه کفارة الیمین مثلاً بلکه د هغه ورځ روژه چې سړي نذر کړې وه ده خو و نیوله لکن په نیت د بل واجب، نو د هغه روژه د ده هغه روژه ده چې ده نیت کړېده چې هغه واجب اخر دی، په هغه ورځ کې چې ده په روژه نذر کړې، حاصل دا چې د نذري روژې به قضا راوړي **پوهه سه:** چې په دې مسئله کې اختلاف د روایاتو نسته، **مسئله** که ناذر معین په هغه ورځ د نفلي روژې نیت وکړي یا د مطلق روژې نیت وکړي بیا په د هغه روژه د منذور څخه واقع کیږي، نو د دې سببه مصنف بنیة واجب اٰخر ووایه، قال المصنف:

## وَاَمَّا الْقِسْمُ الثَّانِيْ وَهُوَ مَا يَشْتَرِطُ فِيْهِ تَعْيِيْنُ النِّيَّةِ وَتَبْيِيْتُهَا

او هر څه چې دوهم قسم دی چې په هغه کې شرط دی تعیین د نیت یعني چې فلانۍ روژه نیسم، او د هغه شرط تعیین دی نیت د روژې په شپه کې، قال المصنف:

## فَهُوَ قَضَاءُ رَمَضَانَ وَقَضَاءُ مَا اَفْسَدَهُ مِنْ نَفْلٍ وَصَوْمُ

او هر څه چې دوهم قسم دی چې په هغه کې تعیین د نیت غواړي آه هغه قضائي روژه ده میاشتې

## الْكَفَّارَاتِ بِاَنْوَاعِهَا وَالْمَنْذُوْرُ الْمُطْلَقُ كَقَوْلِهِ اِنْ شَفَى

د روژې او د هغه رنګه قضاء د اوږه د هغې روژې چې نفلي ده نیولې وه مګر فاسده یې کړه، او د هغه رنګه

## اللهُ مَرِيْضِيْ فَعَلَيَّ صَوْمُ يَوْمٍ فَحَصَلَ الشِّفَاءُ

روژې د کفارو





په ټولو اقسامو سره لکه کفارة الیمین یا صوم تمتع ونحوها، او د هغه رنګه دی نذر مطلق لکه یو سړي چې ووائې که زما مریض خدای پاک روغ جوړ کړي نو پر ما یوه ورځ روژه نذر ده او مریض هم جوړ سو، درویش وائي چې د دې ټولو وجه دا ده چې د دغو روژو د پاره په شرع شریف کښې ورځ نه ده ټاکل سوې، نو تعیین د روژې د روژ تې پر غاړه دی.

## مُهِمَّه

په ټولو اقسامو کې د روژو کې د شپې نیت د روژې وکې د صبا د پاره او بیرته د هغه څخه یې رجوع وکړه چې نه ئې نیسم، صبا په زړه نیت دی صائم نسي ګرځیدای، ولې هغه نیت خو یې رجوع سره مات سو، نو کې د نفلي روژې د نیت څخه رجوع وکړه په شپه خو نه پر ده قضاء سته او نه ګناه، او که د فرضي روژې د نیت څخه ئې رجوع وکړه صرف قضاء باندې سته، او کې پسله رجوع یې نیت بیرته نوي کې نو هره روژه چې وه هغه روژه یې صحیح ده او که یو سړي پسله نیت قلبي دا سې وویله، اَصُوْمُ غَدًا اِنْ شَآءَ اللهُ، نیت یې نه باطلیږي، ولې ده اِنْ شَاءَ اللهُ ویلو سره خو ده مقصد طلب د توفیق الهي دی وبس، ولې چې په ان شاء الله ویلو سره څخه **مسئله**: که چا په شپه نیت تلفظ باطل سو نیت خو عمل د زړه دی، بحر رائق» د صبا روژې وکړي وده نه خوړل جماع وغیره روا دی او دا رجوع د نیت څخه نه ګڼل کیږي بلکه هغه سابق نیت یې پر ځای دی تجدید ته د نیت هم ضرورت نسته، علامه ملا مسکین:

# فَصلٌ فِيمَا يَثبُتُ بِهِ الهِلَالُ وَفِي صَومِ يَومِ الشَّكِّ وَغَيرِه

دا فصل دی په بیان کی د هغه شی چی په هغه سره لیدل د میاشتی ثابتیږی یعنی که د روژی وی او که د اختروی او که د نورو میاشتو وی او په بیان کی د شک روژی او نورو نورو احکام.

**مسئله:** واجب کفائی د طلب د میاشتی د برات د پاره د روژی. قال المصنف رح:

## يَثبُتُ رَمَضَانُ بِرُؤيَةِ هِلَالِهِ أَو بِعَدِّ شَعبَانَ ثَلَاثِينَ إِن غُمَّ الهِلَالُ

ثابتیږی میاشت د روژی په لیدلو سره د میاشتی او د غه رنګه ثابتیږی په حساب ولو سره د برات د میاشتی دیرش ۳۰ ورځی، که میاشت د روژی وره که سوه یعنی نه سوه معلومه په سبب د وریځی یا ګرد وغیره: قال عليه الصلوة والسلام: صوموا لرؤيته الهلال وافطروا لرؤيته فان غُمّ عليكم فاكملوا عدة شعبان ثلاثين يوما. ترجمه: تاسی روژی ونسی په لیدلو د میاشتی یعنی د روژی او تاسی روژی ماتوی په سبب د لیدلو د میاشتی یعنی د شوال، او که چیری میاشت د اول د روژی نه سوه معلومه نو تاسی پوره کړی حساب د میاشتی د برات دیرش ورځی.

**درویش وائی:** که په اول کی خو میاشت د روژی معلومه سوه، لکن په اخیر کی وره که سوه نو دی روژی دیرش پوره کړی.

**مسئله:** د غه رنګه واجب کفائی ده طلب د میاشتی د شوال په دیرشمه شپه کی.

**مسئله:** قول نه د نجومیانو او جنتریو اعتبار هسته په شرعی امورو کی. قال المصنف رح:

## وَيَومُ الشَّكِّ هُوَ مَا يَلِي التَّاسِعَ وَالعِشرِينَ مِن شَعبَانَ وَقَد

او د شک ورځ هغه ورځ ده چی په نودیشتم ۲۹ د برات پسی ده او طرف د علم او جهل په سره برابر وی چی

## اِستَوَى فِيهِ طَرَفُ العِلمِ وَالجَهلِ بِأَن غُمَّ الهِلَالُ

دا هم معنی منطقی ده د شک، په دی سبب چی میاشت د روژی نه سوه معلومه یا په سبب د وریځی





یا ګرد یا دود، یا دیره تاریکه وه **درویش وائی** چی سبب د برابری د علم او جهل دا دی چی د برات میاشت احتمال د نودیشت ۲۹ ورځو لري، او د دیرشو ورځو هم لري. لقوله عليه الصلوة والسلام الشهر هكذا وهكذا وهكذا د دواړو لاسو په ګوتو یه اشاره کول لکن په اخیروار کی یه ګوته کت کړه چی نودیشت ۲۹ سی، او هكذا هكذا هكذا ګوته یه نه کړه کت چی دیرش ۳۰ شی.

**مسئله:**[2]

څونکه د روژی میاشت لکه نوری میاشتی ګاهی ۳۰ ورځی وی او ګاهی ۲۹ ورځوی نو آیا د غه دوی میاشتی د روژی چی یوه ۳۰ ورځی وی او بله ۲۹ ورځوی په ثواب کی فرق سره لري او که څرنګه

**درویش وائی،** چی ابن حجر العسقلانیؒ په دی موضوع کی داسی تحقیق کړی دی چی په نفس د فضیلت کی خو فرق نه سره لري ولی چی فرض د غه میاشت روژه نیول دی که ۳۰ وی او که ۲۹ وی، او په دی کی هم فرق نه سره لري چی مغفرة د ذنوبو کول کیږی د هغه چا د پاره چی د روژی میاشت روژه ونسی ایمانا واحتسابا، او په دی کی هم فرق نه سره لري چی ټول به جنت ته په هغه دروازه ورځی چی د روژه تیانو د پاره مخصوصه ده چی باب الريان نی یه بولی کما جاء فی الحديث الصحيح، اما په خصوص کی د دی ۳۰ ورځو والا یوه روژه بالا ده او یو بیشلمی یه هم بالا دی او یو روژه مات یه هم بالا دی، نو په دی سبب ۳۰ روژی والا میاشت په ثواب کی بالا ده تر ۲۹ ورځو والا میاشتی د روژی، انتهى مع تفصيل وزيادة من هذا العبد العاصي

په خصوص د غو مذکوره بالا بو کار و ونډا اظاهر لمن تامل ۱۲

قال المصنف رح:

## وَكُرِهَ فِيهِ كُلُّ صَومٍ إِلَّا صَومُ نَفلٍ جَزَمَ بِهِ بِلَا تَرَدُّدٍ

او مکروه ده په ورځ کی د شک هره روژه که فرضی روژه وی یعنی چی په نیت د فرضی روژی د میاشتی یه ونه نسی، او د غه رنګه مکروه ده په د غه

## بَينَهُ وَبَينَ صَومٍ آخَرَ

ورځ قضائی روژه یا واجب روژه، او هم هغه روژه مکروه ده چی نفلی وی لکن په نیت کی تردید وی، او نه ده مکروه نفلی روژه چی د ده یقین وی پر نفلی او په نیت کی داسی تردید نه وی چی که فرضی روژه نه سوه نو نفلی خو به سی او که

مثلاً دوڅی دفرضی روژی حال معلوم سو بیا یه فرضی روژه **پوه سه**، چی نیت ئې خولی کارنږدی چی سړی ووائی چی زه صبا نفلی روژه نسم بلکه نیت د زړه کاردی نوکی په زړه کی تردد وو نوروژه یه مکروه ده، نود کراهت څخه سړی یا په دی خلاصیږی چی د سړی عادت وی چی په هفته کی یکشنبه اودوشنبه مثلاً روژه نیسی هغه دده معتادی روژی پرشک روژه برابری سی. نوروژه نیول یه مکروه نه ده اوپه دی ډول هم دکراهت څخه خلاصیږی چی دری روژی یا ځلور یا بالا د روژی ترمیاشتی دمخه سړی شروع کړی "

**اختلاف** د بعض فقهاء وائی چی دشک روژه نه نیول افضل دی، ولی چی بی تردید نیت قلبی ډیر مشکل دی عوام خوڅه کوی بلکه بعض ملایانو ته هم مشکل دی، ددی سببه چی اکثر ملایان په تول کال کی یوه روژه هم نفلی نه نیسی ـ نوپه شک روژه کی څرنګه دی دنفلو بلا تردید قلبی نیت کولای سی، دلیل ددی فقهاوو دادی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم ددی روژی دنیولو څخه نهی کړی دی کمار **درویش وائی** چی زما هم داغه خوښه ده، اوبعض علماء وائی چی روژه نیول یه افضل دی ولی چی حضرت علی کرم الله وجهه اوحضرت عائشی رضی الله تعالی عنها دغه روژه نیوله • والجواب انه لاینبغی لاحد ان یقیس نفسه المتردد علی اصحابه، قال المصنف:

# وَاِنْ ظَهَرَ اَنَّهٗ مِنْ رَمَضَانَ اَجْزَءَ عَنْهُ مَا صَامَهٗ

اوکه چیری ښکاره سوه چی دغه دروژی دمیاشتی ده یعنی د وړځی خبرصحیح راغلی نو دغه سړی چی په دغه ورځ یه نفلی روژه نیولی ده دفرضی روژی کفایت کوی، قال المصنف:

# وَاِنْ رَدَّدَ فِيْهِ بَيْنَ صِيَامٍ وَفِطْرٍ لَا يَكُوْنُ صَائِمًا

اوکه سړی تردید وکړی په مابین کی د روژی نیولو اوخوړلو مثلاً دا یه نیت وو که روژه سوه خوزما یه روژه اوکه روژه نه سوه زه بی خورم نو په داسی نیت دی روژه اتی نه ګڼڅی، یعنی که صبا ترضحوة الکبری وروسته معلومه سوه چی روژه ده ددغه سړی روژه نه ده صحیح





قال المصنف

# وَكُرِهَ صَوْمُ يَوْمٍ اَوْ يَوْمَيْنِ مِنْ اٰخِرِ شَعْبَانَ وَلَا يُكْرَهُ مَا فَوْقَهُمَا

اومکروه ګڼل سوی ده یوه ورځ روژه اویا دوی ورځی روژه داخیره څخه دبرات دمیاشتی اومکروه نه ده بالاتردوو ورځو لقوله علیه الصلوٰة والسلام: لَا تَقَدَّمُوا الشَّهْرَ بِيَوْمٍ وَلَا يَوْمَيْنِ، متفق علیه مره اوامام شافعیؒ وائی چی دبرات میاشت چی نیمی ته ورسیږی بیا بله روژه مکروه ده بیله فرضی روژی، قال المصنف:

# وَيَاْمُرُ الْمُفْتِي الْعَامَّةَ بِالتَّلَوُّمِ يَوْمَ الشَّكِّ ثُمَّ يَاْمُرُ بِالْاِفْطَارِ اِذَا ذَهَبَ وَقْتُ النِّيَّةِ وَلَمْ يَتَعَيَّنِ الْحَالُ

اوامرکوی دی مفتی دمحکمه شرعیه عام خلق په انتظار سره دحال د روژی یعنی بیله نیته د روژی بلکه دخوراک وغیره څخه پرهیز وکړی په ورځ کی دشک یعنی تر یا خه ثابت یوری اود امر د مفتی چی په بازارو کی دی یوه ورځ دمخه اوپرمنارو باندی اعلانونه وکړي، اوبیا دی مفتی امر وکړي خلکوته چی اوس نو خوراک وغیره شروع کړي چی وخت دنیت تیرسی چی ضحوة الکبری وه، اود روژی حال نه وی معلوم سوی **فائده**: ولی دا امر د مفتی وظیفه ده دقاضی نه ده **جواب** قاضی خو صرف حکم ورکوونکی دی فتوی خود مفتی کار دی ، قال المصنف:

# وَيَصُوْمُ فِيْهِ الْمُفْتِي وَالْقَاضِيْ وَمَنْ كَانَ مِنَ الْخَوَاصِّ

او روژه دی ونسی په ورځ دشک کی مفتی اوقاضی اوهغه خلک چی هغه دخواصو بندګانو څخه د خدای وي، لکن دا روژه به په پټه سره نسی چی عوام په خبر نسی، ولی عوام بیا اعتراض کوي چی وګوری مونږ ته وائی چی روژه مه نسی او ځپله یه نسی، قال المصنف:

# وَهُوَ مَنْ يَتَمَكَّنُ مِنْ ضَبْطِ نَفْسِهٖ عَنِ التَّرْدِيْدِ فِي النِّيَّةِ

**وَمُلَاحَظَةُ كَوْنِهِ عَنِ الْفَرْضِ** اوخاص بنده دخدائ هغه سړي دي چه ځان ساتلای سی دترديد څخه په نيت کی يعنی د فرضی اونفلی ترمابين، اوهيڅ په زړه کی دانه ورګرځي چی داروژه به دفرضو څخه وه ګرځي يعنی که دمياشتی معلومات وسو، **فَائِدَه:** په اوس زمانه کی په بعضی ملکوکی لکه پاکستان چی شرعی مفتيان نسته، اويامفتيان خووی لکن دا وظيفه نه اجراء کوی، نوداوظيفه دملايانو په غاړه ده چی څنګلومساجدوکی دی عولم په دغه تلوم او انتظار خبر کړي **فَائِدَه** پردغه شرط برابرخاص سړی دي نادردی "فضلا عن المفتی والقاضی: قال العلامة الزمخشري: قضاة زماننا صاروا لصوصًا ؛ عمومًا فی القضايا لا خصوصًا ؛ نخاف منهموالوصالحونا ؛ للصوامن خوا تمنا فصوصًا ؛

**فَائِدَه:** د تلوم فائده په اوسنی زمانه کی چی راديوګانی په بنارو اوقريوکی بلکه په صحرا نشينوکی هم موجود دی، چی دمياشتی خبر پروخت خپره وی" داده "چی ممکنه ده چی دروژی دمياشتی دليد لوخبردی حکومتی منابعوته دشپی رسيدلی وی چی دسحار په خپرونه کی نشرکوی، وسحارۍ خپرونه خوناوختشروع کيږی، **قَالَ الْمُصَنِّفُ**

**وَمَنْ رَأَى هِلَالَ رَمَضَانَ اَوِ الْفِطْرِ وَحْدَهُ وَرُدَّ قَوْلُهُ لَزِمَ الصِّيَامُ** اوکه چا وليدله مياشت د روژی يادکشنی اختريواځی او رد کړه سويعنی دقاضی دخوا قول دده په سبب ديواځی والی يادفسق" نوپرده روژه نيول خولازمه دی اوکه قاضی قول ومنی خوپه طريق اولی، بلا زمه ده. **مَسْئَلَه** که شاهدفاسق وو اوسره دهغه امام ياقاضی قول ومنی اوخلکوته يه امر د روژی ورکړي، نوکه دمخبر اويابوه داهل بلد په له نيت کولو، روژه وخوړله په نيزد عاموشا ئخو کفاره باندی سته، اوبعض فقهاء وائی کفاره باندی نسته، ولی دده خبرپه سبب دفسق خود منلو نه وو اوکه ليدونکی عادل وو اوامام يه اخبار ومانه اواعلان د روژی يه هم وکړي نوکه هرڅوك روژه وخوری کفاره باندی لازمه ده بلاخلاف.

اللهم اغفرلمؤلفه ولكاتبه ولوالديهما ولجميع المؤمنين والمؤمنات





قال المصنف **وَلَا يَجُوْزُ لَهُ الْفِطْرُ بِتَيَقُّنِهِ هِلَالَ شَوَّالٍ** او نه دی روا ودغه سړي ته ماتول د روژی په سبب د تيقن دده چی دا هلال دشوال ده، او فقيه ابوجعفر الطحاوی وائی. چی دغه سړي دی خوراك اوڅښاك اوجماع نه کوی لکن روژه دی فاسده کړي، اوپه روژه نيولوکی دې دثواب الهی خيال نه کوی، ولی خودده په نيزخودغه داختروځ ده اوبعض مشائخ وائی چی دغه سړي دی دی خوراك وغيره کوی لکن په پټه دځکه، نومصنف دغه دواړه مذهبه رد کړه بقوله وَلَا يَجُوز آه **قَالَ الْمُصَنِّفُ**

**وَاِنْ اَفْطَرَ فِي الْوَقْتَيْنِ قَضٰى وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ وَلَوْ** اوکه دی سړي ماته کړه روژه، په دغو دواړو وختوکی يعنی چی ده مياشت دروژی وليدل يواځي مګر دغه

**كَانَ فِطْرُهُ قَبْلَ مَارَدَّهُ الْقَاضِيْ فِي الصَّحِيْحِ** روژه يه ماته کړه اويايه دسوال مياشت وليدل يواځی نوروژه يه وخوړله، نوحکم دادی چی په دواړو صورتوکی دی ديوی روژی قضا راوړي، که څه هم ماتول د روژی دمخه تررد دقاضی وکړه د شاهدی دده پرصحيح روايت، ولی چی ددی سړي ماتول د روژی په سبب دشبهی دی او سره دشبهی کفاره نسته، اوبعض فقهاء وائی چی پردغه سړي په دواړو صورتوکی کفاره سته کی دمخه تررد دقاضی روژه ماته کړه" **قَالَ الْمُصَنِّفُ**:

**وَاِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ مِنْ غَيْمٍ اَوْ غُبَارٍ وَنَحْوِهِ قُبِلَ** اوکه وو په آسمان کی يوعلت يعنی چی مانع وو دتری سپوږمی دليدو څخه يا وريځ وه يا ګرد وو يا مثل دهغه

**خَبَرُ وَاحِدٍ عَدْلٍ اَوْ مَسْتُوْرٍ فِي الصَّحِيْحِ** لکه شبنم يا تموبنی چی ضبات يه بولی په عربی، قبول دی کړي يعنی قاضی دی قبول کړی اخبار ديوه سړی

چې وائې ما میاشت ولیدَله چې داخبر ورکونکی عادل وي، او یا مَستور الحاله وي، یعنی دِهغو او عدالت دِ لئِ به نه وي معلوم، او عدَل هغه سَړي ته وائي چې نیکی ترَبدی ډیري وي، چې جامع تفسیریه دادی ملکة تحمل علی ملازمة التقوی والمروۃ» یعنی یو محکمه قوت دی په مسلمان کې چې هغه قوت دی باعثه کوي پر همیشه لوَب دبیري دخدائ او دغیرت بکاروَ مصنفؒ صحیح وبیَله په مقابل کې د ظاهِر الروایة چې خبرد مستور نه دی مقبول، م ط» قَال

## وَلَوْشَهِدَعَلٰی شَهَادَةِ وَاحِدٍ مِّثْلِهٖ وَلَوْكَانَ اُنْثٰی اَوْرَقِيْقًا

او که چیري شاهدی اداکړه پر شاهدی دیوه سَړي مثل دهغه یعنی هغه هم یو وو او عدل وو یا

## اَوْمَحْدُوْدًا فِیْ قَذْفٍ تَابَ لِرَمَضَانَ

ښځه وي او یا مریٔی مستور وو که څه هم

وي او یا محدود په قذف کې سوي وي او توبه ئې کښلی وي چې داشاهدی په بَاره د روژي وي **مسَئَله** عدل یا مَستور چې میاشت ولیدَله په دغه شپه کې به حاکم ته ورځي او خبر به ورکوي نا چې صبا روژه ونیسي **مسَئَله**، که میاشت پرده ناکه ښځي یعنی ځواني ولیدله و نو داکولای سي چې بیله اجازي دَ ولی ولاړي قاضِی ته خپله شاهدی اداء کړي ولې چې دااخبار پر دی فرض دی، په فرض عین کې د وَلی واجازي ته ضرورت نسته» م»

**سَوَال**: د محدود فی القذف په باره کې ایت مبارکه داسی راغلی دی» وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا **جواب**: محدود فی القذف، چې توبه وکاږی نو خو عَدَل گرځي او دمیاشتی لید لوخبر خو شاهدی نه ده بلکه صرف خَبر دی نو که محدود فی القذف پسله توبې څخه روایت دحدیثو وکړي نو هغه روایت به خو بالاتفاق قبول دی» فاخباره برُؤیة الهلال لرمضان مقبول بالطریق الاولیٰ»

**مسَئَله**: په شاهدی کې پر شاهدی دمیاشتی دلید ونکی یو سړي هم کافی دی، ولې چې په اصل کې چې رویة دهلال رمضان دی یو کافی دی نو په فرعه کې هم یو کافی دی»

**فَائِدَه**: داخبر خاصه ده د روژې دشاهدی په نقل سره ده، ولې چې دا اصلًا





شاهدی نه ده اخبار دی، لکن په اصل شاهدی کې چې دیوه سړي شاهدی نقل کوي دوه نر غواړي یا یو نر دوې ښځې کذا فی بحر الرائق» قَالَ المصنفؒ:

## وَلَا يُشْتَرَطُ لَفْظُ الشَّهَادَةِ وَلَا الدَّعْوٰی

او نه دی شرط د اخبار د رؤیة الهلال دپاره لفظ د» اَشْهَدُ بِاللّٰهِ مثلًا او دغه رنگه نه ده شرط دعوٰی»

**مسَئَله** په اتفاق دفقهاوؒ دمذهب حنیفی الا النادر او په اتفاق دامام شافعیؒ قول ته دنجوم گرانو یا جنتری جوړونکو اعتبار نسته» په باره کې دمیاشتی د روژي نه ابتداءً او نه انتهاءً نقله الامام الطحطاویؒ عن ابن الشحنة» قَالَ المصنفؒ:

## وَشُرِطَ لِهِلَالِ الْفِطْرِ اِنْ كَانَ بِالسَّمَآءِ عِلَّةٌ لَفْظُ الشَّهَادَةِ

او شرط کړل سوی ده ای الشرتہ وکذا سائر الاہلۃ»م» دکوچنی اختر د میاشتی دلید لو دپاره که چیري په اسمان کې علت وو لفظ دشهادت کما مر ذکرها» قَالَ المصنفؒ:

## مِنْ حُرَّيْنِ اَوْحُرٍّ وَّحُرَّتَيْنِ بِلَا دَعْوٰی

مسلمین مکلفین غیر محدودین فی القذفِ

د دوو ازادو نارینه وو څخه او یا یو ازاد نر او دوې ازادې ښځې بیله دعوی کولو» **پوښتنه**، لیدل دمیاشتی دکوچنی اختر خو هم خبر دی نو ولی عدد او حریت او لفظ دشهادت او دا چې شاهدان به محدود فی القذف نه وي، په کښې شرط دی، **واجاب عنه** صاحِب البحرؒ چې په خبر کې دلیدلو دمیاشت دعید الفطر نفع دعبادُ سته چې خولې به وخوري ته خلاصی مې، نو نکه نور حقوق دبندگانو» نو مذکورُ شیان چې په حقوقو کې دبندگانو دشاهدی شرط دی نو دعید الفطر په اخبار کې هم شرط دی

قَالَ المصنفؒ

## وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ بِالسَّمَآءِ عِلَّةٌ فَلَا بُدَّ مِنْ جَمْعٍ عَظِيْمٍ

او که په اسمان کې علت نه وو نو چاره نسته، دلوی جماعت دشاهدی څخه دپاره د روژي او فطر

## لِرَمَضَانَ وَالْفِطْرِ وَمِقْدَارُ الْجَمْعِ الْعَظِيْمِ مُفَوَّضٌ اِلٰی

رَأْيِ الْإِمَامِ فِي الْأَصَحِّ اوانداز د جمع عظیم مفوض وروائی ته دامام یا قاضی دی.

**پُوهَسه**: چی مقدار د جمع کثیر په ظاهر الروایة کی خوښ دی تر اعلی امام ابویوسف وائی چی پنځوس کسه غواړی، اوخلف بن ایوب وائی چی پنځه سوه کسه غواړی اوبعض فقهاء وائی چی ده مسجد جماعت ټول یو یا دوه کسه غواړی او مصنف چی تفویض روائی ته دامام کړی دی دا مذهب دی دامام محمد کذا فی البدائع اوفتح القدیر والاوائی چی حق په دی مسئله کی مذهب دامام محمد دی، قال المصنف:

## وَإِذَا تَمَّ الْعَدَدُ بِشَهَادَةِ فَرْدٍ وَلَمْ يُرَ هِلَالُ الْفِطْرِ

اوکه پوره سو عدد د روژی یعنی ۳۰ روژی په شاهدی سره د یوه سړی یعنی په سرکی د روژی

## وَالسَّمَاءُ مُصْحِيَةٌ لَا يَحِلُّ لَهُمُ الْفِطْرُ

یوه سړی شاهدی دلیدلو د میاشتی ورکړی وه او قاضی دهغه شاهدی منلی وه اوحکم د روژی یه کړی وو، اونه ولیدل سول میاشت دفطر یعنی شوال اوحال داوو چی اسمان هم صاف وو، نو نه ده روا خلکو لره روژه خوړل، اودا هم اتفاقی مسئله ده لکه شمس الائمة السرخسی چی وائی، اودی وائی چی قاضی دی هم هغه شاهد ته دی تعزیر ورکړی چی ولی ده داسی غلطه شاهدی اداکوله" کذافی الدرر، وفی التجنیس اذا لم یرهلال شوال فی الصورة المذکورة خلک دی یوه روژه بله ونیسی لظهور غلط الشاهد اوزیلعی په شرح کی دکنز وائی که آسمان په دغه صورت کی ورېځ ولوده، بیا دی خلک دصباروژی وخوری ولی چی غلطیا دا چول شاهد نه سوه ښکاره اوعدد د روژو پوره هم سو، قال المصنف

## وَاخْتَلَفَ التَّرْجِيحُ فِيمَا إِذَا كَانَ بِشَهَادَةِ عَدْلَيْنِ

او ترجیح د روژی په نیولو کی یا په ماتولو کی اختلاف په کښی دی یعنی دعلماء په هغه صورت کی چی د روژی میاشت په شاهدی د دوو عادلانو ثابته سوی وه او د هغه وخت ټول روژی پوره ۳۰ سوی. او اسمان هم صاف وو لکن سره د هغه د شوال میاشت نه ولیدل سوله"





نو په دی به اوخلاصه اوبزازیه کی وائی چی فطر صحیح دی بلکه لازم دی. ولی چی د دوو شاهدانو ثبات د رمضان داسی دی لکه عیان یعنی لیدل دشی، گویا اوله میاشت گردو خلکو لیدلی وه او په مجموع النوازل کی وائی اوامام اجل سید ناصر الدین په هم تائید کړی دی. چی خلک دی روژه ونسی، ولی چی سره د صاف والی داسمان چی خلکو هلال دشوال نه ولیدل نو دا دلیل دی د سهو داولو شاهدانو" دروغ وائی چی دبنده هم دغه مذهب خوښ دی، د دی سببه چی اسمان صاف وي، نو ولی میاشت نسوه معلومه اوسره د دی چی ظن د هلال شوال نشته اوبنځی ۲۹ اوواړه تولہ دی،

**سوال**: اول شاهدان خو مونږ عادلان فرض کړی وه نو څرنګ دوی په خطا بلل کیږی

**جواب**: عدالت د دوی خو دلیل د دی دی چی دوی په قصد دروغ نه دی ویلی لکن احتمال د سهوی د دوی خو عدالت ته د دوی کم تاوان نه رسوي، قال المصنف

## وَلَا خِلَافَ فِي حِلِّ الْفِطْرِ إِذَا بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ وَلَوْ ثَبَتَ

اوخلاف د فقهاوو نشته په روا والی کی د فطر یعنی چی عدد د روژو پوره سی که چیری په اسمان

## رَمَضَانُ بِشَهَادَةِ الْفَرْدِ وَهِلَالُ الْأَضْحَى كَالْفِطْرِ

کی علت وو که څه هم د روژی میاشت په شاهدی د یوه سړی ثابته سوی وي او میاشت د لوی اختر په حکم کی لکه میاشت د کشنی اختر ده یعنی که علت وو نصاب د شهادت غواړی، او که علت نه وو نو جمع عظیم غواړی، او دا هم ظاهر روایت دی، قال المراقی وهو الاصح لما تعلق به نفع العباد" او د امام اعظم رحمه الله داسی روایت هم راغلی دی چی د لوی اختر میاشت لکه د روژی میاشت په حکم کی یعنی نصاب په کښی شرط نه دی، لکن دا روایت نادر او شاذ دی که څه هم تحفی تصحیح کړیده خو بیا هم فتوی نه ده په روا بلکه اصل مذهب ظاهر الروایت دی کما مر،

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولوالديهما ولجميع المؤمنين ولمن نظر فيه بالانصاف

قـال المصنفؒ **وَيُشْتَرَطُ لِبَقِيَّةِ الْاَهِلَّةِ شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ عَدْلَيْنِ**

اوشرط دی د ثبوت دنورو میاشتو دپاره یعنی که په اسمان کی علت وو، شاهدی ددوو نرو

**اَوْ حُرٍّ وَحُرَّتَيْنِ غَيْرِ مَحْدُوْدِيْنَ فِي الْقَذْفِ**

عادلانو، اویا یو حر نر اود وی ښځې حرې، چې دوی محدود فی القذف هم نه وی، او په اسمان کی علت نه وو نوبیا جمع عظیم شرط ده» ولې چې په نورو میاشتو پورې حقوق د خلګو مربوط لکه پور، و وعدی وغیره نو ځکه د محدود فی القذف شاهدی نه ده پکښې روا کام

**پوښتنه**:

په وړاندی متن کی داسی وویل سوی: وَلَا يُشْتَرَطُ لَفْظُ الشَّهَادَةِ وَلَا الدَّعْوٰى»، د شهادت لفظ خو ظاهر دی، نو پوښتنه دا ده چې د دعوی تصویر څرنګه دی په لیدو کی د میاشتی د روژی چې مصنفؒ وویل چې نه ئې غواړي **جواب** یو سړي طلاق د ماینې یا عتاق د مرئې مثلاً معلق کړځولی وی د روژی د میاشتی په نوی والی سره، نو ښځې یا مرئې دعوه وکړه چې د روژی میاشت نن شپه راننوی سوه او میړه یا مالک ځندی منکر وو نو هغه مُدعی شاهدان تیر کړې چې مونږ میاشت ولیدل، نو په دی شاهدانو سره خو هغه اصلاً هغه دعوی ثابته سوه لکن نوی والی د روژی ضمناً ثابت سو، ولې مجرد دخول د میاشتی بیله وړاند دعوی خو تر حکم د قاضی نه لاندی کیږي، **فـائـده**: د جمع عظیم په شاهدی کی عدالت شرط نه دی بلکه اسلام د مخبرینو هم شرط نه دی «ط» لانه بمنزلة الخبر المتواتر فی غیر الحدیث النبویؐ کالاخبار بالبلدان الخالیة والملوك الماضیة ولا یشترط فی التواتر المذکور اسلام المخبرین کلهم فضلاً عن العدالة» قاله الکمال بنقل «ط» قـال المصنفؒ

**وَاِذَا ثَبَتَ فِيْ مَطْلَعٍ فِطْرٍ لَزِمَ سَائِرَ النَّاسِ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ**

او که ثابته سوه د میاشتی لیده په مطلع کی د یوه وطن، نو لازم ده پر ټولو خلګو منل د





میاشتی په ظاهر مذهب او روایت کی، قـال المصنفؒ

**وَالْمَذْهَبِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى وَاَكْثَرُ الْمَشَائِخِ**

او پر دغه مذهب هم فتوی ده او اکثر مشائخ رحمهم هم پر دغه دی، د دروېش والی چې دا معنا ده ددی قول د فقهاوو او اهل المتون: ان اختلاف المطالع لا اعتبار له، **پوهـسـه** چې مسئله د اختلاف المطالع قدیماً وحدیثاً معرکة الاراء ده **فـائـده**: اختلاف د مطلع یوه بلد او د بل بلد، په یوه میاشت مسافت کی راځي او دا یې اقل درجه ده» جواهر **فـائـده** ثبوت د میاشتی په نیز د غیر لیدونکو په صرف حکایت سره نه کیږي چې یو یا دوه کسان ووائي چې په فلانی بلد کی میاشت ولیدل له. بلکه په دی دول کیږي چې څو کسه شاهدی اداء کړي چې د فلانی بنار قاضی حکم وکړی د میاشتی په لیدو په شاهدی د شاهدانو؛ او یا د شاهدانو شاهدی نقل پر نقل تر دی بلده پورې راورسیږی» او یا د لیدو د میاشتی خبر مشهور سي، لکه په پخوا زمانه چې به قاضی د شاهدانو په شاهدی د میاشتی لیدل منظور کړه، نو په بنار کی به ئې ډېر توفونه وویشتل چې خلګو ته به دا ثابته سوه چې میاشت ولیدل سول، او په قریو کی به د توفکانو ډیر پیرو نه وکړه، او په اوسنی زمانه کی چې دیوه دولت اسلامی راډیو اخبار کی چې په فلانی دولت اسلامی کی میاشت ولیدل سول او قاضیانو هم حکم په وکړی»

**پـوښـتـنـه**: په راډیو کی خبري کوونکی یو سړي دی یا فاسق کما هو الاغلب او عادل، نو د راډیو په وینا څرنګه د میاشتی لیدل ثابتیږي، او سره ددی چې په راډیو ګانو کی خو ډیر دروغ خبرونه هم خپریږی کما یدل علیه التجربة، نو بیا ید څو لکه د راډیو خبر ته په باره کی د میاشتی د روژی یا فطر اعتبار و نه کړي **جـواب**: تا به وویل چې خبر خپروونکی د راډیو یو سړي دی ګاهی فاسق او ګاهی عادل، او ګاهی رښتیا او ګاهی دروغ، لکن په امور دینیه وو کی لکه رمضان، فطر، ذوالحجه، د حکومت اسلامی پر راډیو باندی حکم وی چې په ورته خبرو کی به غلط خبر

نو اخبار د راډیو دیوه دولت اسلامي په منزله د اخبار د ټوله حکومت مسلمه ده هغه هیواد دی
نو ځکه مونږ اخبار د راډیو د اخبار ومشهوره وو ګڼو بوّلو. **مسئله**: که یو وطن والو ته ثابته
سوه چې په فلاني وطن کی یوه ورځ د مخه روژه وه نو پر دوی باندی یوه ورځ دخولی روژی قضاء
لازمه ده بناءً علی ظاهر المذهبؒ مر،

**پوښتنه** چې بعض فقهاءؒ لکه صاحب التجرید وغیره پر دی رأیه دی چې اختلاف مطالعو
اعتبار لري او د یوه مطلع روژه یا فطر د بل مطلع پر خلګو نه دی لازم، دوی وائی چې د مختلفو
بلادو مطالع داسی کیدای سی چې پر یوه بلد لمر زوال وکړي او د ماپښین وخت داخل سی او پر
بل بلد لمر غروب وکړي نو په اولو خلګو د ماپښین لمونځ واجب دی نه د ماښام بلکه د ماښام
لمونځ ورته روا هم نه دی، ولې چې سبب د ماښام د لمانځه چې غروب الشمس دی پر دوی نه دی راغلی
او پر دوهم بلد د ماښام لمونځ واجب دی نه د ماپښین وذالک ظاهرٌ، امام طحطاویؒ دلته یوه
عجیبه خبره کړیده دی وائی چې مذهب د صاحب التجرید اشبه یعنی د صواب سره که څه هم اولی
اصح دی فتدبر، **درویش وائی** چې د عینی ده کلام څخه داسی فهمیږي چې اعتبار اختلاف
لره ده مطالعو سته یعنی خلاف د ظاهر المذهب، دی وائی چې میاشت که د روژي اوکه د بلی
میاشتی وي هلته نري والو ته معلومیږي چې دا د شعاعو څخه د لمر جلا سي، او دا جلا والی مختلف
کیږي په اختلاف د بلدانو د محلی مثلاً کوم بلد چې د مشرق وخوا ته وي هلته سپوږمۍ ولمر ته
ډیره نږدې وي، نو ځکه په سبب شعاعو د لمر دا نه معلومیږي او څرنګه چې لمر د مغرب وخواته
روان وي سپوږمۍ کرار کرار څندی پاته کیږي حتی لمر بیله ډیره ولاړ سي د مغرب پر خوا او سپوږمۍ
۱۲ درجې څندی پاته سی نو رویت د هلال ممکن ګرځي کما تقرر فی کتب الهیئة، لکه طلوع د سپوږمۍ
او غروب د لمر چې هم په دغه ډول مختلف کیږي، او دغه رنګه چې لمر زوال وکړي په مشرق
کی دا نه ده لازمه چې په مغرب کی به هم وخت د زوال وي، بلکه ممکن ده بلکه واقع ده چې یو وخت
دی طلوع الفجر وي دیوه قوم د پاره او هم دا غه وخت دی طلوع الشمس وي د نورو د پاره او
وخت د غروب الشمس دی وي د بعض خلګو د پاره او نصف لیل دی وي د نورو د پاره، وهذا
مثبت فی علم الافلاک والهیئة انتهی قول العینی مع زیادة من در،





**درویش وائی**: چې حوالی د علم الهیئة ضرورت نشته، ولې چې خلګو ته په تجربه ثابته
ده مثلاً څوک چې امریکي ته ټلفون کوي نو د غږ خلګ د دوی د وطن په څا بشت کی ټلفون نه ورکوي
ولې چې پر امریکا یا نو شپه وي او دوی غالباً بیده وي او د غه رنګه د غرمې په وخت کی یا د ماپښین
په وخت کی ټلیفوني تماس د امریکا یا نورو ځنی کولای بلکه دوی به د دوی د وطن په شپه
کی ټلفون ورکوي چې د امریکا یا نورو ځای ورځ سی، وهکذا فی البلاد والاوطان الأخر المختلفة فی
المطالع والمغارب نعم هغه وطنونه چې تر یوی نصف نهار لاندی وي په طلوع او غروب
کی فرق نه سره کوي، نو د دوی تر ما بین یو والی په روژه او فطر کی لازم دی کما لا یخفی علی
ماهري الافلاک والهیئة،

**درویش وائی**: که دا ځای غریب نه وای، او د اشرح د مبتدیانو د پاره نه وای نو ما به دې
مسئلی ته ډیر تفصیل ورکړی وای، فائدة جدیدة کغلطه ده که نه: د د رولیږده د انظریه:

**پوښتنه**: چې کتابونه ټوله وائی چې اول مرتبه چې مطالع په کښی مختلف کیږي په
معلومداره طریقه دیوې میاشتی مسافت دی د پښو په ما بین کی د مشرق او مغرب د دوو ښارو
یا بالا تر هغه چې په اصطلاح دی ته مطالع کلیه وائی، او چې تر دی کم وي په هغو مطالع
کی که څه هم طلوع او غروب څه ناڅه فرق سره کوي، لکن دونه فرق نه سره کوي چې سبب د
اختلاف د لیدو د میاشتی د روژی یا فطر مثلاً دی وګرځي، او دی مطالعو ته په اصطلاح کی
مطالع جزئیه وائی: اذا عرفت هذا نو **پوښتنه** چې په زمانه کی د مجتهد اعظم ابو حنیفةؒ
څرنګه چې وسائل د نقل د خبرو په ما بین کی د شرقي او غربي د ښار و پر پښو منزل وو او یا
پر آسانو یا پر خرو وغیره، نو په هغه زمانه کی خبرونه د نږدی ښار و سره رسیدل یعنی د
مطالعو جزئیه وو حالات چې هغه سبب د اختلاف د مطالعو پر داسی ډول چې یو ځای دی
په واضح توګه میاشت معلومه سی په بل ځای کی نه نو په ورته ځای کی په یوه بلد کی په سبب
د خراب والی د هوا یا د وجود د وریځې میاشت د روژی یا فطر نه ولیدل سی، او په بل بلد
کی چې هوا یه صافه وي او د ریاب ور ترڅی او وریځ هم نه وي میاشت ولیدل سی، او هغه اول بلد
ته یې ور ورسته حال معلوم سی نو که اول بلد والا اول روژه نه وه نیولی نو قضاء یې پر لازمه ده

اودامعنا ده ددی عبارت دفقها وُچې اختلاف دمطالعو اعتبار نه لري یعني پرټولو روژه یا فطرلازم دی، اوهغه عبارت چې په بعضو کتابونو کې دفقهي لیدل کیږي چې دغرب لیدل پرشرق باندی احکامي دینیه لکه روژه اوفطرلازموي مراد عین شرق اوغرب نه دی چې په مابین کې نصف دور دفلك وي بلکه مراد دغه بلاد شرقیه اوغربیه دی چې ذکرشول، اودی مخرجانب مخالف بلکه هیڅ څوك انکار نشي کولای، اوداوس چې وسائل دنقل دخبرودی هرګړی اوګړندی سوي، لکه تلفون، راډیو، تلویزون، انټرنیټ وغیره چې په یوه دقیقه کې مثلاً دغرب احوال وشرق ته رسوي وبالعکس نوبايد اختلاف دمطالعو یعني الکل اعتبار ولري، لکه چې عینيؒ دلمرځو په مسئله کې تمریح په وکړه. داووك فقیردزړه حال، والله اعلم بحقیقة الحال، قـال المصنفؒ:

## وَلَاعِبْرَةَ بِرُؤْيَـةِ الْهِلَالِ نَهَارًا سَوَاءٌ كَانَ قَبْلَ الزَّوَالِ

اواعتبار نشته لیدلو لره دمیاشتي په ورځ کې خواه دالیدل په دمخه ترزوال وي یا وروسته

## اَوْبَعْدَهٗ وَهُوَ لِلَّيْلَةِ الْمُسْتَقْبَلَةِ فِى الْمُخْتَارِ

ترجمه، په دی معنا اعتبار نشته، لیدلو لره د میاشتي په ورځ کې چې خلګ دی دغه ورځ د روژی وبولی یا داختر، فلذا قال فی الخانیة فلایُصَام ولا یفطربـه، نوداهلال دوروسته شپې ګڼل کیږی، په مذهب کې چې مختاره مذهب دی دامام اعظمؒ اوامام محمدؒ په بدائع کې وائي چې امام ابویوسفؒ وائي کې میاشت ترزوال دروسته وليدل نوداميا شت دوروسته شپې ده، اوډلیدلو ورځ ده دروژی نه ده، اوکې میاشت دمخه ترزوال ولیدل هغه میاشت دتیری شپې ده اوورځ د لیدو یه درمضان ورځ ده اوهم پردغه قیاس دی لیدل د میاشتي دکوچنی اخترقبل الزوال اوبعدهٗ" یعني په هغه کې هم دغه اختلاف ستـه،

اللهم اغفر لمؤلفه ولشارحه ولـكاتبه ولجميع المؤمنين والمؤمنات امين امين

خدایه وبخښی مولف اوهم کاتب: لوی ځښتن لره محبوب ده دغائب،





# بَابُ مَا لَا يُفْسِدُ الصَّوْمَ

باب دی په بیان کې دهغو شیانو چې روژی نه فاسدوي.

## وَهُوَ اَرْبَعَةٌ وَعِشْرُوْنَ شَيْئًا مَا لَوْ اَكَلَ اَوْشَرِبَ اَوْجَامَعَ نَاسِيًا

اوهغه خلیروشت شیان دي یود هغو ۲۴ څخه دادی چې صائم خوړلـك وکړي او یاڅښك وکړي یاوطی وکړي یعني یادوه دهغو څخه یادري سره، لکن په هیرې سره د روژې نوروژه یې نه فاسدیږی، په دلیل دهغه حدیث: اِذَا اَكَلَ الصَّائِمُ نَاسِيًا فَاِنَّمَا هُوَ رِزْقٌ رَزَقَهُ اللهُ اِلَيْهِ فَلَاقَضَاءَ عَلَيْهِ، **فَائِـدَه:** چونکه جماع لکه خوړلـك اوڅښك دماتوونکو څخه دروژي وو، نودهیري په صورت کې جماع هم حکم دخوړلـك لري یعني روژه نه په ماتیږي، **مسـئله:** کې دجماع وپه صورت کې روژه وه یاد سوه دستي دی خپل غړدفرج څخه وباسي، اوکې یوڅه ځند وکړي روژه یې فاسده ده مګرکفاره نشته باندی" اوکې پـله روژي پیاد یدو څخه نوړ پکښې وښوراوه اویائې را وکښي اوبیرته یې ور ننه ایستی روژه یـه هم فاسده سوه اوکفاره هم پرلازمه ده،

**مسـئله** کـه سړي دشپې په اخیرکې دماینی سره کار شروع کړی وو، دمخه ترانزال پرسپیدو وبیریدی، نوژر یـه منړ راوکښي اوډباندی اودس پر واوبښتی. وروسته سپیدی راوچاودی هیڅ شی باندی نشته لعدم الجماع فی النهار صورةً ومعنیً»، مر، اومصنفؒ چې ناسي وواییه ولی که ئې خورلـك مثلاً په خطاء سره وویعني روژه یې یاد وه اوقصد دماتولو یې نه وو بلکه په خوله یه اوبه لغرغري ځندی تیرې سوي، اویایه دکټوي خوندکښی مثلاً نابېره یوڅه بښورواځندی تیره سوه اویا یې دماینی سره په لحظه کونه سات تیراوه نابېره یې د غړسرچې حشفه یې بولي ننوتل لکن فوراً یې راکښل روژه یـه فاسده سوه لکن کفاره نشته، بحر، س، ط،

**پوښتنه**: چې هېر په حقوقو کې د بنده ګانو عذر نه ده، مثلاً یو سړي وه بل ته شی په زیت ورکی او یا یې امانت ور کړی، نو هغه سړي بغل ته کښیښنو مثلاً چې ولاړ پیدې ځنډي هېر سو او ور لاس سو ضمان یې پر لازم دی. **پوښتنه** چې فساد او بطلان په عباداتو کې یو شئ دی البته په معاملاتو کې فرق سره لري، لکه بیع فاسده او باطله کما تقرر فی محله» ط، در» قـــال المصنفؒ:

## فَإِنْ كَانَ لِلنَّاسِي قُدْرَةٌ عَلَى الصَّوْمِ يُذَكِّرُهُ بِهِ

نو که چېرې وو ناسي (هېروونکي) خوړونکي لره قدرت پر روژې یعني پر پوره کولو د روژې

## مَنْ رَآهُ يَأْكُلُ وَكُرِهَ عَدَمُ تَذْكِيرِهِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ

تر پایه بیله ظاهره مشقته لکه قوي ځوان، نو روژه دی ور پیاد کی هغه څوک چې روژاتي پر

## قُوَّةٌ فَالْأَوْلَى عَدَمُ تَذْكِيرِهِ

خوړلو وویني، او مکروه ده چې نه ور پیاد وي، پر مختاره مذهب کذا فی فتح القدیر او بعض فقهاءؒ وائي چې نه دی ور پیادوی ولې چې دغه خوړلو دده خو فاسدوونکي د روژې نه دی، او که نه وو روژاتي لره قوت تامه د روژې د پوره کولو نو اولی داده چې نه دی ور پیادوی لکه سپین ږیری او یا ضعیفه ځوان، ولې چې په دی پیاده ولو کی قطع د رزق الهی راځي» قـــال المصنفؒ:

## أَوْ أَنْزَلَ بِنَظَرٍ أَوْ فِكْرٍ وَإِنْ أَدَامَ النَّظَرَ وَالْفِكْرَ

او یا نو انزال سو په سبب د کتو وکس ته د ښځې کې خپله مانیه وي او که بېګانه وي او یا په فکر وهلو انزال سي، که څه هم ډېر وړ ته ګوري او یا ډېر فکر ووهي روژه یې نه ده فاسده ولې چې دده څخه نه صورة د جماع و پیدا سوي دی او نه معنا د جماع و چې انزال دی په مباشرة په لحاظ سره،





**سوال**: روژاتي ته خود غسي کول حرام دی **جواب** د حرمت څخه د روژې والی نه دی لازم لکه روژاتي چې غیبت وکړي مثلاً او که دوو ښځو خپل فرجونه سره ومښل چې محقق یې بولي نو که نه سوی انزال روژه یې نه ماتیږي او که انزال سوی روژه یې ماته ده.

**مسئله**: مصنفؒ انزال په کتو او په فکر سره مقید کی د دی سببه که سړي انزال سی په مس کولو د ذکر د ښځې د یو ځای سره که څه هم په مابین کې د ذکر او د ښځې د ځای حائل وي لکن حرارت د بدن محسوسه کیږي روژه یې ماته ده **مسئله**: که روژاتي په لاس کی ځان انزال کړي روژه یې ماته سوه په نزد د عامة المشائخ وهو المختار، قه، ط، در، **مسئله** ورته فعل چې استمناء یې بولي په عربي بیله روژې هم حرام دی کې غرض قضاء د شهوت وه او کې غرض ځان ساتل وه د زناء څخه مثلاً یعني دا یې ګمان وي که نه استمناء و نه کړم د شهوت د غلبې د سببه به زنا بالواطت ځنډي وسي، نو به ورته فعل جواز و لري، انما الاعمال بالنیات » قـال المصنف

## أَوِ ادَّهَنَ أَوِ اكْتَحَلَ وَلَوْ طَعْمُهُ فِي حَلْقِهِ

او یا یې سر غوړ کړي یعني روژه یې نه ماتیږي مراقي وائي لکه سړي چې په روژه کې د ګرمي د سببه په یخو اوبو لمبیږي چې یخ طن یې هم یخ سي روژه یې نه ماتیږي، ولې چې دا یخوالی د بدن تر مساماتو داخلیږي او هغه اعتبار نه لري کذا قال الطحطاويؒ» او دغه روژه نه ماتیږي چې سترګې توري کړي که څه هم خوند د رنجو په حلق کی محسوس کړي او یا رنګ د رنجو په ناړو کې ووینی، وهو الاصح وقول الاکثر، مر مراقي وائي که دغه رنجه خوشبویه وي او که نه وي، نو د دی څخه دا معلومه سوه چې روژاتي ته بویول د ګل یا د مشکو وغیره مکروه نه دی **مسئله** که روژاتي په سترګو کی شیدي واچولي او یا یې دواء ور واچوله سره د یو وخت روغنو یې په حلق خوند معلوم سو روژه یې نه فاسدیږي، ولې چې داخل من المسام دی او هغه ته اعتبار نسته، مر، ط، په حدیث شریف کې چې روایت یې عائشه رض کړي دی داسي راغلي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به سترګې توره ولې وهو صائم،

**فائده**: د حضرت الامام الاعظمؒ څخه داسي روایت دی چې روژاتي ته مکروه ده چې په واله کې مثلاً د ګرمي د سببه لمبیږي او یا کالي پر ځان

لندہ وی او د مراقی څخہ نقل اخذًا و سوچی پہ لمبیدو پہ ځخو اوبو روژہ نہ ماتیږی **جواب**
یو روژی ماتوالی دی او یو کراهت دی، مراقی خو وائی چی روژہ نہ پہ ماتیږی امام علیہ الرحمۃ
خونہ وائی چی روژہ پہ ماتیږی لکن دا فعل مکروہ بولی، ولی چی دی فعل کی اظہار د تنگدلی د
عبادت پہ ادا کولو کی کذا فی المنح وط، **مسئلہ**: کہ روژاتی دا انگور دانہ پہ تار پوری
غوټہ کړہ او تیرہ یہ کړہ او بیرتہ یہ راکش کړہ او روغہ یہ راوکښہ روژہ یہ نہ دہ ماتہ» م، ط،
**مسئلہ**: کہ ښځی پہ فرج گوتہ چخ کړہ چی گوتہ یہ نہ لندہ وَلہ او نہ غوړہ روژہ یہ نہ
ماتیږی پہ مختارہ مذهب» م، قـال المصنفؒ: **اَوِ احْتَجَمَ** او یا روژاتی
وینی وکښی هم یہ روژہ نہ ماتیږی، ولی چی پہ حدیث شریف کی راغلی دی: انّہ احتجم صلی
اللہ علیہ وسلم وهو محرم واحتجم وهو صائم» رواہ البخاری، او امام احمدؒ پہ وینو کښنو روژہ
ماتہ بولی او احنافؒ وائی کہ وینو کښنو روژاتی ضعیفہ کاوہ د روژی څخہ نو وینی کښل پہ مکروہ
دی والا فلا بأس بہ» قـال المصنفؒ **اَوِ اغْتَابَ** او یا یہ غیبت د چا
وکی هم روژہ نہ پہ ماتیږی **پوښتنہ**: چی غیبت خو گناہ کبیرہ دہ، او غیبت وئی تہ
وائی چی تہ د یو مسلمان ورور هغہ حال بیان کی چی هغہ یہ غم کی اچوی» بعض عوام د غیبت
څخہ بیخی منکر سی، ولی چی دی د چا غیبت کوی او بل سړی ورتہ ووائی چی غیبت مه کوہ دی
پہ جواب کی ورتہ وائی چی زہ خو یہ غیبت نہ کوم، زہ ئی حال بیا نوم دا بیا بلہ گناہ دہ، څہ وخت
چی علیہ الصلوٰۃ والسلام د غیبت بیان کاوہ، یو سړی پوښتنہ څنګه دی وکړہ» إن کان
فی اخی ما اقول» یعنی کہ زما پہ ورور مسلمان کی هغہ عیب وو چی زہ ئی بیان کوم نو هم غیبت
دی» علیہ الصلوٰۃ والسلام جواب ورکړی: إن کان فیہ ما تقول فقد اغتبتہ وان لم یکن
فیہ ما تقول فقد بهتہ» کہ پہ هغہ کی دا عیب وو چی تہ ئی بیان کوی نو څو غیبت دی
وکړی، او کہ هغہ عیب نہ وی پکښی نو تا بیا بهتان پر هغہ ووایہ چی تر غیبت ئی گناہ دیرہ
**مسئلہ**: کہ یو سړی کومہ گناہ پہ جهر سرہ کولہ د هغہ بیان کول غیبت نہ دی، نوح آفندی ط
پہ حدیث شریف کی راغلی دی چی غیبت: اَشَدُّ مِنَ الزِّنَا» د دی وجہ دا دہ چی زنا چونکہ نادہ
د مسلمان څخہ پیښیږی نو چی یو وخت پیښہ سی پہ زړہ کی پښیما ئی غالبًا پیدا کیږی،





او پہ زړہ کی د توبی ارادہ یا بالفعل توبہ رو نما کیږی او غیبت کوونکی چونکہ غیبت یو
عادی کار گرځولی دی، نو نہ پښیمانی او نہ ارادہ توبی یہ پہ زړہ کی پیدا کیږی، قال المصنفؒ
**اَوْ نَوَى الْفِطْرَ وَلَمْ يُفْطِرْ** او یا یہ نیت د ماتولو د روژی وکړی مگر ماتہ یہ نہ
کړہ، پہ مجرد نیت سرہ یہ روژہ نہ ماتیږی
او پہ دغہ نیت کی گناہ کار هم نہ دی، مگر هغہ وخت چی ټینگ قصد د ماتولو یہ کړی و څو بیا د یو
مانع د سببہ یہ ماتہ نہ کړہ، نو روژہ خو یہ ماتہ نہ دہ لکن د عزم پہ سبب گناہ کارہ دی،
**درویش وائی**: چی هم دغہ حال دی د قصد د هر گناہ کبیرہ، لبعض العلماء مراتب د قصد دا سی
نظم کړی کما فی حواشی البخاری ونقلہ الطحطاویؒ ایضًا» مراتب القصد خمس هاجس ذکروا:
فخاطر فحدیث النفس فاستمعا: یلیہ هم فعزم کلها رفعت: سوی الاخیر ففیہ الاخذ قد وقعا:
وتفصیل تلک المراتب» هاجس: هغہ دی چی پر هغہ زړہ دیوہ بد کار خیال ومړی تہ لکن بیلہ د زړہ
یہ بیرتہ پہ هغہ فکر د زړہ څخہ ووزی» او خاطر: هغہ فکر تہ وائی د بد کار چی یو کړی پہ کښی متردد
وی لکن بیا د زړہ څخہ ووزی» او حدیث النفس» هغہ گناہ دی چی پہ خولہ هم ووائی چی زہ دا کار
کوم لکن نہ ئی وکړی او هم ارادہ نہ بد کار و وائی چی د دہ پر زړہ ور گرځید لی وہ لکن بیا هم نہ ئی وکی
او عزم، ټینگی ارادی تہ وائی چی د هغہ بد کار پہ بعض اسبابو لاس پوری هم کړی لکن بیرتہ یہ
پریښی دی **فائدہ**: پہ عزم کی صرف گناہ د عزم لیکل کیږی نہ د هغہ فعل بد
لکہ د زنا عزم چی سړی وکړی نو د زنا گناہ نہ پر لیکل کیږی» قـال المصنفؒ:

**اَوْ دَخَلَ فِي حَلْقِهِ دُخَانٌ بِلَا صُنْعِهِ** او یا داخل سی دود د دہ پہ حلق
کی بیلہ کسبہ د دہ ولی چی پہ
کی دی معذور دی ولی قدرت یہ پر منع نہ لری او کہ څوک ووائی چی خولہ دی بند پہ ونسی، زہ
وایم خو بیا د غہ دود پہ پزہ ننوزی او حلق تہ ځی، **مسئلہ** کہ څوک چلم و څکوی او یا سگرټ
وغیرہ روژہ یہ ماتہ دہ، ولی دا خود دہ پہ قصد سرہ وہ لکن کفارہ نستہ با ندی، او کہ سنتہ بیان بہ
راسی **مسئلہ** هر دود چی سړی یہ حلق تہ ورسوی پہ صنعہ سرہ روژہ یہ ماتہ دہ
حتی کہ روژاتی عود یا عنبر و لگول او بیا یہ وځان تہ نژدی کړہ او هغہ دود یہ د پزی وخواتہ

کش کړي او روژه یې هم پیاده، نو روژه ماتیږي، ولې خوده ته ممده وه چې دغه دود یې حلق وجوف ته وای داخل کړي **سوال**: د محر تیره سوه چې د گل یا د مشکو په بویولو روژه ماتیږي نو فرق یې څه دی! **جواب**: په بویولو کې د گل وغیره صرف هغه هوا چې د گل وغیره په بوی خوشبویه سوې وي پزې ته داخله سوه، او په ما نحن فیه کې جوهر د دخان نس ته ور سیدی» قال المراقي وهذا مما یغفل عنه کثیر من الناس» قال المصنف

## اَوْغُبَارٌ وَلَوْغُبَارُ الطَّاحُوْنِ

او یا یه په خوله گرد ننوتی که څه هم گرد د ورېو د ژرندې وي، یعني روژه یې نه ده ماته، لکن په سکب الانهر کې وائي که د روژاتي چاره کیده د کولو څخه د داسي کاره چې گرد دده په خوله ننوتی، او بیا هم یې هغه کار کاوه روژه یې فاسدیږي فافهم **مسئله** که دسړي کسب داوو چې د ژرندې عنم لي وخلگو ته په مزدوري ور غلبیلول» چې په هغه کې خواه مخواه گرد په خوله یا پزه ننوزي روژه یه نه په ماتیږي للضرورة» **مسئله** که دسړي خیلې او سنکي وحلق ته ور توي سوي، او یا یه خوله وحلق ته ور توي سوه، او یا یه دبا ران څاڅکی په خوله کې ولویدی روژه یه ماتیږي لامکان الاحتراز عنه، حتی کې په قصد دغه شیان تیر کړه کفاره یې لازمه ده، بحر ط، قال المصنف: **وَذُبَابٌ**: او یا د روژاتي په خوله مچ ننوت او حلق ته ئې ورسیدی او تیر سو روژه یه نه ده ماته لعدم امکان لاحتراز عنه، او دغه حکم د غوماشې دی چې د روژاتي په خوله ننوزي، قال المصنف:

## اَوْاَثَرُطَعْمِ الْاَدْوِيَةِ فِيْهِ وَهُوَذَاكِرٌ لِصَوْمِهٖ

او یا اثر د خوند د دواء یې په خوله کې پیدا سو چې دده مثلاً تر سپیدو د مخه خوړلې وه روژه یې نه وه ماته، قال

## اَوْاَصْبَحَ جُنُبًا وَلَوِاسْتَمَرَّ يَوْمًا بِالْجَنَابَةِ

او یا یه سحار کړي روژاتي چې د شپې جنب سوی وي او غسل یې نه وو کړي نو په دي جنابت یې روژه نه ده ماته که څه هم همیشه ثوب وکړي په هغه جنابت پوره ورځ بلکه که ډیرې ورځې دوام په جنابت وکړي روژه





یې ولا یه صحیح البته دوام په جنابت گناه ده لقوله تعالی: فَالْآنَ بَاشِرُوْهُنَّ الآیه یعني تا د مابینو ستره جماعې کوی تر تر دې پورې د سپیدو نو غسل خواه مخواه ور وسته تر سپیدو را ځي چې ورځ ده او د روژې وخت دی ولقوله علیه الصلوة والسلام: وَاَنَا اَصبح جنبا وانا ارید الصیام واغتسل واصوم» قال المصنف:

## اَوْصَبَّ فِيْ اِحْلِيْلِهٖ مَاءً اَوْدُهْنًا

او یا توی کړه سوه د غړه په غارک او به یا روغن روژه نه ده په ماته لکن دا په نیز د امام اعظم او امام محمد او امام ابویوسف وائي که دا او به یا روغن سپوخي ته ور سیده روژه په ماتیږي او که په نلکه د ذکر وه بالاتفاق روژه نه په ماتیږي **مسئله**: کې د ښځې وکس ته او به یا روغن واچول خواه مخواه روژه په ماتیږي بالاتفاق علی الاصح» س، ط، قال المصنف:

## اَوْخَاضَ نَهْرًا فَدَخَلَ الْمَاءُ اُذُنَهٗ

او یا یه عونه وځي ل په واله کې نو یه وبه غوږ ته ننوتې روژه یې نه ده ماته، ولې چې غسل ته خلگ ضرورت لري، م قال المصنف

## اَوْحَكَّ اُذُنَهٗ بِعُوْدٍ فَخَرَجَ عَلَيْهِ دَرَنٌ ثُمَّ اَدْخَلَهٗ مِرَارًا اِلٰى اُذُنِهٖ

او یا یه وکور ووی غوږ د لرگي په خاشه نور او وته یې خاشه باندې خیره د غوږ او بیا یې څو واره خاشه په غوږ وچخ کړه، روژه یې نه ده ماته بالاجماع کما فی البزازیه» ولې چې ما توونکی شئ و دماغ ته نه ور سیدی» کذا فی المراقي» قال

## اَوْدَخَلَ اَنْفَهٗ مُخَاطًا فَاسْتَنْشَقَهٗ عَمْدًا اَوِابْتَلَعَهٗ

او یا یه داخل کې د پزې روژاتي پید اکړه گړ ناړې نو د اگړ ناړې ده پوره ته کش کړه او یا یې د ستوني د خوا تیر کړه روژه یې نه ده ماته، **مسئله**: مراقي وائي که د سړي ناړې تر خولې را وتلې او ده بیرته پوره ته کش کړي او تیرې ئې کړې نو که د ناړې د خولې څخه نه وې قطع سوې

کی نہ کی محسوس، نو روژه یې نه ده ماته لعدم وصول شئ من خارج الی الحلق والبطن» قال المصنفؒ

# بَابُ مَا يُفْسِدُ بِهِ الصَّوْمُ وَتَجِبُ بِهِ الْكَفَّارَةُ مَعَ الْقَضَاءِ

باب ثابت دی په بیان کی د هغو شیانو چې روژه په ماتیږی او کفاره هم په لازمیږی سره د قضاء» قال

## وَهُوَ اثْنَانِ وَعِشْرُونَ شَيْئًا اِنْ فَعَلَ الصَّائِمُ شَيْئًا مِنْهَا

او هغه ۲۲ شیان دی که چیری روژتی یو د دغو شیانو څخه په خپل خوښه او قصد

## طَائِعًا مُتَعَمِّدًا غَيْرَ مُضْطَرٍ لَزِمَهُ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ

سره وکی او مجبور هم نه وي، نو پر ده لازمه ده قضاء راوړه د هغې روژې چې ده فاسده کړه او کفاره هم پرې لازمه ده **پوهـسه**: چې مصنفؒ خو شرطونه د قضاء او کفارې په دی ځای کی بیان کړی، او بعض شرطونه یې پرې ایښې دی ۱ روژتی به مکلف وی که نابالغه وو او روژه یې ماته کړه نه قضاء باندی سته او نه کفاره ۲ چې روژه به اداء وی د میاشتی د روژې نو که یو سړي قضاء روژه نیولی وی او بیا یې ماته کړی، نو قضاء ئې خو هغه سې پاته ده او کفاره نسته باندی ۳ نیت د روژې به ئې د شپې کړی وی نو کی د ورځی نیت د فرضی روژې وکړی او بیا یې ماته کړه نو قضاء خو باندی سته مګر کفاره نسته، ولی کفاره لکه حدود په شبهه نه پرېږی، نو چونکه امام شافعیؒ د ورځی د روژې نیت روا نه بولي نو دا شبهه ده په اسقاط کی د کفارې د حنیفی څخه ۴ نیت به د تعیین د روژې فرضی کړي وی، نو که سړي په میاشت کی د روژې د صبا د مطلق روژې وکړي که څه هم روژه د حنیفیانو په نیز د غه نیت کافی دی، لکن شافعیؒ یې کافی نه بولی نو که دغه روژه حنیفی ماته کړه قضاء باندی سته، مګر کفاره باندی نسته لشبهة خلاف الشافعیؒ، مګر بیا هم یا ران وائی





کی د ورځی د فرضی روژې نیت وکړي او بیا یې ماته کړه کفاره باندی سته» س ن ط»
۵ د روژې ترنیولو وروسته به روژاتی ته داسی عذر ونه نه وی پیښ سوی چې ده ته روژه ماتول روا کړی لکه ناجوړتیا، **پوهـسه** چې مصنفؒ د غیر مضطر قید ووایه» د دی سببه چې که روژاتی مجبور سي و روژه ماتولو ته مثلاً سخت مریض سي چې د روژه ماتولو څخه چاره ونه لري، نو بیا قضاء که سته کفاره نو نسته» قال المصنفؒ

## وَهِيَ الْجِمَاعُ فِي اَحَدِ السَّبِيْلَيْنِ عَلَى الْفَاعِلِ وَالْمَفْعُوْلِ بِهِ

او د هغه شیانو څخه یو جماع دی په یوه کی د دوو لارو چې کس او کُنه ده یعنی که د نروی او که د ښځی، او دا کفاره پر فاعل او مفعول به دواړو لازمه ده، لکن مراقی وائی چې جماع به د انسان سره او ژوندی سره وي، نو کی جماع د څاروی سره وکړی مثلاً یا د مړی ښځی سره نو کفاره باندی نسته لعدم کمال الجنایة» **مسئله**: په نهر کی وائی چې که سړي د بیځی کشنی انجیلی سره چې مشتهاة نه وی جماع وکړی نو کفاره باندی نسته» ط»

**پوهـسه**: چې فاعل که انزال سی او که نه سی کفاره باندی سته. ولی چې احکام د جماع لکه حد او غسل وغیرهما تعلق په نفس ننوتلو د ذکر لري او فساد د روژې او کفاره هم د دغو اقسامو څخه دی» زیلعی» امام طحطاویؒ وائی چې وجوب د کفارت په وجود پوری د شهوت اړونه لري، لانه لا شهوة في المفعول به في دبره» آه» لکن درویش وائی چې دا خبره که بناء پر سلب کلی وی خو غلطه ده، او که سلب جزئی وی نو بیا صحیح وي علی سبیل الندرة فتامل **پوهـسه**: چې په باره کی د روژې د فساد او کفارې قبل او دبر سره یو شی دی لکن په وجوب د حد فرق سره لري، ولی حد خو په زنا پوری مربوط دی، او د برې کار خو زنا نه بولي بلکه لواطت یې نوم دی، **پوهـسه**: چې ګناه د افطار عمداً په توبه سره نه زائلیږی بلکه کفاره حتماً غواړي» هدایه» قال المصنفؒ:

## وَالْاَكْلُ وَالشُّرْبُ سَوَاءٌ فِيْهِ مَا يَتَغَذَّى بِهِ اَوْ يَتَدَاوٰى بِهِ

او بل خوړل او څښل دی برابره ده په دغه ما توونکی کی که د غذاء شی وی او که د دوا شی وی

ونقل المصنفؒ فی المراقی عن الجوهرة اختلافًا فی معنی التغذی ، بعض فقهاء وائی چې د تغذی معنا داده ، چې طبع میل وخوړلـ ته دَهغه کوی اود نس شهوت هم پرځای هم کیږی ، او بعض علماء وَائی چې غذاء هغه شی دَه چې نفع یه واصلاح ته دبدن راجع کیږی ، اود دی اختلاف فائده دَاده چې یو سړی یو ګوله دغوښو مثلًا وژوئی بیرته ئی دخولې څخه راوباسی ، او بیا یـه خوله ته واچوی او تیری یـه کړی ، نو پردوهم قول کفاره باندی ستـه ولې چې دغه ګوله خو بدن ته نفع لری ، او پر قول اول کفاره نـشته ، ولې چې سړی ګوله وژووی اوراوی کابنی دَخولې څخه ، طبع بـد ځندی وړی او خوا یه پرګرځی وهذا هوالاصح کما فی المحیط ،

**تفریع** دپان بلګونه یـا د بنګو بلګونه چې سړی وخوری او عادی وَرسره وي ، نو پر قول ثانی کفاره باندی نـشته ، ولې چې د دی په خوړلـ کی اصلاح دبدن نشته بلکه بدن او عقل ته تاوان دی ، او پر اول مذهب کفاره پرستـه ، ولې چې د عادی سړی طبع میل وړته کوی اود نس شهوت یـه هم پرځای کیږی ، **بنـهـا نـه فائـده** که سړی د تمبکو دَچلم عادی وی او یـا دچرسو دَچلم ، یاد سګریټو یا بیړیو او یا نسوارو عادی وي ، نو په روژه کی دَغه دود دچلم یا سګریټو مثلًا او یا نسوارو تیرکړی ، او یاد تریاکو عملی تاریاکـ وَخوري روژه خو یـه حتمًا ماته ده لکن په لزوم کی دکفاره اختلاف دی پر اول تفسیر کفاره باندی ستـه ولې خو طبع د عادی خلګو یعنی عَملیانو وَ دغو شیانو ته میل کوی اود نس شهوت یـه هم پرځای کیږی ، او پردوهم تفسیر کفاره نـشته باندی ولې چې دغو شیانو کی نفع دبدن نـشته او اصلاح د بدن هم نشته بلکه ټوله ضرر دی دَبدن دپاره ، کذا فی المراقی والطحطاوی مع زیادة من هذا العبد العاصی ،

**پوښتنه** : په نسوارو چې سړی یـه صرف وکړی په خوله کی نیولی وی او بیرته یـه توکړی او دوه دری واره وروسته هم نارې توکړی او یا په خوله او بـه ولغړوي روژه ماتیږی او کـه څرنګه ! **جـواب** : هو په نسوارو روژه ماتیږی ولې چې نسوار کښې کښی اجزاء لری چې حتمًا حلق ته ځي اود سړی بیله ارادی تیریږی ، دلیل دادی چې نسواری سړی





چې نسوار خولې ته واچوی او یو ګړی وروسته یـه توکړی او ډیر مبالغه په توکلو کښې هم وکړی وروستـه چې نارې تیری کړي حلق یـه ترخ سی نو معلومه سوه چې دَغه کوچنی اجزاء حلق ته رسیدلی وَه ، **سـوال** : په ترخـه او خواږه ځنده دوائی هم بایدداختلاف وای ، ولی طبع خو نفرت ځندی کوی لکه ژوولی غوښه **جـواب** : طبع سلیمه چې په دوائی خپل صحت وینی نو که څـه هم هغه دوا ترخـه او خوا ګرځنده وی وهغی دواء ته میل طبع کوی کما یدل علیه التجربة فلایکون فیه اختلاف بل یلزمه الکفارة زجرًا عنه قاله المصنف فی المراقی

قـال المصنفؒ **وابتلاع مطرٍ دخل الی فمه** اود غه رنګه هم روژه ماتوی او هم کفاره لازمه وی د باران اوبه اوڅاڅکی چې دسړی په خوله کی وَلویږی او سړی یه تیری کړی ، اوبـ لی او واوره هم پردَغه قیاس ده ، ولې چې د دی خواحتراز ډیر آسانه کیږی چې یا یـه سرکښتـه نیولی وای او یـا یه خوله پټه نیولی وَای ، قـالَ المُصنفؒ :

**وَاَكْلُ اللَّحْمِ النِّيْئِ اِلَّا اِذَا دَوَّدَ** اود غه رنګه روژه ماتیږی او کفاره لازمیږی په خوړلـ دا وموغوښو مګر هغه وخت کفاره نـشته که دغوغوښو چینجیا ن کړی وی ، ولې دغه غوښی هم طبع نفرت ځندی کوی او هم دغذا اصالح نه دي ، **دَرویش وَائی** چې امام طحطاوی په نقل د سید شارح دامی وائی ، چې فقهاءؒ په خوړلو کی ددغې دبلګو په لزوم کی یوه کفاری دا معتبره کړیده چې سړی ددغو بلګود خوړلو سره عادی وی نو کفاره باندی ستـه ، اوکی عادت نه وو ، نو روژه به ماتیږی او کفارت نه لازمیږی ، نو باید د اوموغوښو په خوړلـ کی هم دعادت او غیر عادت فرق سره وکړه سی ، **والجواب عنه** چې د بعض درختو د بلګو دَخوړلو عادت وَالا ډیر دی ، اود اوموغوښو د خوړلـ عادت په انسانانو کی خو نـشته مګر لیوه طبع یا سپی طبع سړي وي ، قـالَ

**وَاَكْلُ الشَّحْمِ فِي اِخْتِيَارِ الْفَقِيْهِ اَبِي اللَّيْثِ**

اود غه رنګه کفاره ستـه په خوړلـ کی دوازګو چې اومی وی په مذهب مختار کی دفقیه ابواللیثؒ

السمرقندیؒ او په تجنیس کی هم ورته خبره یې کړیده». قَالَ المصنفؒ:

## وَقَدِيدُ اللَّحْمِ بِالاتِّفَاقِ

اوکه روژاتی وچې کړی غوښی وخوړلی کوم ته چې قدید الشحم وايی، په اتفاق روژه یې ماته ده اوکفاره پرلازمه ده، ولی چې ډیرخلک وچې غوښې اوی خوری، په صحراء کی خلک په اصطلاح لاندی وکړی اوما لګه پرغوښو یې واچوی اوپسله وچوالی یه بیا کښنی کتری څندی جوړه وی، نوپه دغه وخت کی ناوېنځی لوی اوکوچنی داسی په مزه مزه دغه وچ اومه کبابونه خوری چې څه درته ووایم». قَالَ المُصنفؒ:

## وَأَكْلُ الْحِنْطَةِ وَقَضْمِهَا إِلَّا أَنْ تَمْضَعَ قَمْحَةً فَلَاشَيْءَ

اودغه رنګه روژه ماتوی اوکفاره لازموی خوړل دغنمو اوپه غاښونو میده کولو اوبیا تیرولو مګر که روژاتی یوه دانه غنم خوله ته واچول اوپه غاښونو سره میده کړه چې په نارو کی متلاشی اووه سوه اوهیڅ خوند یې نه معلومیدی، نونه روژه یې ماتیږی اونه کفاره یې لازمیږی». قَالَ المصنفؒ

## وَابْتِلَاعُ حَبَّةِ حِنْطَةٍ سِمْسِمَةٍ أَوْنَحْوِهَا مِنْ خَارِجٍ فَمِهِ فِي الْمُخْتَارِ

اودغه رنګه کفارت لازمیږی په تیرولو دکنجدی ددانی اویا مثل دهغه لکه اربشی دانه دخولی د باندی څخه په مختاره روایت کی، ولی په دی سره غذاء پیدا کیږی». **فَائِدَه:** اربشی که ئې نینی کړی اویا لندی دانی د اربشو په وږی څخه راوکښی اووی خوړلی» کفاره پرلازمه ده ولی یې دغه خوړلو اواربشو خلګو عادت جاری دی، اوکه وچه اربشه وخوړله روژه یه ماته سوه مګر کفاره نسته» لعدم الاعتیاد، «مرد»، قَالَ المُصنفؒ:

## وَابْتِلَاعُ الطِّينِ الْأَرْمَنِيِّ مُطْلَقًا

اودغه رنګه روژه هم ماتوی او کفاره هم لازموی خوړل دارمینی ختو مطلقا کی سړی عادتی وی اوکی نه وی، ولی چې طین ارمینی د دواء دپاره خلک خوری، نو دغه خوړلو افطار کامل دی، لکه دنورو دواوو خوړل،





**پوښتنه:** چې طین ارمینی عطاران پیژنی پوښتنه یې وکړه». قَالَ المُصنفؒ

## وَالطِّينِ الْغَيْرِ الْأَرْمَنِيِّ كَالطَّفْلِ إِنِ اعْتَادَ أَكْلَهُ

اودغه رنګه روژه ماتوی اوکفاره هم لازموی خوړلک دختو غیرارمینی وو، چې په عربی یه طفیل بولی اوپه پښتو یې دخړو اوبوکړګک بولی، لکن هلته دا دوه شئ لازموی چې سړی عادتی وی لکه ډیری ښځی چې دغه کړګ دخوړلو عادت لری، اوکی عادت نه وو، نو روژه یې ماتیږی مګر کفاره باندی نسته»، قَالَ المصنفؒ:

## وَالْمِلْحُ الْقَلِيلُ فِي الْمُخْتَارِ

اودلږ مالګی خوړل هم روژه ماتوی اوهم کفاره لازموی په مختار روایت کی، **درویش وائی** چې مراقی وائی، «لاالکثیر منه»، اوډیر مالګه خوړل کفارت نه لازموی، وروسته یې د اسی ولیلی دی، وانه من الامتحانیات بالجواب»، اوداخبره چې دلږ مالګی په خوړلو کفاره لازمیږی اوډیری مالګی په خوړلو کفارت نه لازمیږی دامتحانی مسئلو څخه ده په جواب کی یعنی چې ددی مسئلی په صحیح جواب څوک پوهیږی اوکه به لاادری» وائی، ددی سؤال اول امتحان دادی چې نه پوسیږی نه ووائی چې هغه کوم شئ دی چې دلږ په خوړلو یې کفاره پر روژاتی لازمیږی اوډیر په خوړلو یې کفاره نه لازمیږی»، نو فرضا که دی درته ووائی چې هغه مالګه ده، نودوهم امتحان یې دادی چې نوولی داحکم صحیح دی، **درویش وائی** چې هم مراقی اوهم طحطاویؒ داجواب داغسی مجهول پری ایښی دی دامتحان دپاره لکن عامی خلګ یعنی ښتانه وروڼه اوخویندی په تشویش کی نه اچوی، بلکه جواب داسی بیا نوی چې دلږی مالګی دخوړلو ډیر خلګ عادتیان دی اوبل لږ مالګه خوړل دواهم ده، د بعض خلګو دپاره چې بدن کی د دپاکتر په وینا د مالګی سیستم کمزوره سوی وی، نوچې لږ مالګه هم عادی شی ده اوهم دواء نو ځکه کفاره یې په خوړلک لازمیږی، اوډیره مالګه خوړل نه عادت کیدای سی اونه دواء، نو ځکه یې په خوړلو یې روژه ماتیږی، اوکفاره نه لازمیږی، لکن دلږ اوډیری مالګی مقدار رائی ته دمبتلی به موکول دی، فتدبر

قال المصنف **وَابْتِلَاعُ بُزَاقِ زَوْجَتِهِ اَوْصَدِيْقِهِ لَاغَيْرِهِمَا**

اودغه رنګه کفاره لازمیږی او روژه ماتیږی په تیرولو د ناړود ماینی او یادا شنای یعنی چې هلك وی او ورده محبت ورسره وی. نه دبل چا د ناړو په تیرولو سره چې روژه خو په ماتیږی او کفاره نه په لازمیږی، دلیل یه دادی چې د اولو دؤو په ناړو سره سړی خوند او مزه اخلی کما یدل علیه التجربة، او د نورو خلګو پرناړو خوند خو پریږده دسړی خوا بد ګرځی:

قال المصنف **وَاَكْلُهُ عَمَدًا بَعْدَ غِيْبَةٍ اَوْبَعْدَ حِجَامَةٍ اَوْبَعْدَ مَسٍّ**

اودغه رنګه کفاره سته چې روژاتی په قصد روژه وخوری وروسته ترغیبت د چا. دا کفاره خواه

**اَوْقُبْلَةٍ بِشَهْوَةٍ اَوْبَعْدَ مُضَاجَعَةٍ مِنْ غَيْرِ اِنْزَالٍ**

مخواه سته کرده ته هغه حدیث د علیه الصلوٰة والسلام لپنی" الغیبة تفطر الصائم. ور رسیدلی وی او که نه وی

**اَوْبَعْدَ دُهْنِ شَارِبِهِ ظَانًّا اَنَّهُ اَفْطَرَ بِذَالِكَ** او په تاویل

ددغه حدیث پوهیږی کړنه. چې تاویل یه په اجماع د مجتهدینو دادی چې ثواب یه نسته، او که مفتی فتوی د ماتیدو ور کړی او که نه، ولی چې داحدیث مخالف د قیاس نحز دی من کل الوجوه او یا وروسته تروینو کبنو روژه یه په قصد ماته کړه هم کفاره پرسته، دوینو په صورت کی که څه هم نه وی ور رسیدلی خو کفاره سته، او که هغه حدیث چې" افطر الحاجم والمحجوم" ور رسیدلی وو، او په تاویل یه هم پوهیدی چې مراد دادی چې حاجم او محجوم وافطار ته نژدی سوه" حاجم په سبب دوینو کشولو په ذریعه د هغه ښیښې چې دی وینی په کاږی او محجوم په سبب د وینو کښلو سره نو هم کفاره باندی سته، ولی چې د ده عمدًا ماتولو ده له څه دلیل نسته، او که حدیث ور رسیدلی وو لکن په تاویل یه نه پوهیدی او پر ظاهر باندی حمل کړی وو او یا مفتی فتوی ور کړی وه چې ستا روژه په وینو کښلو ماته سوه"





نو په دی صورت کی کفاره باندی نسته. ولی چې په ظاهر د دغه حدیث اوزاعیؒ او امام احمدؒ فتوی ورکړیده، نو دا شبهه سوه، او دغه رنګه کفاره پر لازمه ده کی چیرپه دیر شهوت سره واخسته د ماینی لحز او یا یه ماینه په شهوت سره مسه کړه او یا ورسره پر یوتی او ورسره لاس ترغاړه سو په دی دروسره وو صورتو کی انزال نه سو او دده ظن دا وو چې په دغو کارو سره روژه ماته سوه، نو یه په قصد سره روژی وخوړل یا یه او به وچښلی نو کفاره باندی سته ط، دلیل یه دادی او که په دغه صورتو کی انزال سوا و بیا یه روژه لیپی وخوړله بیا کفاره نسته، ولی چې جماعی خو یه نه دی کړی نو ده چې په دغو کارو د ده روژه فاسده سوه بیله کفاری، نو ځکه کفاره باندی نسته"

روژی وروسته خوړل روژه یه نه وه نو ځکه کفاره باندی نسته" وروسته ورسره یوخوړل روژه یه نه وه نو ځکه کفاره باندی نسته

**مسئله** مګر هغه وخت کفاره باندی نسته کرده داسی یو حدیث اوریدلی وو که څه هم هغه حدیث صحیح نه وی چې هغه حدیث پردی دلالت کوی روژه ماتیږی، نو بیا له دغو کارو ئی روژه پسی وخوړله، او یا یه دیو فقیه عالم لحز پوښتنه وکړه چې په دغو کارو روژه ماتیږی او که نه هغه فقیه فتوی د ماتیدو ورکړه، که څه هم هغه فقیه خطا تللی وو په هغه فتوی کی نو ځکه ده وروسته روژه لیپی وخوړله نو کفاره باندی نسته، ولی چې ظاهر د حدیث او یا د فتوی شبه وګرځیدله او دَ وَرَاندی تیره سوه چې شبهه مسقط د کفاری ده، برائع، ط، در، او دغه رنګه کفاره باندی سته کی برتیونه غوړ کړه او ده ګمان دا وو چې په دی غوړیدو سره زما روژه ماته سوه، نو خوړل وغیره پسی شروع کړي، وجه د کفاره یه دا ده چې د دغه ګمان د ده کوم صند شرعی نه لری که څه هم هغه ثابت نه وی، نو چې ده وروسته خوړل وکړی نو روژه یه په قصد ماته کړه نو کفاره باندی لازمه ده،

**فائده**، مصنفؒ په مراقی صـ۵۵ کی وائی چې که دغه بریتو غوړیدو والا که دیو فقیه لحز پوښتنه په دغه باره کی وکړه هغه ورته وویل چې د بریتو په غوړیدو دی روژه ماته سوه، نو بیا له هغه ده په خوړل وغیره شروع وکړه، هم په ده کفاره سته، ولی چې دا فتوی بیخی بی ځایه ده نو اعتبار لری، نو وروسته خوړل دده په قصد روژه ماتول دی، نو کفاره باندی سته، دا حکم مصنفؒ د کمال لحز او هغه د بدائع لحز نقل کړی، لکن وروسته

مصنف وئیلی دی چی قاضیخان وائی چی سړی جاهل وی نو د غی فتوی په صورت کی پرده کفاره نشته»، قال المصنف:

إِلَّا إِذَا أَفْتَاهُ فَقِيهٌ أَوْ سَمِعَ حَدِيثًا وَلَمْ يَعْرِفْ تَأْوِيلَهُ عَلَى الْمَذْهَبِ مګر هغه وخت کفاره باندی نشته کړدی سړی په موجوده کار روکی دیو فقیه عالم نه فتوی طلب کړی وه، او هغه ورته وئیل چی روژه دی په دغو کارو ماته سوه نو بیا هغه نه دغه په خوراك وغیره لاس پوری کړی، او یا دی سړی یو حدیث اوریدلی وو چی هغه دلالت پر دی کاوه چی په دغو کارو روژه ماتیږی، او دی یه په تاویل د هغه حدیث د مذهب دلاری نه پوهیدی، نو بناء پر هغه حدیث ده خپله روژه ماته و بلله نو بیه ځکه خوراك وغیره شروع کړی نو کفاره باندی نشته، ولی چی فتوی د هغه مفتی او یا حدیث ده لره شبهه ورکړځید له، او په شبهه سره کفارت ساقطیږی، کما مر مرارًا»، قال المصنف

وَإِنْ عَرَفَ تَأْوِيلَهُ وَجَبَتْ عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ او کړدی په تاویل د حدیث برابر د مذهب سره پوهیدی، یعنی چی د مذهب دلاری په هغه کار روژه نه په ماتیدله او حدیث تاویل دی لودی او د اسړی هم په خبر وو نو کفاره پر لازمه ده، ولی چی ده وروسته روژه په قصد وخوړله، کما فی الحدیث: أفطر الحاجم والمحجوم کما مر مع التاویل» قال المصنف

وَوَجَبَتِ الْكَفَّارَةُ عَلَى مَنْ طَاوَعَتْ مُكْرِهًا

او واجبه ده کفاره پر هغه ښځه چی میړه یه په روژه کی جماع د ورځی ځندی وغوښتی په زوره، او باره دی هم ور سره خوښه کړه پس تو کا بنی یه خلاص کړی میړه یه ځان ته ور پریښو، نو پر دواړو کفاره لازم دی»، والله أعلم بالصواب»

اللهم اغفر لمؤلفه ولشارحه ولکاتبه ولوالدیهم ولمن نظر فیه بعین الانصاف، امین





# فَصْلٌ فِي الْكَفَّارَةِ وَمَا يُسْقِطُهَا عَنِ الذِّمَّةِ بَعْدَ الْوُجُوبِ

دا فصل دی په بیان کی د کفارت او د هغه شی چی کفاره د ذمی نه ساقطه وی وروسته تر وجوب د کفارے

قال المصنف تَسْقُطُ الْكَفَّارَةُ بِطُرُوِّ حَيْضٍ أَوْ نِفَاسٍ أَوْ مَرَضٍ

او یا ساقطیږی کفاره په سبب د عارض والی د حیض یا نفاس و ښځه ته او یا یوه داسی

مُبِيحٍ لِلْفِطْرِ فِي يَوْمِهِ وَلَا تَسْقُطُ عَمَّنْ سُوفِرَ بِهِ

ناجوړی پیښه سی نر یا ښځی ته، چی هغه ناجوړی ور وړاندی نه روژه ماتول رواکوی، لکن دا دری سره

كُرْهًا بَعْدَ لُزُومِهَا عَلَيْهِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ کاره په دغه ورځ کی پیښ سی، او نه ساقطیږی کفاره د هغه چا نه چی په سفر بوتله سی، په زور سره پس له هغه چی کفاره پر ده لازم سوی وه، په ظاهر روایت کی»، د روئیش وائی: چی صورت د مسئلی داسی دی»، چی یوی ښځی په قصد روژه ماته کړه نو کفاره خو پر دی لازمه سوه، لکن دغه ښځه هم په دغه ورځ کی حائضه سوه او یا لنګه سوه چی نفساء سوه، هغه لازمه کفاره د دی نه ساقط سوه، او یا ښځه یا نر وو چی په قصد یه روژه ماته کړه نو کفاره خو پر لازمه سوه، لکن هم په دغه ورځ کی یوه داسی ناجوړی و دغه ښځی یا نر ته پیښه سوه چی که د دوی روژه وای ماتول یه او داماتول به د غه مرض و دوی ته رواکړی وای، نو هغه لازمه کفاره د دوی نه ساقط سوه او نه ساقطیږی کفاره په سبب د دی چی دغه سړی چی کفاره پر لازمه سوی وه له دی سببه چی په قصد یه روژه ماته کړی وه په زور چا سفر ته روان کړی، نو پر دغه سړی کفاه باقی ده»

**فَائِدَه**: کړ دغه سړی چی کفاره پر لازمه سوی وه پخپله خوښه په سفر وتلی وی نو کفاره په طریق اولی پر پا نه ده» در»

**پوښتنه**: په دغو څلورو سره وو صورتونو کې چې وړوسته تر لزوم د کفارې عذر پېښ سوی دی یعنې حیض، نفاس، مرض، سفر، نو ولې به د درېو اولو صورتونو کې لازمه کفاره ساقطیږي او په څلورم صورت کې نه ساقطیږي ی **جواب**: فرق په دا دی چې په اولو درېو صورتونو کې عذر د صاحب الحق د خوا دی یعنې د خدائ د خوا چې روژه هم دده حق دی. او په څلورم صورت کې عذر د بنده د خوا دی چې مکره دی او یا پخپله روژاتی دی.

**مسئله**: که سړی مرض مُبیح پخپله وځانته پېښ کړي، یعنې یا په ځان تبې کړي او یا په قصد د بام څخه ځان را وا چاوه وغیره ذالک، نو هغه لازمه کفاره دده څخه نه ساقطیږي، ولې چې عذر د صاحب الحق د خوا نه دی بلکه دده د خوا دی «ک،م»، **مسئله**، یو روژاتی په یوکار کې ډېر ځان ستړی کړي او وخت د دولې وو، نو ډېر تږی سو بیا ره یې روژه ماته کړه کفاره بانده سته، ولې چې ستړتیا دده د خپله لاسه څخه پیښه سوه د صاحب الحق د خوا نده ه او هغه خبره چې بقالي کړیده چې پر دغه سړي کفاره نسته، اعتبار نه لري، ولې چې ددی سړي او د «مَن سُوفِرَبِه» څخه فرق دی» قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَالكَفَارَةُ تَحرِيرُ رَقَبَةٍ وَلَوكَانَتْ غَيرُمُؤمِنَةٍ

او کفارة الصوم آزادول دی د مریي که څه هم مسلمان نه وي، او امام شافعيؒ وائي چې په تحریر د کافر کفاره نه ادا کیږي ځکه دا کفارة الصوم پر کفارة د قتل الخطاء قیاسوي چې هلته کې تحریر رقبة مُؤمنةٍ راغلي دي، موږ وایو چې په کفارة الصوم کې رقبة مطلق راغلی ده، «فالمطلق یجری علی اطلاقه والمقید علیٰ تقییده»، ولې چې دا واقعی سره جلا دي، کما تقرر فی اصول الفقه،

**فائده**: د مریي ازادول به په نیت د کفارې وي **فائده**: مریي که لوی وی او که کشنی حتیٰ شیرخوره کفاره ادا کیږي، او یا چاته مریي په ګرو ورکړي، او یا تنبیدلی وی لکن چې ژوندیه معلوم وي، او یا خصي وي، او یا په یوه سترګه ړوند وي، او یا یه یو لاس یا یوه پښه پرې وي، او یا د سړي قریب وي چې په نیت د کفارې یه اخلی وي او د قریب څخه، ذا رحِمٍ محرمٍ مراد دی، ولې چې د هغه په شراء کې نیت د کفارې شرط دی





**فائده**: کې دواړه لاسونه پرې وه په نورو قرټیا نو کې لکه دا کانړوی وغیره یا په دواړي پښې پرې وي، یا ګونګی وو، یا په دواړو سترګو ړوند وو، او یا د همیشه د پاره لیونی وو، نو د دغو مریانو په ازادولو سره د کفارې غاړه نه وو زي، «م،ط،د»، قَالَ المُصَنِّفُ

## فَإِنْ عَجَزَعَنْهُ صَامَ شَهرَينِ مُتَتَابِعَينِ لَيسَ فِيهِمَا

او که چیري د غه روژه ماتوونکی عاجز وو د مریي د ازادیدو څخه یعنې نه ئې مریي درلودی او نه ئې قیمت چې په را یې کښي او یا لکه په او سني زمانه

## يَومُ عِيدٍ وَلاَ اَيَّامُ التَّشرِيقِ

کې په هیڅ اسلامي مملکت کې مریي موافق د شریعت سره وجود نه لري، نو بیا دی د غه سړي روژې ونیسي دوه میاشتې پرله پسې یعنې په مابین کې به ئې روژه نه خوري، او نه به وي په دی دوو میاشتو کې دا ختر ورځ، او نه د تشریق ورځې د لوی اختر، ولې چې د دغو ورځو نیولو څخه نهي راغلی دی، قَالَ المُصَنِّفُ:

## فَإِنْ لَّمْ يَستَطِعْ اَطعَمَ سِتِّينَ مِسكِينًا يُعَشِّيهِمْ وَيُغَدِّيهِمْ

او که طاقت د دو میاشتو روژو نه درلودی یعنې په سبب د کبرسن (سپین ږیرتوب) یا مرض وغیره بیا دی نو ډوډی ورکړي، و شپیتو مسکینانو ته، ماښام

## عِشَاءً وَغَدَاءً

او غرمه، مګر دو نه ډوډی چې مړونکې د دوی وي، **مسئله** پر یو ځای اجتماع د ۶۰ مسکینانو ته شرط نه ده بلکه صرف عدد د (۶۰) مسکینانو شرط دی که څه هم په تېت پال وي، قَالَ المُصَنِّفُ

## اَوغَدَائَينِ اَوعَشَائَينِ اَوعِشَاءً وَسَحُورًا

او یا دی دوه غرمې ډوډی ورکړي، او یا دی دوه ماښامه ډوډی ورکړي، او یا یو ماښام او یو پیشلمه یعنې که روژه وه، ډوډی ورکړي، **مسئله**: دا شرط دی چې هغو اولو مسکینانو چې ته غرمه یا ماښام یې ډوډی ورکړې وی هم بعینه هغو مسکینانو ته دا بل وخت ډوډی ورکوي

حتیٰ کی عزمه ۶۰ مسکینا نوته ډوډی ورکړه اوما بنام یه بیا نوره ۶۰ مسکینا نوته ډوډی ورکړه غاړي یه نه خلاصیږی تا چی دیوی ډلی ډوډی بیرته اوه نه ګرځوی »

**مسئله**: کی یوه مسکین ته ۶۰ ورځی دغرمی او ما بنام ډوډی ورکړه هم صحیح ده »

**مسئله**: چی پر سترخوان یه مسکینان کښینه وَل نو ده ټولو د مړتیا تروخته بر سترخوان نه څندی ټولوي، **مسئله**: که ډوډی غلمینه وه نو وچه ډوډی هم کافی ده که څه هم غوښی وغیره نه وی ورسره، اوکه اور بشینه وه نو یو شیٔ دتیریدو ورسره شرط دی که څه هم شلومبی یا کرتوی، ولی چی وره بشین زیړه ده، **مسئله**: که یو یه دغو مسکینانو کی موړوه یعنی یو پیلا یه ډوډی خوړلی وه هغه کفایت نه کوی که څه هم د دغه سړی دونه لوی نسی وی چی سره دیووار ډوډی خوړلو او س هم د بل خالی نسی سړي قدر ډوډی خوړلای سي ولی چی دغه سړی خوده یعنی کفاری والا موړه نه کی بلکه نیم نس یه وره ډک کړي، قال المصنفؒ

# اَوْ يُعْطِى كُلَّ فَقِيْرٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ اَوْ دَقِيْقِهٖ اَوْسَوِيْقِهٖ

اویادی ورکړی هر فقیر ته نیمه کاسه دغنمو او یا اوړه دغنمو او یا سویق دغنمو، یعنی چی غنم

# اَوْصَاعَ تَمْرٍ اَوْشَعِيْرٍ اَوْقِيْمَتَهٗ

نښی کړی او بیا یه اوړه کړی لکه د عربو چی په بچواکی عادت وو یه سفروکی، تا چی هر ځای پنخولو ته د ډوډی ضرورت نه وی بلکه دوی به دغه سویق په اوبو لا نده کړه بیا بی خوړل یا ځښل، اوکی نښی کړی نه وای بیا خو صرف اوړه خوړل د طبیعت ته موافق نه دی بلکه پر سړی بد لګیږی، کما هو ظاهرٌ، او یا دی یوه کاسه خرما ورکړی، او یا یوه کاسه اوره دبتی او یا قیمت د هر یوه چی وي» **پوهه**: چی کاسه څلور کیلو ده او نیمه کاسه دوه کیلوده » قَالَ المُصَنِّفُ:

# وَكَفَتْ كِفَارَةٌ وَاحِدَةٌ عَنْ جِمَاعٍ وَاَكْلٍ مُتَعَدِّدٍ فِىْ

اوکافی ده یوه کفاره دجماع وسپر روژه کی په قصد سره او د خوړلو څخه په قصدسره یه خوړو





# اَيَّامٍ لَمْ يَتَخَلَّلْهُ تَكْفِيْرٌ وَلَوْمِنْ رَمَضَانَيْنِ عَلَى الصَّحِيْحِ

کی متعدد وارونه، لکن چی په مابین کی کفاره نه وی ورکړه سوي، که څه هم دغه جماعی او خوړل د دوو روژو وی لیعنی د دوو میاشتو د روژی پر صحیح روایت باندی: د روایش واقع دی مسئلی دا دی چی یو روژاتی دیوی روژی په میاشت کی څو واره جماع وکړي او څو واره یه خوړلو وکړي، یعنی په قصد یه دا کارونه دوه ځی وکړه نو د ټولو یوه کفاره کافی ده، په اتفاق د روایاتو، ولی چی مقصود د کفارې څخه زجر دی او د دغه سړي زجر یه یوه کفاره کیدای سی» اوکی د دوو میاشتو د روژی یه دغه کارونه وکړه او کفاره یه تر اوسه نه وه ورکړی هم یوه کفاره یه بس ده، په نیزد امام محمدؒ، قال فی الاسرار والبزازیة وعلیه الاعتماد، ولذا قال المصنفؒ علی الصحیح، لکن په بحر الرائق کی واقع چی ظاهر الروایة دا دی چی که روژه ما تول په دوو میاشتو کی وه دوه کفاری پرلازمیږی، که څه هم اول کفاره یه نه وی ورکړي قال وهو الصحیح کذا فی الجوهرة» فاختلف التصحیح فی هذه المسئلة فالاحتیاط فی ظاهر المذهب کما لا یخفی» در قَالَ المُصَنِّفُ:

# فَاِنْ تَخَلَّلَ التَّكْفِيْرُ لَاتَكْفِىْ كِفَارَةٌ وَاحِدَةٌ فِىْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ

اوکه چیری کفاره په مابین کی ورکړی وه لیعنی یو وار چی روژه یه په قصد ماته کړه په هره توګه چی وی یعنی که جماع وی اوکه خوړل وی نو یه کفاره ورکړه وروسته یه بیا په هغه کار بیا بل کار بیا روژه قصدًا ماته کړه، نو هغه د مخه چی کفاره ورکړی ده هغه کفایت نه کوی بلکه بله کفاره به ورکوی په ظاهر روایت کی، ولی مقصود د کفاری څخه خوزجر وو، نو ده چی بله پلا روژه ماته کړه نو په اوله کفاره د ده ته زجر نه دی حاصل سوي، نو ځکه بل زجر غواړی، او بله خبره داده چی زجر خو تر ګناه وروسته وي، نو اوله کفاره خو تر دوهمی ګناه د مخه ده» «شِعر»

واحسن منك لم ترقط عینی ﴿ واجمل منك لم تلد النساءُ ﴿
خلقتَ مبرءًا من کل عیبٍ ﴿ کانك قد خُلقتَ کما تشاءُ ﴿

# بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّوْمَ مِنْ غَيْرِ كَفَّارَةٍ

دا باب ثابت دی په بیان کی دهغو شیانو چی روژه خوماته وی مگر کفاره نه لازموي،

## وَهُوَ سَبْعَةٌ وَخَمْسُوْنَ شَيْئًا

اوهغه چی روژه فاسده وی او نه لازموی کفاره اوه پنځوس شیان دی **بیوه سه**

چی امام طحطاویؒ د دغو ۵۷ شیانو د پاره یو مختصر قانون کلی بیان کړی دی چی ترهغه دغه ټوله ۵۷ اوه پنځوس شیان لاندی کیږی یعنی چی قضاء د روژی پرسته او کفاره نسته هغه قانون دادی، چی په بیوشی کی غذاء والی نوی او نه معناد غذاء پکښی وی لو دهغه په خوړلو سره روژه ماتیږی او کفاره نسته، او یا غذاء پکښی وی لکن عذر شرعی ورسره ملگری وی، او یا قصرد غذاء، او د اشیٔ ورسیږی ونس ته یا ودماغ ته، او یا کمال شهوت دفرج پکښی وی یعنی مجرد جماع چی د دی ټولو مثالونه به د مصنفؒ په بیان کی راسی ان شاء الله نو کفاره نسته او قضاء سته،

## قَالَ إِذَا أَكَلَ الصَّائِمُ أَرُزًا نِيًّا أَوْ عَجِينًا أَوْ دَقِيقًا

کله چیری وخوړی روژاتی په وریځ کی دادانې روژی، وچی ورجی، یا خمیر اوړه او یا وچ اوړه، لکن چی د دغو اوړو سره غوړی یا دوبنا یا بوره نه وی کړه، او که د دغو شیانو تخریو ورسره کړه وو بیا کفاره هم پر واجبه ده، م، قال المصنفؒ:

## أَوْ مِلْحًا كَثِيْرًا دُفْعَةً

او یا وخوړی ډیره مالگه په یوه پلا، او کی په ډیرو وارو سره ئی وخوړله نو په اوله پلا خوړلو سره په هم روژه ماته سوه هم کفاره پر لازمه سوه، نو ځکه به ستا تحز سوال وکړی چی کوم دی هغه چی په لږ خوړلو سره ئی کفاره لازمیږی او ډیر په خوړلو سره په روژه ماتیږی لکن کفاره نه لازمیږی، نو ته ورته ووایه چی هغه مالگه ده،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه





## قَالَ المصنفؒ أَوْ طِيْنًا غَيْرَ أَرْمِنِيٍّ وَلَمْ يَعْتَدْ أَكْلَهُ

او یا یه وخوړله خټه چی ارمینی نه وه، او حال دا وو چی دی یه په خوړلو عادی نه وو، او که خټه ارمینی وه چی هغه دواء ده او یا غیر ارمینی خووه لکن خوړونکی ورسره عادت وو، نو بیا قضاء او کفاره دواړه پرسته مطلقًا، ط، عن،

## قَالَ المُصَنِّفُ أَوْ أَكَلَ نَوَاةً أَوْ قُطْنًا أَوْ كَاغَذًا

او یا یه وخوړله دخرما منډکه یا پنبه یا کاغذ، یعنی دغه سی شیان چی عادتًا نه خوړل کیږی مراقی وائی چی یا یه شین رنگ او یا زیړ رنګ وخوړلو واچوه، نارې یه شینی یا زیړی سوی نو هغه نارې ده تیری کړې هم روژه ماته ده او کفاره نسته، قال المصنفؒ:

## أَوْ سَفَرْجَلًا وَلَمْ يُطْبَخْ

او یا یه وخوړی بهی چی پوخ سوی نه وو، ولی د آسی وخت بهی، په عادت کی خلک نه خوری او که پخ بیا یه په خوړلو سره کفاره هم لازمیږی، قال المصنفؒ:

## أَوْ جَوْزَةً رَطْبَةً

او یا یه وخوړی لوند جوز، لکن یو مسئله چی چی د لاندی جوز په خوړلو کی تفصیل سته هغه دادی چی د غه جوز مغز نه وو نیولی، نو په خوړلو کی کفاره نسته، او کی مغز نیولی وو نو روژاتی هغه جوز سره د پوستکی وژووی او تیریه کړی، نو مونږ مشائخ وائی کی پوستکی تر مغز د مخه حلق ته ورسیدی نو خو یه ماته سوله مگر کفاره باندی نسته، او کی حلق ته اول مغز ورسیدی بیا کفاره باندی سته، ولی چی په اول صورت کی په پوستکی روژه ماته سوه پوستکی خو کفاره نه لازموی، او په دوهم صورت کی په مغز و روژه ماته سوه او مغز خو غذائی شی دی کفاره لازموی، **مسئله**: کی وچ جوز سره د پوستکی او د مغزه وچیچی او تیر یه کړ، کفاره باندی نسته، ولی داسی خوړلی د جوز عادی شی نه دی م،

**مسئله**: کی لوند بادام وخوری کفاره پر لازمه ده، ولی چی د بادام لوند خوړل هم عادی شی دی لکن دا هغه چی مغز یه نیولی وی او کی مغز نه وو نیولی بیا کفاره نسته،

ولې چې د بادام خوړلو په داسې صورت کې عادي شې نړدي،» ط « قال المصنفؒ:

## اَوِابْتَلَعَ حَصَاةً اَوْحَدِيْدًا اَوْتُرَابًا اَوْحَجَرًا

او يا يې تيږه كړه وټيره

يعنې كښتې تنګه اوياوسپنه، يا خاورې اوياډبره، نوروژه ماته او كفاره نشته، ولې داشيان نه غذاده اونه په عادت كې خوراكي شيان دي، پردې شيانو قياس دې سره زر يا سپين زر يا زمرد لاجور وغيره» قال المصنفؒ:

## اَوِاحْتَقَنَ اَوِاسْتَعَطَ اَوْاَوْجَرَ بِصَبِّ شَىْءٍ فِىْ حَلْقِهٖ عَلَى الْاَصَحِّ

اويا يې دستور وكړي چې «اماله» په هم بولي يعنې دكوني دخوا دواء نس ته رسول» اويا يې دپزې دخوا لونډ شي وحلق ته ورساوه، اويا يې دپزې دخوا لونډشي وحلق ته ورساوه، اويا په ايجار وكړي چې ورو ستنه عبارت په تفسيردي يعنې يوشئ يې په حلق کې دننه توی کړي" پر اصح مذهب » په اصح وئيلو كې احتراز وكړي دقول څخه دامام ابويوسفؒ چې هغه وائي چې په دغو دريو صورتو كې كفاره باندې واجبه ده. دليل دصحيح روايت دى چې كفاره خو مربوط په افطار پورې ده چې صورةً ومعنًا وي، او هغه په خوړلو سره راځي او په دغو صورتو كې خوخوړل نشته، او مطلق فائده چې په دغو شيانو كې سته چې هغه دواوي دي خو روژه ماتوى او كفاره نه لازموي » مر « **مسئله**: كه سړى روژاتى په پزه سره اوبه په پزه او به په زوره كش كړي چې دماغ تې ورسيږي روژه يې ماته سوه » س، ط،

قال المصنفؒ:

## اَوْاَقْطَرَ فِىْ اُذُنِهٖ دُهْنًا اَوْمَاءً فِى الْاَصَحِّ

اويا يې وڅڅولي په غوږ کې روغن يا اوبه نو روژه يې ماته سوه، كفاره نشته پر اصح روايت

**پوهسه**: چې په روغنو كې خو اختلاف نشته چې روژه په ماتيږي ولې روغن خو هم فائده ده او دغوږ د لارې دماغ ته مفطر ورسيدى، لكن په اوبو كې اختلاف دى» قاضيخانؒ اوكمالؒ وائي چې روژه په ماتيږي، ولې چې مفطر دماغ ته ورسيدى دروّ ثاني





په فعل سره فائدې ته اعتبار نشته، او په محيط کې وائي چې صحيح داده چې روژه نه په ماتيږي ولې چې اوبه خود ماغ ته نه ورځي ولاړو كوي، نو فطر كه څه صورةً پيدا سو لكن معنیٰ فطر نشته» مر « قال المصنفؒ:

## اَوْدَاوٰى جَائِفَةً اَوْاٰمَّةً بِدَوَاءٍ وَصَلَ اِلٰى جَوْفِهٖ اَوْدِمَاغِهٖ

اويا يې دواء وكړه دجائفه ټپ اويا آمه ټپ په داسې دواء سره چې هغه دواء ولس ته ورسيږي اويا هغه دواء ورسيده ودماغ ته، **پوهسه**: چې جائفه هغه ټپ دی چې په نس كې وي او آمه ټپ هغه دى چې په سر كې وي، نو دواء عامه ده كه چروي اوكه لنده وي.

**فائده**: دجائفه ټپ په دواء كې تفصيل داده، كه ټپې يقيناً په پوه سو چې دواء د ټپ څخه نس ته ورسيده، نو څو اتفاقاً په روژه ماته سوه اوكه شك وو چې دواء به نس ته رسيدلې وي اوكه نه! نو كه دواء لنده وه امام اعظمؒ وائي چې روژه په ماتيږي، ولې چې لنده دواء غالبًا د ټپ څخه نس ته رسيږي» او يارانؒ وائي چې روژه په په شك نه ماتيږي اوكه دواء وچه وه اوسړى په كښې شكي وو چې رسيدلې به وي اوكه نه! نو روژه اتفاقاً نه ده ماته، **پوهسه**: چې دا شك او يقين په ټپ پورې اړه لري چې ډير ژور ټپ دى چې نس ته نژدې دى اوكه سرسري دى چې د نس څخه لېرې دى يا لرې پرې «

**پوښتنه**: دحديث مبارك څخه داسې معلوميږي چې د روژې ماتوالى په نس او فرج پورې اړه لري، يعنې چې نس ته شئ داخل سي ياده فرج شهوت پر ځاى سي، نو دسر ټپ په دواء سره كه څه هم دماغ ته ورسيږي ولې روژه ماتيږي» **جواب**: چې اطباء او حاكمان او دا اكثر انو په متفقه دول داخبره منلې ده چې دجوف الرأس او دجوف المعدة ترمينځ سورى سته چې هغه شئ چې جوف الرأس ته ورسيږي جوف المعدة ته هم رسيږي» نو ځكه په روژه ماتيږي» هذا حاصل ما في فتح القدير وشرح الطحطاوي مع زيادة من در» قال

## اَوْدَخَلَ حَلْقَهٗ مَطَرٌ اَوْثَلْجٌ فِى الْاَصَحِّ وَلَوْلَمْ يَبْتَلِعْهُ بِصُنْعِهٖ

اویا داخلې سي وحلق ته د روژاتی د باران اوبه یـا واوره کی ځکه هم په اختیار سره تیری نه کړی اوکی په اختیار تیری کړی بیا کفاره هم پر لازمه ده» ط» **فـائِدَه**: په فتاوای هندیه کی وائی که د روژاتی په خوله گرد، دغر ریندی ننوتی، اویا په دواء میده کول اوده هغی دواء خوند یه پـه خوله کی محسوس کړی، اویا دود داوړ یه پـه خوله ننوتی اویا باد دوړی جوړی کړی اوده په خوله ننوتی، اویـاد آسانو وغیره د ځغاستو دوړی دده پـه خوله ننوتی روژه یه نـه ماتیږی»

قَالَ المصنفُ: **اَوْاَفْطَرَخَطَاءً بِسَبْقِ مَاءِ الْمَضْمَضَةِ اِلٰی جَوْفِهٖ**

اویایه روژه ماته کړه په خطاء سره چی نه ئې قصد وو اونه ئې روژه هیره وه بلکه وراندی سوی اوبه دخولې پریولو ونس ته دده ولاړی، نو روژه خویه ماته دَه، اوکفاره باندی نشته لعدم القصد **سـوال**: په صحیح حدیث کی راغلی دی: رُفِعَ عَنْ اُمَّتِی الخطاءُ والنسیانُ وما استکرهه علیه» نو ددی حدیث په مقتضیٰ باید په خطاء سره روژه نه سی ماته لکه په هیره چی نه ماتیږی **جَوابُ**: په حدیث شریف کی مراد رفع دگناه ده یعنی په خطاچی روژه ځندی ماته سی نوگناه کار نه دی، او د روژی ماتوالی یه په سبب دعدم احتیاط دی په مضمضه کی وهذا هوالفرق بین الخطاء والنسیان» فافهم» مر، ط، در، قَالَ المصنفُ:

**اَوْاَفْطَرَمُكْرَهًا وَلَوْ بِالْجِمَاعِ اَوْاُكْرِهَتْ عَلَى الْجِمَاعِ**

اویا چا روژاتی مجبور کړی د روژی پر ماتولو که څه هم پر جماع دمانیی مجبور کړي، قال المراق فی الصحیح وبه یفتی، اویا ښځه روژاتی میړه وغیره مجبوره کړه پر جماع نوده نو په صورت کی پرنو کفاره نشته» **سـوال**: دا نو چی د مجبوری په وخت کی دجماع وغیره لک سونو معلومه سوه چی دده دغه جماع خوښی سوی اوپه راضی سو، نو باید کفاره پروی **جواب** داآله لک والی خو طبعی کار دی دلیل د رضاء او خوښی نه دی، مر، او د روژاتی په صورت کی پر ښځه کفاره نشته» **پـوښتنه**، که ښځه پـه اول کی خود جماع نه مخزیه انکار کاوه لکن نو په زوره پـرتـگا بن یه خلاص کړی او خو نگه چی نر آله ددی په کس ور دننه کړه دی





نو ئې هم خوند ورکړی اوپه دغه کار راضی سوله» نو هم پر ښځه کفاره نشته اوکه خو نگه **جواب** یا کفاره پروی نشته، ولی نفس چی نر آلة ورداخل کړه ددی روژه ماته سوه وروسته ئې خوند ورکول او یا راضی والی خو یه پسله فساده د روژی دی» قَالَ المصنفُ

**اَوْاَفْطَرَتْ خَوْفًا عَلٰی نَفْسِهَا مِنْ اَنْ تَمْرَضَ مِنَ الْخِدْمَةِ**

اویا ښځی روژه ماته کړه د سببه دبیری پرځان باندی چی نو به مریض سم په سبب دخدمت دبادار اویاد میړه که ښځه مینځه وی او که

**اَمَةً كَانَتْ اَوْمَنْكُوْحَةً** حُره منکوحه دیو چاوی، نوکفاره باندی نشته» ولی چی دې روژه په سبب د عذر ماته کړه، لکن معتبر به دی باب کی غلبة الظن دی نه توهم نه دی» **پـوښتنه**: چی د فقه شریف په کتابو کی وائی چی مینځی ته روادی چی منع کړی دخدمت نه د بادار کی داعاجزه کوله د اداء نه د فرضو کارو، نو سره ددغه حکم شرعی بیا هم پرده باندی کفاره نشته چی روژه ماته کړی پـه سبب د عجز د خدمت نه د بادار، نو پـر ځړی ښځی خوبه طریق اولیٰ کفاره نشته په سبب دعذر مذکور وهذا التیمة مذکور فی التاتارخانیة

قَالَ المصنفُ **اَوْصَبَّ اَحَدٌ فِیْ جَوْفِهٖ مَاءً وَهُوَ نَائِمٌ** اویا بـه توی کړي په نس د روژاتی کی اوبه او حال دا چی روژاتی بیده وو مثلاً روژاتی بیده وو او خوله یـه خلاصه پیولی وه بل سړی یه په خوله کی اوبه ور توی کړي هغه اوبه فوراً دحلق دلاري نس ته ولاړي اودی راویښ سو، اویا نسوار وینی خو بیا هغه بل سړی ورته وویله چی مَاستا پـه خوله کی اوبه ور توی کړی او تاتیری کړي روژه خویه ماته سوه، ولی چی مفطر یـه ونس ته ور سیدی مگر کفاره پری نشته ولی چی د روژاتی قصد او رضاء نشته، در» ط وائی چی دا مسئله مصنف ددی دپاره ذکر کړه چی د بعض خلگو به دا توهم وائي چی دغه بیده به لکه بیرو ونکی وی او روژه به ئې نه ماتیږی، وجه دفرق داده چی هیری والا افطار د صاحب الحق جل جلاله دخوا دی، او د مذکور سړی افطار د بنده دخوا دی، نو ددی مثال بل ځای هم سته کله چی ذابح حیوان ذبح

کوی لبِسۡمِ اللّٰہ یہ هیره سو نوذ بیجه حَلاله دَه، ولی شارع تاسی پرمنزله دذاکر دتسمیه نازل کړی دی، اوکه یو سړی دخوب سره سره یو حیوان بیله تسمیه حلال کړی ذبیحه مرداره ده، نو په روژه کی هم یو پر بل نه قیاسیږی، ط، در» قَـالَ المُصنفؒ

## اَوۡ اَكَلَ عَمَدًا بَعۡدَ اَكۡلِهٖ نَاسِيًا وَلَوۡ عَلِمَ الۡخَبَرَ عَلَى الۡاَصَحِّ

اویا خوراك وکړی یو روژاتی په قصد سره پسله دی ځنه دمخی یه په هیره شئ خوړلی وی که څه هم په حدیث نبویؐ خبروی پر اصح مذهب» اوهغه حدیث دادی: مَنۡ اَكَلَ اوشَرِبَ نَاسِيًا وهوصَائمٌ فليتم صَوۡمَه»، نو دغه سړی روژه د قصد په خوړلو ماته سوه اما کفاره نسته باندی،

**پــوښـتـنـه**: سره دعِلم د حدیث نبویؐ چی معنا یه داده: چی په هیره روژه نه ماتیږی نو دده روژه خو پر ځای وه، نو وروسته چی عمدًا خوراك وکړی، نو پس روژی جنایت وکړی باید کفاره باندی ویږ

**جـواب**: حدیث مذکور چونکه خبرواحد دی او یقین نه فائده کوی، نو حدیث دسببه په عمد خوراك سره دده روژه ماته سوه، او قضاء پر لازمه دَه، او کفاره په دی سبب پر ده نسته، چی دقیاس دلاری چی په وخت دنسیان خو مفطر دده و نسته و، سیدی باید روژه یه ماته سی لکن حدیث نبویؐ په روژه خلاف القیاس ماته نه بولی، نو داشبهه سوه په عدم لزوم کی دکفاری چی عمدًا یه بیا خوراك وکړی،» وهذا ظاهر الروایة، طحطاویؒ مراقی، قاضیخان ار قَـال المصنفؒ

## اَوۡ جَامَعَ نَاسِيًا ثُمَّ جَامَعَ عَامِدًا

اویا روژاتی اول وار جماع دماینی سره په هیره وکړی او بیا یه په قصد وکړه، دلیل یه هغه دی چی ذکر سو، قَـالَ المصنفؒ:

## اَوۡ اَكَلَ بَعۡدَ مَا نَوٰى نَهَارًا وَلَمۡ يُبَيِّتۡ نِيَّتَه

اویا یه خوراك وکړی روژاتی ومثل ذالك الشرب وَالجماع، پسله دی ځنه چی نیت د روژی فرضی تَده وَرځی کړی وو، او نیت یه دَشپی ځنه نه وو کړی لکن دامذهب دی دامام اعظمؒ دی یعنی چی کفاره د نسته باندی، ولحچی په دی روژه کی شبهه سته چی امام شافعیؒ دورځی نیت د روژی روانه بوي،، او کفاره





په شبهه سره نه پیږی کما مر مرارًا او یا رائ وائی چی کفاره باندی ستـه، قَالَ المُصنفؒ:

## اَوۡ اَصۡبَحَ مُسَافِرًا فَنَوٰى الۡاِقَامَةَ ثُمَّ اَكَلَ

اویا سړی سحار کړه، چی سفرته یه قصد وو، یعنی دشپی خو یه نیت د روژی کړی وو او لکن سحار یه عزم د سفر وکړی بیا بیرته نیت د اقامت وکړی، نو خوراك یه وکړی نو کفاره نسته باندی که څه هم د دغی روژی په موجوده صورت کی وده ته ماتول حرام دی، او کی دمخه تر نیت د اقامت خوراك وکړی بیا خو په طریق اولیٰ کفاره نسته بلکه حرمت هم نسته، قَـالَ المصنفؒ

## اَوۡ سَافَرَ بَعۡدَ مَا اَصۡبَحَ مُقِيمًا فَاَكَلَ

اویا دغه سړی چی ده شپی یه د روژی نیت خوکړی وو او سحار هم پر نیت د اقامت پاته وو لکن وروسته په سفر روان سو او بیا یه خوراك وکړی، نو کفاره باندی نسته، که څه هم داماتول د روژی حرام دی، قَـالَ المصنفؒ

## اَوۡ اَمۡسَكَ بِلَا نِيَّةِ صَوۡمٍ وَلَا نِيَّةِ فِطۡرٍ

اویا سړی داغسی د خوراك وغیره څخه ځان ساتلی وو، او نه ئی د نیت د روژی وو او نه ئی نیت د خوراك وو وروسته یه خوراك وغیره وکړی کفاره نسته په سبب ددی چی شرط دصحت د روژی په ده کی نه سو پیدا نو روژاتی نه دی،» قَـالَ المصنفؒ:

## اَوۡ تَسَحَّرَ اَوۡ جَامَعَ شَاكًّا فِیۡ طُلُوۡعِ الۡفَجۡرِ وَهُوَ طَالِعٌ

اویا سړی کمی وکړی او یا یه دماینی سره جماع وکړی په داسی حال کی چی دی په دوار وصو تو کی شك وو په سفیدو چاودو کی لکن په حقیقت کی سفیدی چاودلی وی، چی وروسته ده ته هم معلومه سوه نو کفاره نسته باندی، په سبب دشك وو، لکن دی په دی گناه گار دی چی وَلی یه معلومات نه کاوه، مگر د افطار گناه نسته باندی **مسئـله** که سړی ته سره د تلاش د سفیدو درك نه معلومیدی لکن شك وو بیا خوراك وغیره وکړی نو قضاء

د روژې په سبب د شک نشته باندې، د حضرت الامام محمد روایت دی چې سړی سره د شک په طلوع الفجر کې په خوراک وغیره سره گناه گاره دی کې سترگی ضعیفه وی، او یا سپوږمۍ وه چې د سفید ودرلو نه په کښې معلومیدی او یا وریځ وه، وهذا معنی قوله علیه الصلوٰة والسلام: دَعْ مَا یُرِیبُکَ اِلٰی مَا لَا یُرِیبُکَ، پرېږده هغه کار چې تا په شک کې اچوی او غوره کړه هغه کار چې تا په شک کې نه اچوي. قَالَ المصنفُ:

## اَوْ اَفْطَرَ بِظَنِّ الْغُرُوْبِ وَالشَّمْسُ بَاقِیَةٌ

او یا روژه ماته کړه په غالب گمان د لمر لویدو مگر لمر باقی وو مثلاً په وریځ کې وو او ورسته ښکاره سو نو کفاره نشته باندې کې خو هم قضاء پر لازمه ده. **مسئله**: که په غروب کې د لمر صرف شک وو او روژه یې ماته کړه او لمر نه وو لویدلی کفاره باندې شته، په یوه روایت کې، او بل روایت: دا دی چې دا صورت هم لکه په طلوع الفجر کې شک وی یعنی کفاره نشته باندې، والصحیح ما فی المتن تا چې عمل را سی په اصل سره په دواړو صورتو کې چې شپه وه نو اصل دا دی چې شپه به باقی وی سفیدی عارضی شی دی او په دوهم صورت کې چې ورځ وه نو اصل دا دی چې ورځ به باقی وی او غروب الشمس عارضی دی دا فائده په یاد وساته. قَالَ المصنفُ:

## اَوْ اَنْزَلَ بِوَطْیِ بَهِیْمَةٍ اَوْ مَیِّتَةٍ اَوْ بِتَفْخِیْذٍ اَوْ بِتَبْطِیْنٍ اَوْ

او یا روژتی انزال سو په جماع سره د خری مثلاً او یا د مړی ښځی، او یا د مابینې په ورنو کې څان انزال

## قُبْلَةٍ اَوْ لَمْسٍ

کی او یا پر نس د مابینی څان انزال کی او یا په ښکلولو د مابینې په څان انزال کړي، او یا په مسه کولو سره د مابینې انزال سو، نو روژه خویه ماته سوه مگر کفاره باندې نشته، لقصور الجنایة علی الصوم. **مسئله**: که روژتی په لاس سره څان انزال کړی روژه یې ماته سوه لکن کفاره نشته باندې، لما ذکرنا. قَالَ المصنفُ:

## اَوْ اَفْسَدَ صَوْمَ غَیْرِ اَدَاءِ رَمَضَانَ

او یا سړي فاسده کړه یعنی یا په خوراک یا جماع وغیره سره روژه د ماسوی محض د ادائی روژې





د میاشتی روژې که قضائی وی او که نفلی وی نو کفاره نشته ولې چې د بې حرمتی د میاشتی د روژې نه ده کړې چې هغه سبب د کفارې دی. قَالَ المصنفُ:

## اَوْ وُطِئَتْ وَهِیَ نَائِمَةٌ اَوْ اَقْطَرَتْ فِیْ فَرْجِهَا عَلَی الْاَصَحِّ

او یا وغوول سوه ښځه لکن دا بیده وه مگر د شپې دی نیت د روژې کړی وو، روژه خویه په وطی سره فاسده سوه لکن پر ښځه نشته ولې چې دې خو جنایت نه دی کړي، او یا دی ښځې په کس کې اوبه توی کړې روژه خویه ماته سوه لکن کفاره نشته، ولې دا کار مشابه د اما لرسره دی، کما حکم" پس اصح روایت لکن سید وائی چې په دی کې هیڅ اختلاف نشته. ط قَالَ المصنفُ:

## اَوْ اَدْخَلَ اُصْبُعَهُ فِیْ دُبُرِهِ مَبْلُوْلَةً بِمَاءٍ اَوْ دُهْنٍ اَوْ اَدْخَلَتْهُ

او یا یې چخ کړه روژتی گوته خپله په کُنه کې چې گوته یې لنده وه په اوبو یا په غوړو او یا ښځې چخ کړه لنده گوته په اوبو یا غوړو په خپل

## فِیْ فَرْجِهَا الدَّاخِلِ عَلَی الْمُخْتَارِ

داخل کس کې، نو کفاره باندې نشته، لان هذا اقل من الحقنة. **یوه مسئله**: چې روژه یې هلته فاسدېږي چې په قدر د حقنی یې ورچخ کړی، **مسئله**: د استنجاء وهلو په وخت کې که ده روژتي په کنه کې او یا د ښځې په کس کې په سبب د مبالغې په استنجاء کې اوبه ننوتې نو که د حقنی تر اندازې لمې وی، نو روژه یې هم نه ده فاسده او که هغونه مقدار وه روژه خویه فاسده سوه لکن کفاره نشته

**فائده**: که روژتي استنجاء وهله او د کنې کلمه یې راووتله نو ده هغه هم پریوله، نو که ده هغه کلمه وچه کړه په تهو کړه د مخه تر دې چې دی ولاړ سی او کلمه په خپل ځای ته ورسیږي نو ده هغه روژه نه ده ماته، ولې هغه او به خوده څنډی وچې کړې د مخه تر رسیدو و باطن ته او کې کلمه دا غسی لنده وه دی ولاړ سو او کلمه یې ننوتله بیا روژه ماته او کفاره نشته. مط قَالَ

## اَوْ اَدْخَلَ قُطْنَةً فِیْ دُبُرِهِ اَوْ فِیْ فَرْجِهَا الدَّاخِلِ وَغَیَّبَهَا

اویا روژاتی چخ کړي پنبه وغیره په کُنه کی او یا بنځی په دنَنه کس کی او دا پنبه وغیره په
کنه یا کس کی بیخی پټ سوه نو روژه خو یه ماته سوه، ولی چی یو شئ کامِل باطن ته ورسیدَی لکن
کفاره نَسته، او که یو طرف د پنبه وو او غیره د باندی پاته وو، نو روژه یه هم نه ده مَاته، لانّ
تمام الدخول کعدم دخول شئ بالمرة، مَراقی، وقـَالَ المصنفؒ:

اَوْاَدْخَلَ حَلقَهٗ دُخَانًا بِصُنعِهٖ پـه قصد سره چی حلق تی ورسیدَی او یا سَری روژاتی داخِل کړي دود دیو شی
اونس یا دماغ ته ئی ورسیدَی، نو روژه یه ماته ده او کفاره نـسته، په مَراقی کی وائی چی دا حکم په
غیرکی د دود عنبرو یـا اگربتی دی، او که د هغو دود وی نو د کفارة لزوم بعید نه دی للنفع
والتداوی: ثم قـَالَ، وکذا الدخان الحادث شربه، چی مراد ځنی سگریټ او چلم، او بیړی
دی یعنی پـه دی شیانو کی هم کفارة بعید نه دی فتدبر، قـَالَ المُصنفؒ:

اَوْاِسْتَقَاءَ وَلَوْدُوْنَ مِلْئَ الْفَمِ فِیْ ظَاهِرِ الرِّوَایَةِ وَ
او یا روژاتی په قصد قئی وواهه که څه هم تر ډکی خولی کموی پـه ظاهر روایت کی۔ او حضرت

شَرَطَ اَبُوْیُوْسُفَؒ مِلْئَ الْفَمِ امام ابویوسفؒ دخولی ډکوالی شرط بُولی پـوه سـه
چی د امام اعظمؒ څخه چی قئی تر ډکی خولی کموی دوه روایت دی، یو دادی چی روژه په ماتیږی
وهوالموافق لقوله علیه الصلوٰة والسلام مَنْ استقاءَ فلیقض، او امام ابویوسفؒ شرط
بولی په ما توَالی کی د روژی د قصد په قئی سره ډکه خوله، ولی چی کم تر هغه کالعدم دی ځکه
او دس نه په ماتیږی، بعض امامان چی د روژی او او دا سه فرق نسی کولای و عوام ته وائی
وائی چی پـر روژه کی قئی بی قصده په ډکه خوله وواهه روژه یه ماته ده، دا حکم د دوی غلط دی۔
قـَالَ المصنفؒ اَوْاَعَادَ مَاذَرَعَهٗ مِنَ الْقَئِیْ وَکَانَ مِلْئُ الْفَمِ وَهُوَ
ذَاکِرٌلِصَوْمِهٖ او یا روژاتی پـه قصد تیر کړي هغه قئی چی پر ده غالبه سوی وو لیعنی په





قصد یه نه وو وَهَلی، او حال دا وو چی هغه قی په ډکه خوله وواهه او ده ته روژه هم په یاد وَه، نو
روژه یه ماته ده او کفاره نسته باندی، او کی روژه هیره وَه نو روژه یه هم نه ده ماته۔ او که قئی تر
ملئ الفم کم وو نو ده بیرته تیر کړي پـه هغه کی دوه روایته دی په یوه روایت کی یه روژه فاسدیږی
امام طحطاویؒ وائی چی اصح عدم فساد دی، در عن المحیط، قـَالَ المصنفؒ:

اَوْاَکَلَ مَابَیْنَ اَسْنَانِهٖ وَکَانَ قَدْرَ الْحِمَّصَةِ او یا روژاتی وخوړی هغه شی یعنی
ډوډی یا غوښی وغیره چی د غاښو په مابین کی بند وَه او په قدر د یوه نخود وو، نو روژه خو
یه ماته سوه او کفاره نسته، او که تر حمصی کم وو نو روژه یه نه ماتیږی للضرورة ولزوم الحرج

قـَالَ المُصنفؒ اَوْنَوَی الصَّوْمَ نَهَارًا بَعْدَمَا اَکَلَ نَاسِیًا قَبْلَ
او یا یه نیت د روژی وکړی د ورځی پسله دی چی د مخه تر نیت یه خوراک په هیره کړی وو د مخه تر پید

اِیْجَادِ نِیَّتِهٖ مِنَ النَّهَارِ اَوْاُغْمِیَ عَلَیْهِ وَلَوْجَمِیْعُ
کولو د نیت د ده ورځی نو روژه یه ماته ده او کفاره نسته، او یا بیهوښی راغله پر سړي که څه هم ټـول

الشَّهْرِ اِلَّا اَنَّهٗ لَایَقْضِی الْیَوْمَ الَّذِیْ حَدَثَ فِیْهِ
میاشت وی مگر د هغه ورځی قضاء پری نسته چی و ده ته بیهوښی په دَغه ورځ یا په شپه کی د

اِغْمَاءُ اَوْحَدَثَ فِیْ لَیْلَتِهٖ هغی ورپیښه سوی وي پـوه سه چی اغماء یو نوع د مرض ده چی ډیر
دیه نادر دی او احکام د شرعی شریفی بناء پر غالب دی، نو ځکه پر دغه ممتده بیهوشی قضاء
لو ور ځود بیهوشی لازم ده، مگر د هغه ورځی قضاء نسته چی دی په هغه ورځ کی یا
شپه کی بیهوشه سوی دی، للعذر»

اویا روژاتی چخ کړي پنبـه وغیره په کُنه کی اویا بنځی پـه دننه کس کی او دا پنبه وغیره په
کنه یا کس کی بیخی پټ سوه نو روژه خو یه ماته سوه، ولې چې یو شئ کامل باطن ته ورسیدی لکن
کفاره نشته، او که یو طرف د پنبـه وو او غیره دبا ندی پاته وو، نو روژه یه هم نه ده ماته» لانّ
تمام الدخول کعدم دخول شئ بالمرة، مراقی» وقـال المصنفؒ:

**اَوۡاَدۡخَلَ حَلۡقَهٗ دُخَانـاً بِصُنۡعِهٖ** اویا سړي روژاتی داخل کړي دود دلو شي په قصد سره چې حلق تی ورسیدی
اونس یاد ماغ ته ئی ور سیدی، نو روژه یه ماته ده او کفاره نشـته، په مراقی کی وائی چې داحکم په
غیر کی د دود د عنبرو یـا اگربتی دی، او که د هغو دود وی نو د کفارة لزوم بعید نه دی للنفع
والتداوی: ثم قـالَ ، وکذا الدخان الحادث شربه، چې مراد ځنی سگریټ او چلم، او بیړی
دی یعنی په دی شیانو کی هم کفاره بعید نه دی فتدبر» قـالَ المصنفؒ:

**اَوِاسۡتَقَاءَ وَلَوۡدُوۡنَ مِلۡئِ الۡفَمِ فِیۡ ظَاهِرِالرِّوَایَةِ وَ**
اویا روژاتی په قصد قئ وواهه که څه هم تر ډکی خولې کموی سـه ظاهر روایت کی. او حضرت

**شَرَطَ اَبُوۡیُوۡسُفَؒ مِلۡئَ الۡفَمِ** امام ابو یوسفؒ د خولې ډکوالی شرط بولی **پـوه سـه**
چې د امام اعظمؒ څخه چې قئ تر ډکی خولې کموی دوه روایت دي، یو دادی چې روژه په ماتیږي
وهوالموافق لقوله علیه الصلوٰة والسلام مَنۡ استقاءَ فلیقض» او امام ابو یوسفؒ شرط
بولی په ماتوالی کی د روژی د قصد په قئ سره ډکه خوله، ولې چې کم تر هغه کالعدم دی ځکه
او دس نه په ماتیږی» بعض امامان چې د روژی او او داسه فرق نسی کولای وعوام ته وائی
وائی چې په روژه کی قئ بې قصده په ډکه خوله وواهه روژه یه ماته ده» دا حکم د دوی غلط دی»

قـالَ المصنفؒ **اَوۡاَعَادَ مَاذَرَعَهٗ مِنَ الۡقَئِّ وَکَانَ مِلۡئُ الۡفَمِ وَهُوَ**
**ذَاکِرٌ لِصَوۡمِهٖ** اویا روژاتی پـه قصد تیر کړي هغه قئ چې پر ده غالبه سوی وو یعنی په





قصد یه نه وو وهلی، او حال دا وو چې هغه قی په ډکه خوله وواهه او ده روژه هم په یاد وه» نو
روژه یه ماته ده او کفاره نشته باندي، او کی روژه هیره وه نو روژه یه هم نه ده ماته.» او که قئ تر
ملئ الفم کم وو نو ده بیرته تیر کړي په هغه کی دوه روایته دی په یوه روایت کی یه روژه فاسدیږی
امام طحطاویؒ وائی چې اصح عدم فساد دی» در عن المحیط» قـال المصنفؒ:

**اَوۡاَکَلَ مَابَیۡنَ اَسۡنَانِهٖ وَکَانَ قَدۡرَ الۡحِمۡصَةِ** اویا روژاتی وخوړي هغه شی یعنی
ډوډی یا غوښی وغیره چې د غاښونو په مابین کی بند وه او په قدر د یوه نخود وو، نو روژه خو
یه ماته سوه او کفاره نشـته، او که تر حمصی کم وو نو روژه یه نه ده ماتیږی للضرورة ولزوم الحرج

قـالَ المصنفؒ **اَوۡنَوَی الصَّوۡمَ نَهَارًا بَعۡدَ مَا اَکَلَ نَاسِیًا قَبۡلَ**
اویا په نیت د روژی وکړي د ورځی پـله دی چې د مخه تر نیت یه خوراک په هیره کړي وود مخه تر بید

**اِیۡجَادِ نِیَّتِهٖ مِنَ النَّهَارِ اَوۡاُغۡمِیَ عَلَیۡهِ وَلَوۡجَمِیۡعَ**
کولو د نیت د ده ورځی نو روژه یه ماته ده او کفاره نشته، اویا بیهوښی راغله پر سړي که څه هم ټـوله

**الشَّهۡرِ اِلَّا اَنَّهٗ لَایَقۡضِیۡ الۡیَوۡمَ الَّذِیۡ حَدَثَ فِیۡهِ**
میاشت وی مگر د هغه ورځی قضاء پري نشته چې و ده ته بیهوښی په دغه ورځ یا په شپه کی د

**الۡاِغۡمَاءُ اَوۡحَدَثَ فِیۡ لَیۡلَتِهٖ** هغی ور پیښه سوی وي **پوه سه**
چې اغماء یو نوع د مرض ده چې ډیر
امتداد یه نادر دی او احکام د شرعی شریفی بناء پر غالب دی، نو ځکه پر دغه ممتده بیهوښی قضاء
د ټولو ورځو د بیهوشی لازم ده، مگر د هغه ورځی قضاء نشته چې دی په هغه ورځ کی یا
په شپه کی بیهوشه سوی دی، للعذر»

قـال المصنفؒ **اَوجُنَّ غَيرَمُمتَدٍ جَمِيعَ الشَّهرِ** او یا سړی لیونی سو لکن تول میاشت یه په برکی نه وتیول نوقضا د ورځو د جنون پرده لازمه ده: لانہ لاحرج فی قضاء مادون الشهر یعنی کہ ټ بسته میاشت جنون ونیول بیا قضاء پری نسته للحرج ، قـال المصنفؒ:

## وَلَايَلزَمُهُ قَضَائُهُ بِاِفَاقَتِهٖ لَيلًا اَونَهَارًا بَعدَفَوَاتِ

او نه ده لازمه قضاء د روژی پرهغه لیونی چی د شپی به پرسد کیدی، ولی چی شپه محل د روژی نه ده، او یا د ورځی به پرسد سو هغه وخت کی چی **وَقتِ النِّيَّةِ فِي الصَّحِيحِ** وخت د صحت د نیت د روژی به تیر سوی وو یعنی الضحوة الکبری لانہ لا اعتبار للصحة فی هذا الوقت ، فکان الصحة فی هاتین الوقتین کالعدم فکان هو کالمستوعب جمیع الشهر فلا قضاء علیه للزوم الحرج فافهم ،

**پُوه سه**: چی امام طحطاویؒ په ص۵۵۸ د دی باب په پای کی یوه مفید، تتمه راوړی ده چی ترجمه یې داده: په هغو ځایو کی چی په باب کی ذکر سوه چی کفاره پر روژاتی نسته، هغه ځایونه دی چی د روژاتی څخه مرةً بعد اخری په قصد د معصیت د افساد الصوم نه وی پیښ سوی، او که مکرر وارونه په قصد د معصیت د افساد الصوم پیښ سی بیا کفاره بانـدی سته كذا في النهر الفائق،،

آسانه فقه
پښتو یو جلد

قدوری
نکاح پښتو

معارف القرآن
پښتو

ډیر ژر به د مکتبة القرآت والتجوید څخه خپاره سی





## فَصلٌ وَيَجِبُ الاِمسَاكُ بَقِيَّةَ اليَومِ عَلَى مَن فَسَدَ صَومُهٗ

واجب دی ځان ساتل د خوراک او نورو د روژی ماتوونکی شیانو څخه پاته ورځ پر هغه چا چی روژه یې فاسده سوی، **پُوه سه**: چی مصنفؒ چی واجب وویل دا ظاهر الروایت دی او هم صحیح، بعض علماء وائی چی امساک مستحب دی ، حکمت د امساک نه ده د روژاتیانو سره تا چی حق د وخت چی د روژی میاشت ده پر ځای سی ، **فـائِـده** د امساک پر چا واجب دی کی فساد د روژی په عذر سره وی لکه جنگ د دښمن یا تبه چی د وا زائل سی او یـا بی عذره فاسده سوی وی، قَالَ المُصنفؒ:

## وَعَلَى حَائِضٍ وَنُفَسَاءَ طَهُرَتَا بَعدَطُلُوعِ الفَجرِ

او واجب دی امساک پر ښځه چی د حیض او نفاس څخه پاک سی تر پـله سپیدو څخه **فـائِـده** حرام دی امساک پر ښځه چی په حال کی د حیض وی یا نفاس، ولی چی حقیقۃً روژه خودی ته حرام ده نو تشبه به حرام سره هم دی ته حرام ده، **فـائِـده**: که مسافر مقیم سو تر پـله طلوع الفجر او یا مریض جوړ سو، وسته تر طلوع الفجر او یا لیونی پر سد سو په دغه وخت کی هم امساک پر واجب دی **پـوه سـه**: چی هغه کسان چی امساک ورته حرام وی لکه ښځه حائضه یا نفساء په حال کی د حیض او نفاس یا مسافر په حال کی د سفر یا مریض په حال کی د مرض چی خوراک وغیره کوی په پټه دی کوی علانیةً دی نه کوی ، قـالَ المُصنفؒ:

## وَعَلَى صَبِيٍّ بَلَغَ اَوكَافِرٍ اَسلَمَ وَعَلَيهِمُ القَضَاءُ اِلَّا الاَخِيرَين

او د غه رنگه امساک واجب دی پر کشنی چی بالغ سی او یا کافر چی مسلمان سی تر پـله سپیدو څخه لحرمة الوقت بالقدر الممکن ، او پر دغو ټولو قضاء د دغی روژی سته مگر دوه اخیر چی صبی بالغ دی یا کافر مسلمان پر هغو قضاء نسته » لعدم اهلیتهما للصوم فی اول الوقت للصوم فلم یجب علیهما الصوم حتی یجب القضاء »

# فَصْلٌ فِيْمَا يَكْرَهُ لِلصَّائِمِ وَفِيْمَا لَايَكْرَهُ لَهُ وَمَا يُسْتَحَبُّ

دا فصل دی په بیان کی د هغو شیانو چی مکروه وی روژه دار ته، یعنی که څه هم روژه یې نه په ماتیږی او په بیان د هغو شیانو چی مکروه نه وی روژه دار ته، او په بیان کی د هغو شیانو چی مستحب وی یعنی روژه دار ته. قَالَ المُصَنِّفُ:

## كُرِهَ لِلصَّائِمِ سَبْعَةُ أَشْيَاءٍ ذَوْقُ شَيْئٍ وَمَضْغُهُ بِلَا عُذْرٍ

مکروه دی روژه دار ته اوه شیان، خوند کتل د یو شی یا ژوول د یو شی بیله عذره، ولی چی دی فعل کی روژه وفساد ته پیشول دی، امام طحطاویؒ وائی چی د ظاهر نه د مطلق کراهت دا معلومیږی چی کراهت د دغو شیانو تحریمی دی، که څه هم روژه نفلی وی علی المذهب» ط، م، او شمس الائمة الحلوانیؒ وائی چی په نفلی روژه کی پرواه نه لری، ولی چی افطار او ماتول د نفلی روژی بیله عذره روا دی، په یوه روایت کی لکن هغه روایت د ظاهر المذهب نه دی»

**پوښتنه**: چی عذر د خوند کتلو شی روژه دار لره دا هم کیدای سی چی د ښځی میړه بد اخلاقه وی چی پر تروه او بی نمکه کتغ خوابده وي، نو دې ته روا ده چی د کټوی وغیره خوند وګوری او کی میړه حسن الاخلاقه وی بیا یې خوند کتل ورته مکروه تحریمی دی، او منځه هم پر دغه قیاس ده او که روژه دار شی رانیوی او خوند یې ددی د پاره ګنی چی په رانیولو کی خطا نه وزی، په دی مسئله کی اختلاف دی، او د ژوولو عذر دا دی چی دیوی ښځی کشنی د و ډ ی ژ چیله نه سوای خوړلای ژوول یې غوښته او بل بی روژی څوک هم نه وو، چی ددی وکشنی ته ډ و ډ ی ور وژوی نو دی ته که څه هم روژه وی ژوول د ډ و ډ ی مکروه نه دی» والا یکره بالاتفاق» د، م،

**پوښتنه**: چی امام طحطاویؒ په مکروهاتو کی دغه شیان هم ذکر کړیدی ۱ چی روژه دار لمبیږی په اوبو کی ډګوږ، یا پوسکی نه اچوی نه باید چی اوبه یې په کونه ننوزی چی په ګونږ او پوسکی سی دکونی تناو خلاص سو ۲ ماینه ته مکروه ده نفلی روژه چی میړه یې پرکور وي بیله اجازی د میړه الا ان یکون صائمًا او مریضًا، او محرمًا بحج او عمرة» او که میړه په دغسی احوالو کی وو بیا منعه





د ماینی د نفلی روژی څخه نه سی کولای ۳ مزدور یا مینځې ته مکروه ده نفلی روژه بیله اجازی د بادار څخه که څه هم بادار یې مریض یا محرم وغیره وي، ولی چی مقصود د مزدور او مینځې څخه خدمت دی په روژه سره دوی د خدمت څخه ضعیفه کیږی ۴ چا چی څوک مزدور کړی وی نو ده د مزدور روژی په خدمت کی تاوان کاوه بیا مزدور ته روژه نیول مکروه ده او کی تاوان نه کاوه بیا پرواه نه لري، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَمَضْغُ الْعِلْكِ

او د غه رنګه مکروه دی ژوول د ژاولو، یعنی روژه نه په ماتیږی او دا کراهت نراو ښځی دواړو ته شامل دی، وجه د کراهت په دا ده چی سړی چی ژاولی ژووی خلګ چی وائی چی دا سړی روژه خوری نو ځای د تهمت دی» وقد قَالَ رسول الله صلی الله علیه وسلم: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْاٰخِرِ فَلَا يَقِفَنَّ مواقف التهمة» **مسئله**: ژاولی ژوول په غیر کی د روژی ښځو لره مستحب دی او نرو ته مکروه دی مګر په خلوت کی» م، ط» **فائده**: عِلك بعض اهل لغت وائی چی مصطکی دی لکن مصطکی چی هم دا اوس د طبیبا نو سره موجود دی هغه دواء ده د ژاولو څخه نه دی، بعض اهل لغت وائی چی لبان دی چی کندر یې هم بولي، **فائده**: ژاولی دوه قسمه دی یو توری ژاولی بولی چی د هغه څخه د ژوولو په وخت کی اجزاء جلا کیږی او د ناړو سره تیریږی هغه خو مطلقًا که نوی وی یعنی نه وی ژوول سوی او که زړه وی یعنی ژوول سوی وی روژه په ماتیږی، او یو سپینی ژاولی دی، هغه که نه وی ژوول سوی او یا ژوول سوی وی لکن سره غیر متصل الاجزاء وی چی هغو ته پر کند هاری پښتو ژبه خاړچنړ اوائی په دواړو سره روژه ماتیږی، ولی چی اجزاء ځنی جلا کیږی او د ناړو سره تیریږی او که سپینی ژاولی وی او متصل الاجزاء وی، نو د هغو ژوول مکروه دی،

**تبصرة**: هغه ژاولی چی د خارج څخه په اوسنی زمانه کی راځی چونکه په وخت کی د ژوولو د هغو خوږ پوډر یعنی خوږ والی ځنی جلا کیږی او د ناړو سره تیریږی کما یدل علیه التجربة او وروسته ژاولی په کښی پید اکیږی، نو د هغو په ژوولو هم روژه ماتیږی»

اللّٰهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولشارحه ولمن نظر فیه بعین الانصاف»

قال المصنف **وَالْقُبْلَةُ وَالْمُبَاشَرَةُ إِنْ لَمْ يَأْمَنْ فِيهِمَا عَلَى نَفْسِهِ**
او د غه رنګه مکروه ده مچه اخستل او لغړخیسته پریوتل د ماینې سره چې دی کار ته په عربي ژبه مباشرة فاحشه وائي **الْإِنْزَالَ أَوِ الْجِمَاعَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** که سړی مطمئن نه وو په
د غو دوو کارو کې پرځان با ندې د انزال چې صرف روژه بې ماته سي، او د جماع څخه چې هم بې روژه
ماته سي او هم کفاره به پر لازمه سي که د رمضان روژه وه او دا حکم د ظاهر روایت دئ،

**پوښتنه:** چې فرق په ما بین کې د مطمئن او غیر مطمئن په نفس قبله او مچه کې دی چې
غیر مطمئن ته مکروه ده او مطمئن ته نه ده مکروه، ولې چې په حدیث شریف کې د عائشة رض چې
روایت په بخاري او مسلم کړي دی راغلي دي چې علیه الصلوٰة والسلام به د خپلو ښځو څخه مچه
اخستل او دی به روژاتې وو، **پوښتنه:** چې هغه تفسیر چې د رویش د مباشرت فاحشه
وکړي په هغه کې اختلاف او فرق په کراهت او نه کراهت په غیر مطمئن او مطمئن کې خوسته،
او هر چې هغه تفسیر دی چې طحطاوي کړي دی چې مباشرة فاحشه دا دی چې میړه او ماینه دواړه
برنوګان سره وکاږي او د نرد ذکر ښځې د فرج سره په تماس کې وي، نو په فتاوی هندیه کې وائي
چې هغسې مباشرة مکروه علی الاطلاق دی یعنی که هم سړي د جماع او انزال څخه په امن کې وي بلکه
په محیط کې وائي چې هیڅ اختلاف په کراهت کې د د غسې مباشرت، نسته،

**فائده:** کې د ماینې څخه د اسې مچې اخستې چې شونډان د دی ئې بېبېله هغه
علی الاطلاق مکروه دی، ط، وکذا فی الفتاوی الظهیریة، د رویش وائي چې وجه د کراهت
د نفس مچې او نفس مباشرت دا ده چې سړی روژه خپله د فساد سره مخامخ کوي، قال المصنف

**وَجَمْعُ الرِّيقِ فِي الْفَمِ ثُمَّ ابْتِلَاعُهُ وَمَا ظَنَّ أَنَّهُ يُضْعِفُهُ**
**كَالْفَصْدِ وَالْحِجَامَةِ** او د غه رنګه مکروه دی جمع کول د ناړو په خوله کې او بیا په تیرول
یعنی په قصد سره، وجه د کراهت په مشابهت دی د مفطر سره چې





پوغړوپ او به تیري کړي، او د غه رنګه مکروه دي چې هغه کار چې د ده ګمان وي چې د دی کار په کولو به نږ
ضعیف سم د روژې څخه، لکه سړی چې رګ خلاص کړي او یا وینې وکاږي، د رویش وائي چې
مراقي دا سې لفظ هم زیات کړي دی، والعمل الشاق، لکن د دی کار کراهت وهغه چا ته دی
چې د غه عمل شاق ته ضرورت نه لري، او هر چې هغه کسان چې عیال نفقه په عمل شاق
برابره وي هغوته هیڅ کراهت نسته، قال المصنف:

**وَتِسْعَةُ أَشْيَاءَ لَا تُكْرَهُ لِلصَّائِمِ الْقُبْلَةُ وَالْمُبَاشَرَةُ مَعَ الْأَمْنِ**
او نه ۹ شیان مکروه نه دی روژاتي له، یوه مچه اخستل د ماینې څخه یعنی چې پر طریقه د فاحشې چې نه وي
کما مرعنقریب، او بل مباشرة دی د ماینې سره یعنی چې مباشرة په تفسیر ثاني نه وي کما مر، لکن د دواړه کاره
سره د اطمنان د انزال او جماع مکروه نه دي، لما مرمن حدیث عائشة رض المتفق علیه، او دا هم د
ظاهر الروایت دی، او د امام محمد څخه روایت دی چې مباشرت په تفسیر اول مکروه دی، او دا روایت
دی د حسن د امام اعظم څخه، قال المصنف:

**وَدُهْنُ الشَّارِبِ وَالْكُحْلُ وَالْحِجَامَةُ وَالْفَصْدُ** او نه دی مکروه غوړول د
بریتو لانه لیس فیه شئ ینا فی الصوم مر او نه دی مکروه سترګې تورول روژاتي له لانه روی انه علیه الصلوٰة
والسلام اکتحل وهو صائم، او نه دی مکروه وینې کښل یا رګ خلاصول، لکن په شرط د دی چې د دی
چې د روژاتي عقیده وي چې د روژې څخه نه ضعیفه کیږي، مر، کما مر قال المصنف

**وَالسِّوَاكُ آخِرَ النَّهَارِ بَلْ هُوَ سُنَّةٌ كَأَوَّلِهِ وَلَوْ كَانَ رَطْبًا**
**أَوْ مَبْلُولًا بِالْمَاءِ** او د غه رنګه مکروه نه دی د مسواک وهل په اخیر کې د ورځې، کوم چې امام
شافعي په روژه ستر کې تر زوال مکروه بولي، بلکه مسواک وهل
سنت دی په اخیر کې د ورځې لکه په اول کې د ورځې که څه هم مسواک لوند وي، او یا په اوبو لوند
وي لکه بعض علماء د اسې مسواک وهل مکروه بولي، دلیل د دی مسئلې: دا قول د علیه الصلوٰة

والسلام دی: من خیرخلال الصائم السواك» ترجمه: دښوخویو څخه د روژاتی مسواك دی چې
دا حدیث مطلق دی په اول سره نه دی مقید» وورد: كَانَ النبی صلی الله عَلیه وَسَلم یستاك
اول النهار واخره وهو صائم» کفایه «ط» وفی الجامع الصغیر للسیوطیؒ: السواك سنة فاستاکوا
ای وقت شئتم» وفی الحدیث صلوة مع سواك افضل من سبعین صلوة بلاسواك» وهذا الحدیث
لا تقید فیه بالرمضان وغیره ولا باول الیوم فیه واخره» قـال المُصنفؒ:

## وَالْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ لِغَیْرِ وُضُوْءٍ وَالْاِغْتِسَالُ

او د غړغړه مکروه نه دی په خوله اوبه اچول او په پزه اوبه دا خلول بیله اوداسه، لویه اوداسه کی
خوب طریق اولی مکروه نه دی، او د غړغړه مکروه نه دی غسل کول په روژه کی، وقد ورد کل ذالك
فی الاحادیث النبویه» قـال المُصنفؒ:

## وَالتَّلَفُّفُ بِثَوْبٍ مُبْتَلٍّ لِلتَّبَرُّدِ عَلَی الْمُفْتٰی بِهٖ

او د غړغړه مکروه نه دی

پیچل د لمدی جامی بدنان په گرمی کی دخنکی دپاره، پر مذهب مفتی به، چی هغه قول دی د امام ابو
یوسفؒ، ولی چی په حدیث شریف کی راغلی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم اوبه توی کړی
پر سر باندی او دی روژاتی وو، د تندی څخه یا د گرمی د وجهی» رواه ابوداود، وایضا ابن عمرؓ
به بدنان لمده جامه پیچل او روژه به ئی وه، او امام اعظمؒ دا فعل مکروه بولی، ولی په دی فعل سره
روژاتی خپله تنگدلی ښکاره کوی په اداء کی د عبادت د روژی» قـال المُصنفؒ:

## وَیُسْتَحَبُّ لَهٗ ثَلَاثَةُ اَشْیَاءَ السُّحُوْرُ وَتَاخِیْرُهٗ

او مستحب ده روژاتی
لره دری ۳ کاره یو پیشلمی دی، لقوله علیه الصلوٰة والسلام: تَسَحَّرُوا فان فی السحور برکة» د
پیشلمی برکت یو خو قوت دی، د ایندهٔ ورځی پر روژی، اوبل دا چی وخت د پیشلمی وخت د
قبلیدو د دعاء دی. نو چی سړی راکښینی شاید یوه دعاء او استغفار به وَوائی هغه به قبول سی
او بل اقتداء ده په نبی علیه الصلوٰة والسلام پسی. او بل دا چی په ابتداء کی د اسلام ورو ستـ





ترخوب خوړل وغیره حرام وو او پیشلمی د هغه ناسخ وگرځیدی، نو پیشلمی نه کول شبه د عمل
بالمنسوخ ده. **مسئله:** که د سړی په پیشلمی ښی خوړل زړه نه غوښتی نو چی راولیښی
سی او یوه دانه خرما او یا یو غړپ اوبه وڅښی هم سنت پرځای کیږی. **مسئله**
که سړی د اول څخه د شپی ویښ وی، او چی وخت د پیشلمی سی پیشلمی وکی او بیا بیده سی
سنت خو نه سو پرځای بلکه داسی کول مکروه دی ولی چی اغلب کی د دغه سړی څخه د سهار لمونځ
قضاء کیږی او یا جماعت ځنی تیریږی، کما یدل علیه التجربة» او بل مستحب دی ځنډول
د پیشلمی: لقوله علیه الصلوٰة وَالسّلام: ثلث من اخلاق المرسلین: تعجیل الافطار وتاخیر
السحور ووضع الیمین علی الشمال فی الصلوٰة» قـال المصنفؒ:

## وَتَعْجِیْلُ الْفِطْرِ فِیْ غَیْرِ یَوْمِ غَیْمٍ

او بل مستحب وختی روژه ماتول دی په غیر کی د ورځی د وریځی. **پوه سه**
چی روژه دی د مخه تر ما ښامه لمانځه ماتوی، په بحر الرائق کی وائی چی تعجیل مستحب دا دی چی د
تر اشتباك دستورو دی د مخه روژه ماتوی، او په وخت کی د افطار دا دعا مستحب ده،

**د روژه ماتی دعـاء** اللهم لَكَ صُمتُ وَبِكَ اٰمنتُ وَعَلیكَ توكلتُ وَعَلٰی رزقك افطرتُ
ومنَ الغدمن شهر رمضان نویت فاغفرلی ما قدمت وَما اخرتُ» ط»

**تاریخی خبره** هر وخت چی زما شرح ودی پراونه وه رسیدله نو په افغانستان
کی د طالبانو حکومت په سبب د سختو بمبارۍ او سختو راډیو
تبلیغا تو د امریکایانو یك لخت ختم سو» د شوال ۵ تاریخ ۱۴۲۲ هـ ق وَلَعَلَّ الله یُحدِثُ
بعد ذالك امرًا» اللهم انصر الاسلام والمسلمین اٰمین یارب العٰلمین»

## ښها نه فائده د اوسنی د مشکل سوال حل کونکی فائده

**سوال بدین منوال:** په پیچکاری په عبارت دیکرې ستن لگولو په بل عبارت پاڅکښن
روژه ماتیږی او که نه!

**جواب** به نستعین: د دی سوال حل موقوف پر څو مقدمو دی»

**اوله مقدمه:** معنا د روژې کما فی نور الایضاح والمراقی والطحطاوی کما مر وکذا فی سائر کتب الفقه، یعنې په شرعه شریفه کې که څه هم معنا لغوي یې مطلق امساك دیوه فعل او یا قول څخه دی، داده چې سړی به امساك کوي یعنې په قصد، دوړځې یعنې د راچاوېدو څخه د سپیدو تر پرلویدو پورې، د قصدې داخلولو څخه د شئ، نو کې ګرځې په خوله ننوتې روژه یې پرځای ده که هغه شی ماکول عادةً وي لکه ډوډی او یا عادی شئ نه وي لکه خاورې ډبره، وغیره که داد خال په قصد وي چې په بعض صورتو کې کفاره هم پرلازمیږي، کما مر مفصلاً او که خطاءً وي لکه چې دخولې دپریولو څخه او به حُنډی تیرې سي، نو په دواړو صورتو کې روژه نه ده باقي البته که په هیره وي روژه یې باقي ده، وکل ذالک قدمر مفصلاً، او دا ادخال به ونس ته نه کوي دخولې دخواوي او که دېزې دخواوي او یا دتپ دخواوي لکه جائفه تپ یعنې چې تپ د معدې پردې ته رسیدلی وي، ولې چې ودې تپ ته چې لنده دوا واچوي خوا مخواه نس ته رسیږي او په وچه دوا کې اختلاف دی کما مر،

او نه ودماغ ته چې په حکم کې د نس دی، لکه چې په امة تپ کې دواء واچوي، امة هغه تپ دی لکه د سر چې سرمات سي او ام الدماغ ته یعنې پردې د مغزو ته ورسیږي، ولې چې داسې تپ چې دواء واچول سي مغزو ته رسیږي، او د غه رنګه به امساك کوي د شهوت څخه د فرج که د مخ دخواوي او که د شا دخواوي چې دې ته جماع ویل کیږي، او د غه رنګه به امساك کوي د شهوت د فرج څخه په صرف انزال سره لکه په مباشرت فاحشه د ما بینې او یا عبث بالید وي وقد مر کل ذالک مفصلاً، او دا دی امساك سره به نیت ملګری وي، تا چې عادت او عبادت سره جلا سي، او صائمه به کافره وي لیونۍ به نه وي او ښځه به حائضه او نفساء نه وي، ولې چې دا کسان اهل د روژې نه وي، وقد مر مفصلاً فتذکر،

**مقدمه ثانیه:** روژې ته ما توونکي شیان سته یا سره د کفارې لکه په قصد ډوډی خوړل یا او به وچښی یا جماع وکړي یا بیله کفارې لکه چې ډبره تیره کړي وغیره کما مر کل ذالک.

**مقدمه ثالثه:** د روژې په ماتولو غذائي شی او غیر غذائي که څه هم مضر د بدن وي لکه سړی مرګوش وخوري روژه یې ماتیږي که څه هم مضر دی،

**مقدمه رابعه:** که ونس ته بیله معلومولاره په تاثیر سره او یا ودماغ ته په تاثیر سره فائده





ورسیږي روژه نه په ماتیږي، مثلاً روژاتي اوله درجه تبه وي تو ده، نو په اکثران یې پرنس او سر یخي ورسیږي دي، تا چې د نس حرارت او دماغ حرارت یې کم سي او هغه سوهم کمیږي، کما یدل علیه التجربة، نو د غې یخي تاثیر د مسلمات دقیقه و څخه د بدن او معدې او دماغ ته رسیږي او روژه نه په ماتیږي، عند الکل من الائمة،

**مقدمه خامسه:** که چیرې لږه په روژاتي نیښ جګ کې او یې کناتې مثلاً یې زهر توی کړي یا لنډي یا مار په روژاتي غاښونه د ننه کې او د غاښو څخه زهر په کښې توی کړي روژه یې بالاتفاق نه په ماتیږي، ولې دا زهر یوه ادنی ادنی څاڅکی دی نه وجوف ته رسیږي او نه دماغ ته کما هو ظاهر، او سره د دې چې ګاهې دا زهر پرزړه تاثیر وکي او سړی څنډې مړسي او یا یې زړه په تکان سي نو دا تاثیر پرزړه او یا د برانډام چې واقع کیږي، دا په تاثیر سره دی یعنې زهر په داغه کې دی نه نقل کیږي مګر په قدرت الهي تاثیر یې پرزړه وغیره طاري سي نو ځکه روژه نه په ماتیږي، د دې تاثیر مثال په حدیث صحیح کې چې بخاريؒ وغیره روایت کړی دی موجود دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم صحابه رض امر کړه چې تاسې ووژنی ابترمار، چې ښتو یې لنډې بولي، او ذو الطفتین مار چې پرسر دوې ۲ لیکې لري، او علیه الصلوة والسلام وفرمائیله، چې دا دوه حاملې ښځې ته یو کړې وګوري حمل یې اچوي، او د سړي سترګو ته چې وګوري سړی په سترګو ړندوي، نو دا بیخې ظاهره خبره ده چې دا تاثیر په قدرت کامله الهي پورې مربوط دی وبس،

**مقدمه سادسه:** پیچکاري په قدیم زمانه کې د مجتهدینو هیڅ وجود نه درلودی بلکه د شروح قدیمه د فقه شریفې لکه هدایه وغیره، او په زمانه د متونو قدیمه و کې لکه کنز او قدوري وغیرهما او د فتاوی قدیمه لکه شامي، عالمګیري وغیرهما یې هم هیڅ وجود نه لري، او د غه رنګه په زمانو کې د قدیم حکماوو لکه ابن سینا، جالینوس وغیرهما هم پیچکاري وجود نه لري، نو ځکه چې د پیچکارۍ د روژې ماتولو حواله پر دغو کتابو کوي هغه حوالې ټولې غلطې دي،

**مقدمه سابعه:** بعض کسان چې خپلې خبرې په بلند آواز کوي او د بل خبره نه اوري هغه وائي چې د امة تپ یا د جائفه تپ په لنده دوا سره بالاتفاق او په وچه دواء سره علی الاختلاف روژه ماتیږي نو پیچکارۍ هم د دغه قسمه څخه ده دا قیاس د دوی مع الفارق دی ولې چې تا په اوله

مقدمه کی دامة اوجا ئنه تپ حال بالتفصیل و پیژندی، اومطلق پیچکاری پرهغونه قیاسیږی

**مقدمه ثامنه**: درویش یو لویه ورقه ولیده دفتوی چی ډیری امضاوی او مهرونه هم باندی وو هغه چی ما مطالعه کړه فقط د مفسدانو د روژی د مختلفو قسمونو او څو عبارات را نقل کړی وو چی په هغو مفسداتو کی د پیچکاری نه عین وو او نه اثر، او په اخیر کی بی تفریع د روژی ماتولو د پیچکاری پرکړی وه، او د غه رنگه دقانون د شیخ دابن سیناء په حواله وغیره نقلونه کړی وه، چی د مقام سره یی هیڅ رابطه نه درلوده: اذا عرفت هذه المقدمات، نو.....

## پوه سه چی پیچکاری پر څلور قسمه ده

یو قسم چی اصطلاح کی سیرم ورته وائی او د لاسو یا د پښو د غټو رګو په ذریعه ترزیق کیږی په هغه پیچکاری کی شک نشته چی جوف او نس ته رسیږی، ولی چی بعض مریضان چی غټ غټ عملیات او آپریشنونه ډاکټران ورله کړی وی او ورته هغه ته خوړلی شی نه ورکوی بلکه دا غه سیرم ورلګوی چی د مریض کامله غذا په کیږی یعنی نه وږی کیږی او نه تږی کیږی، نو ډاهره خبره ده چی د غه رګونه چی سیرم په کښی ولګوی بالذات یا بالواسطه معدی ته سیرم نقل کوی، نو روژه یی ماتیږی

او بل قسم پیچکاری د بعض ناجوړه بودیاره او یاد طاقت دپاره، او یاد بعض درد دپاره په یورګ کی د لاس وهل کیږی. د غه پیچکاری امکان لری چی په جریان د وینو دی ونس او یاد ماغ ته ورسیږی نو که څه هم دا رسیدل خو یقینی نه دی او روژه په صرف شک نه ماتیږی خو غلبه ظن نو لکن دپاره د احتیاط دی روژه اتی د د غه قسم پیچکاریو څخه ډډه وکړی، او بل قسم پیچکاری صرف په غوښه کی ترزیق کیږی چی هغه هم داسی غوښه وی چی هلته غټ رګونه بیخی نه وی، لکه د لاس موټ او یا کناتی په هغی سره روژه نه ماتیږی۔

**فائده**: د هغی پیچکاری فائده صرف او صرف په تاثیر ده نه په انتقال د دواء، بعض ناپوهه کسان وائی چی بعض د غوښتنو بدن ته طاقت ورکوی، نو ولی روژه نه په ماتیږی

**جواب**: ورکول د روژه اتی وبدن ته خو روژه ماتوونکی نه دی، ولی چی د خارج څخه یو قسم د بنګړی په شکل د دواء ډک آله راځی چی هغه غوڅ چی ئی تر لاس وتړی نو د وینی جریان یی په





بدن کی نو رمالوی، او بدن ته ډیر طاقت ورکوی، آیا که د غه بنګړی روژه اتی ترلاس کړی، نو روژه یی په ماتیږی، او د غه رنګه رګلاتی که د ډیری تندی څخه وحالت ته د ضعف رسیدلی وی، او بیا یی په واله کی کښینی او اوبه پرسر واچوی، او ضعف د تندی یی په قوت بدل سی. نو روژه یی په ماته سوه، لا، بلکه د مخه تیره سوه چی پر مذهب د امام ابویوسف په ورته کارو کی کراهت هم نشته، او نور الایضاح هم دا غه صحیح ګڼلی دی، او امام طحطاوی په هغه ځای کی د امام اعظم وه دلیل ته د کراهت په زړه پوری جواب ورکړی دی،، وَاللّٰهُ اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب

**ګرانو** خوانندګانو! دا وه د فقیر فکر په باره کی د پیچکاریو، لکن بیا هم چی هر عالِم خپلی نظریه ته آزاد دی **فائده** د درویش مسئلی په کتابو کی د پاره د دلیل د علماوو نه دي بلکه د پاره د اظهار د خپل نظر دی او نه د دی د پاره چی علماء دی زما سره تحریری، یا شفاهی مناظره او بحث وکړی، البته خپله رایه و خلګو ته بیانولای سی، او کی زما رایه غلطه په فکر کی ورغله نسبت د غلط ورته کولای سی، لکن د جنګ امیزه خبرو څخه دی ډډه کوی ولی چی: جَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ بِمِثْلِهَا،،

# فَصْلٌ فِي الْعَوَارِضِ

دافصل دی په بیان کی د عوارضو چې خوړك د روژې وسړي ته روا کوی، چې هغه سفر، او مرض، او یاد جاد خوا پر روژه نه نیولو مجبور کول، او حمل د ښځې چې پر ضیاع په بیربړی، او رضاع، لوږه، او تنده، او کلان سالی ده چې هرم یه بولي، چې دا تول به په دی فصل کی مفصل راسی ان شاء الله تعالیٰ **پوهسه**: چې عوارض جمع د عارض ده، عارض ور یځی ته وائي: هَذَا عَارِضٌ مُمطِرنا، اوږ اوی ته هم وائي، او یا رخوته هم وائي، او افـة ته هم وائي، ط: قَالَ المُصَنِّفُ

## لِمَنْ خَافَ الْمَرَضَ اَوْ بُطْأَ الْبُرْءِ

**پوهسه**: دا عبارت او وروسته نور عبارتونه مبتداء ده خبر یه وروسته راځي، که خوك بیربړی پر زیاتوالی د مرض او یاد زیاتوالی د زمانی د نا جوړیدو. **پوهسه**: چې په بحر رائق کی او طحطاوی کی وائي چې دا خوف په اجتهاد پوری د مریض اړه لري، چې غلبة الظن ته ورسیږی، د علاماتو د لاري، یاد تجربي د لاري، او یا په اخبار د طبیب چې مسلمان وی او ظاهر الفسق نه وي او بعض فقهاء په عدالت شرط بولي نفس توهم اعتبار نه لري نو سړي ته په دغو دوو عذرو روژه نه نیول روادی ه

**مسئله** یو غازی چې په غزا کی وی یقینًا پوهیدی چې جنگ به شروع سي، او یا په غلبة الظن پوهیدی، ولې چې اول صف کی د دښمن په مقابل کی وو، او دی به ریدی که روژه ونیسم نو د جنگ څخه به ضعیفه سم، نو ده ته روژه نه نیول یا ماتول د روژې د مخه تر جنگ «م،

**مسئله**: که ښځې د بیرې د حیض په بناء د عادت دد یے، او یا نو سړي نوبتی تبې کیدلی او تبې یه واری وو، نو د غو د وارو نیولی روژه ماته کړه، نو که حیض ښځې ته ورغلی یا پر سړي تبه راغله خو کار خلاص سو، او که داد وارو عذرونه پیښ نه سوه په کفاره کی اختلاف دی صحیح داده چې کفاره نسته باندی، م، در، **مسئله** که د روژی ۳۰ ورځ وه او د خلګو روژه وه نا بیره تهکان وسوه یا د ول وو هل سو د خلګو دا خیال سو چې اختر سو نو یه روژه ماته کړه وروسته معلومه سوه چې تهکان او د ول د واده د پاره وو مثلًا کفاره پردوی نسته » در، مر،

سه خزانة فقه و کبنل ایوب: بیا خوشخط ولیکل خوار حقاني،





قَالَ المُصَنِّفُ

## وَلِحَامِلٍ وَمُرْضِعٍ خَافَتْ عَلَى نَفْسِهَا نَسَبًا كَانَ اَوْ رِضَاعًا

او د غه رنګه فطر روادی ښځی ته چې حمل یه په نس وی او یا کشنی ته تی ورکوی، او دا بیربړی په خپل ځان یعنی یاد مرض څخه یا د مرګ څخه یا نقصان العقل څخه، خواه تی ور کول یه د نسب د لاري چې د کشنی موروی او یا دائي وی یعنی بیګانه ښځه وي، **مسئله**: که مسلمان طبیب و مرضعی ته وویل چې د هغی د کشنی نس ناسته کیده چې ته د غه دوا دو رځی مثلًا یا دری وارو وچیښه نو د کشنی نس ناسته به دی جوړ سی، نو دی ته روژه ماتول روادی په سبب د دغه عذر، قَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ: إِنَّ اللهَ وَضَعَ عَنِ المُسَافِرِ الصَّوْمَ وَشَطْرَ الصَّلٰوةِ وَعَنِ الحُبْلٰى وَالمُرْضِعِ الصَّوْمَ، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَالْعُذْرُ الْمُعْتَبَرُ مَا كَانَ مُسْتَنِدًا لِغَلَبَةِ الظَّنِّ بِتَجْرِبَةٍ اَوْ

او هغه عذر چې معتبر دی یعنی په دی باب کی هغه دی چې تکیه وی پر غلبه ظن یا په د مخه تجربه سره او یا په

## اِخْبَارِ طَبِيبٍ مُسْلِمٍ حَاذِقٍ عَدْلٍ

اخبار د طبیب چې مسلمان وی، او په طبابت کی ماهر وی او عادل وي،

## وَلِمَنْ حَصَلَ لَهُ عَطَشٌ شَدِيدٌ اَوْ جُوعٌ يُخَافُ مِنْهُ الْهَلَاكُ

او د غه رنګه روژه ماتول روادی هغه چا لره چې پیدا سی ده ته سخته تنده او یا سخته لوږه چې بیربړی د مرګ څخه یعنی په سبب د لوږي یا تندی **پوهسه** چې قهستاني وائي چې هر سړي چې د چا مزدوري یا مرئی د چا او یا هغه سړی چې واله یه کار وله چې سخته ګرمی وه چې د تندی د سببه د ځان پر هلاك وبیریدی نو ده ته روژه ماتول روادي او یا حره ښځه وه یا مینځه وه چې په سبب د ډیرې خولو او یا د کالی د پریولو په سبب تنده ډیره پر غالب سوه روژه ماتول ور ته روادی، خ، ط، **مسئله** که سړی روژه په خپل ځان ډیر تکلیف راوستلی وو چې په هغه سبب ده ته دا تنده مهلکه پیښه سوه نکه

نکه یو خوك چي په روژه کي ډیرد غمو لوَ وکړي یا غوټل، وامثال ذالک روژه ماتول خوره ته روادی لکن کفاره به نه وي په ظاهر روایت او د بعض فقهاء وائي چي کفاره به لازمه وي. فسته باندی" م طر

قال المصنف: **وَلِلْمُسَافِرِ الْفِطْرُ وَصَوْمُهُ اَحَبُّ** او روا ده مسافر لره د روژې خوړل او روژه

**پوهه سه** چې مراد د مسافر نه هغه سړی دی چې تر سپیدو د مخه یې سفر شروع کړی وي، نو وده ته روژه خوړل او نیول دواړه روا دي، او که چیری د روژې نیت کړی وو مګر روژه یې ورځ کي سفر شروع کړي هغه ته روژه ماتول نه دي روا مګر هغه وخت چې یو نوی عذر ور پیښ شي.

قال المصنف: **اِنْ لَمْ يَضُرَّهُ وَلَمْ يَكُنْ عَامَةُ رُفْقَتِهِ مُفْطِرِيْنَ وَلَا**

او د اروژه نیول هلته افضل دي مسافر لره که ده ته روژه نیولو ضرر نه کاوه، لعینی مطلق ضرر نه هغه ضرر چې

**مُشْتَرِكِيْنَ فِى النَّفَقَةِ فَاِنْ كَانُوْا مُشْتَرِكِيْنَ اَوْمُفْطِرِيْنَ**

بیره د هلاک په کښې وي ولی که بیره د هلاك وَه په سبب د روژې بیا خو افطار یعنی روژه خوړل واجب دي.

**فَالْاَفْضَلُ فِطْرُهُ مُوَافَقَةً لِلْجَمَاعَةِ** نه افضل، اوبل دا چې اکثر انډیوالان د سفر ده به روژه خوړونکي نه وو. او نه دوی ټوله انډیوالان په اندازاو خرڅ کې سره شریکان نه وَه، او که چیری لن کسان د انډیوالان به خوړونکي د روژې وه او ده به روژه نیوله وَه، بیا نو فطر افضل دی، او که چیری دوی ټوله انډیوالان په خرڅ کې سره شریکان وَه او یا اکثره او ډیر ملګري به روژه خوړونکي وه بیا نو افضل ده لره روژه خوړل دي، د پاره د موافقت د جماعت سره د ملګرو د سفر.

**پوهه سه**: چې صاحب البحرؒ په صورت کې د شراکت فی النفقه علت او دلیل د افضلیت د فطر دا ویلی دي چې په روژه نیولو کې خود د ده تاوان د مال دی تاوان د مال نکه تاوان د سړي د ځان دی، لکن مصنفؒ د دواړو مسئلو دلیل موافقة للجماعة وویه، ولې چې دلیل د بحر والا صاحب النهر رد کړی دی، او وائي چې ممکن ده چې د غه سړي دی سخی او جوانمرد وي په





تاوان د مال دی باك نه کیږي، حاصل د کلام دا دی چې په سفر کې روژه خوړل رخصت دي او روژه نیول عزیمت دی، نو عمل په عزیمت سره اولی دی، که چیری دا مذکوره عذرونه نه وه.

**مسئله**: په نیزد حنیفیانوؒ په سفر کې قصر لمانځه او خوړل د روژې هغه سړي ته هم شامل دي چې سفر یې د پاره د معصیت وی لکه یو سړي چې په غلا پسې سفر کوي، لکه هغه چاته چې شامل دي چې سفر یې د امر مباح د پاره وی لکه سیاحت، او یا د طاعت د پاره وی لکه سفر د حج مثلاً ط. م. غ. د.

قال المصنف: **وَلَايَجِبُ الْاِيْصَاءُ عَلٰى مَنْ مَاتَ قَبْلَ زَوَالِ عُذْرِهٖ بِسَفَرٍ**

او نه ده واجب وصیت کول په هغه چا چې د مرګ سره مخامخ شي د مخه تر زوال د عذر د ده چې سفر وو او یا مرض او یا مثل د هر یوه د سفر او مریض والی

**وَمَرَضٍ وَنَحْوِهٖ كَمَا تَقَدَّمَ** لکه چې د مخه تیر شوه یعنی هغه عذرونه چې روا کوونکي وه د روژې د خوړلو، ولې پر د غه مړي د غه خوړلې روژې لازمې نه دي، د دې د پاره چې ده نوری ورځې نه دي پیدا کړې او خدای جل شانه وائي: فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ، قال المصنفؒ:

**وَقَضَوْا مَا قَدَرُوْا عَلٰى قَضَائِهٖ بِقَدْرِ الْاِقَامَةِ وَالصِّحَّةِ**

یعنی که د سړي سفر و پای ته ورسیدی او یا یې صحت پیدا کړی او یا بل عذر وو هغه زائل سو، نو د غه کسان به قضاء راوړي د هغو روژو چې دوی قدرت پرې پیدا کړی په قدر د اقامت که مسافر وو او روژه یې خوړلې وه یا جوړ سو که مریض وو او روژه یې خوړلې وه. او که قضاء نه وه راوړي پر ده باندی په وخت کې د مرګ وصیت د فدیه ورکولو واجب دی،

**مسئله**: که مړی وصیت د فدیې د روژو مثلاً وکړي، نو د اوصیت د ده د دریمې برخې د مال د ده نافذ دی که وارث د ده لودی، او کی وارث نه وو، نو وصیت به د ټوله مال نه چلیږي، د ا ټوله هلته چې پر مړي پور نه وي باندی او که پور پر باندی وو که ټوله مال یې په پور کې ولاړي نو دده وصیت لغوه سو الا ان یتبرع به الوارث، او که د پور نه څه مال پاته سو بیا د ده وصیت د دریمې

مخه د مَا بَقِيَ چليږي کي وارث دَرلودی، اوکي نه دَرلودی بيا د قوله مَا بَقِيَ بعد الدَّين مخه چليږي،

**مسئله**: که مړي وارث اوقريب دمړيْ خوا مخه روژه ونيسي يا دمړي قضا ئي لمونځونه راوه گرځوي په هغه دمړی غاړی نه خلاصيږی لقوله عليه السلام: لَا يَصُوم اَحَدٌ عن اَحَدٍ وَلَا يُصلي اَحَدٌ عَنْ اَحدٍ» س، در، ط، م»

قال المصنف ر **وَلَا يَجِبُ التَّتَابُعُ فِي الْقَضَاءِ** اوشرط نه ده سره يوځای والی دقضا ئي روژو، ولې چي خدای پاك مطلق ويلی دي» فَعِدَّةٌ مِنْ اَيَّامٍ اُخَر» او د تتابع قيد يې نه دی ويلی» لکن بيا هم عند القدرة مبادرة وقضائي روژو نه او تتابع د هغو مستحب ده مبادرة الى فعل الخير» وبراءة الذمه» **فائده**: په څلورو قسمو روژو کي تتابع واجبه ده په نص قرآنی ع۱ اداء رمضان ع۲ کفارة الظهار ع۳ فدية اليمين بالصوم ع۴ کفارة القتل الخطاء» اوکوم چي وده ته اختيار دی که تتابع کوی اوکه نه! هغه قضاء د رمضان ده» روژی په سبب د سرخرېلود محرم الحج والعمرة په سبب دعذر» او روژی د متمتع الحج والقران، او روژی د جزاء الصيد په حرم کی، او د ۲ قسمه روژی خو په قرآن مبارک کی نه دی ذکر سوی په احاديث صحيحه ووسره ثابتی دی يو قسم روژی د ماتولو د روژی د رمضان په قصد سره چي په هغو کی تتابع شرط ده» او نفلی روژی يا نذری روژی په هغو کی تتابع شرط نه ده، ط، در»

## ابيات

بقبرستان نظر کردم صباحی ؛

ازانها می شنيدم يک صدائی ؛ گلان کلها در خاک ميگفت ؛ همين دنيا نمی آرزد بکاهی ؛ غرض نقشيست کز ما يادماند ؛

که هستی را نمی بينم بقائی ؛ مگر صاحب دلی روزی برحمت ؛ کند در حق اين مسکين دعائی ؛ ندارد توشه راه قيامت ؛

بجز شرمندگی وروسياهی ؛ ندارد طاعت مقبول درگاه ؛ بجز اشک ندامت آه آهی ؛ بحق وحرمت فرقان اعظم ؛

مرا از ذنب عفو کن عذر خواهی ؛ شفيع آورده ام روی محمد ؛ کرم کن بر من گم کرده راهی ؛

**اعتذار** ؛ ارسل النمل من خلوص وداد ؛ لسليمان نصف رجل جرادٍ ؛

قائلاً ذالک منتهی جهدی ؛ والهدايا بقدر من يهدی ؛

احب الصالحين ولست منهم ؛ لعل الله يرزقنی صلاحًا ؛





## درباب تقليد وحذر از لامذهب

حق شده مذهب امام چهار ؛ رهروان ره شه ابرار ؛ خدمت دين احمدی مرسل ؛ کرد هر يک برون زحد وشمار ؛

گفت هر يک که چون حديث نبی ؛ يابی آنجا تو قول ما بگذار ؛ کين همه سعی ما بدين نبی است ؛ بهران عمر کرده ايم نثار ؛

جامعان حديث مرسل پاک ؛ چون بخاری ومسلم احرار ؛ ابن ماجه نسائی وطائی ؛ ترمذی بيهقی اولی الابصار ؛

هم طحاوی حافظ عينی ؛ دارقطنی جامع اضمار ؛ حافظ داری ابوداؤد ؛ بود تقليد نزد شان مختار ؛

اتباع چنين ائمه کن ؛ گوش را نه بدين نوا کبار ؛ که بتقليد هست سنت اوست ؛ بهتر از شر لا است سر دولت ؛

آئے تھے ہم بلبل سیر گلشن کر چلے ؛ دیکھ مالی باغ اپنا ہم تو اپنا گھر چلے ؛

داړان چي پر همه وو محکواوری ؛ مشرف ئی کی دا ذات دکيميا ولی ؛

ملامت پر عبيد مه کوه بی حرمته ؛ خپله سعيه يه مبذول کړود خدمته ؛

که دمانه راته کړی دخپل حسده ؛ بد گوئی هم مه کوه ای بی عزته ؛

قال المنف **فَاِنْ جَاءَ رَمَضَانُ اٰخَرُ قَدَّمَ عَلَى الْقَضَاءِ وَلَا فِدْيَةَ** نو که چيری راغله بله مياشت د روژی يعنی پر سرې د تيری مياشتی د روژی قضائی باندی وپے نو د روژی د مياشتی روژی دی پر قضائی روژو دمخه کړی يعنی شرعًا **بِالتَّاخِيرِ اِلَيْهِ** دغه حکم دی حتی که سړی د روژی په مياشتی کی د قضائی نيت وکړی هغه د ده نيت لغوه دی او روژه به د دی مياشتی روژه ده، او نسته پر دغه سړي فديه د قضائی روژو بلکه وروسته تر روژی به قضائی روژی نسی» وعلم جزاء. قال المصنف **وَيَجُوزُ الْفِطْرُ لِشَيْخٍ فَانٍ وَعَجُوزَةٍ فَانِيَةٍ** او روا ده روژه خوړل ونر ته چي شيخ فانی وی او ښځی ته چي سپين سري فانيه وی، سپين ږيری يا سپين سري ته چي شيخ فان وائی په دی سبب چي نژدی وی وفنا (ومرگ ته، نو مجازدی په اعتبار د ما يؤل اليه لکه په دی ايت کی: اِنِّي اَعْصِرُ خَمْرًا» ای عنبا» او يا په دی اعتبار چي قوت د ده ختم سوی دی نو بيا دغه

لفظ حقیقت دی، م، ط، در،

**مسئله:** یو سړی کړاسی مریض وو چې د صحت څخه ئې امید قطع سوی وو یعنی دو نه وړځی چې دی قضائی روژی په کښی، او کړ ځوی، نو په ځوند دی فدیه ورکړی

**مسئله:** که یو سړی د سببه د ډیری ګرمی پر روژه نیولو قادر نه وو نو روژه دی وخوری ویا په ژمی دی قضاء راوړی، کذا قال الامام الطحطاوی، **فایده:** چې د شیخ فانی د پاره معلوم کلونه او سن نه دی تاکل سوی ولې چې په بدنونو کی د انسانانو فرق سته بلکه مدار پر دی دی چې په سبب د کلان سالی پر ده روژه نیول ډیر بوجړ وی، او په بعض روایاتو کی چې د کاله بن و شیخ فانی ته ښتا کل سوی دی هغه ته اعتبار نسته، قال المصنف

# وَتَلْزَمُهَا الْفِدْيَةُ لِكُلِّ يَوْمٍ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ

لازمه ده پر دوی د دوو فدیه د هری ورځی د پاره نیمه کاسه د غنمو، یعنی یا قیمت د نیمی کاسی.

**مسئله:** د شیخ فانی خوښه ده که د افدیه په اول کی د روژی ورکوی او که په اخیر کی، لکن په شرط د دی چې د اعجز د دوی به تر مرګه پوری پاتی وی، او که وروسته ضعف دفعه سو او بیر روژه نیولو قادر سو بیابی قضاء راوړی کی څه هم فدیه ورکړی وی، م، ط، در،

**مسئله:** که سړی مسافر وو او روژی ئی خوړلی وی او په هغه سفر کی مړ سو پر ده باندې فدیه د هغو روژو لازمه نه ده، نو وصیت هم نه غواړی او که مقیم سو یو څو ورځی مګر قضاء د روژو یه نه راوړه نو د هغو ورځو فدیه پر لازمه ده نو به وصیت په فدیه سره کوی، قال المصنف

# كَمَنْ نَذَرَ صَوْمَ الْأَبَدِ فَضَعُفَ عَنْهُ لِاشْتِغَالِهِ بِالْمَعِيشَةِ

# يُفْطِرُ وَيُفْدِي

لکه هغه څوک چې به فدیه ورکوی چې نذر کړی ئی وی پر خپل ځان ابدی روژه یعنی په ټوله ژوند کی خپل او بیا ضعیف سی د همیشه روژه نیولو څخه په سبب د دی چې د ژوند د معیشت په کاروبار اخته وی، لیکن د غه سړی به هم روژه خوری وفدیه به ورکوی، ولې چې دی پر قضاء یقینًا نه دی قادر، ولې چې د ده ټوله ژوند خو





د نذری روژو دی نو قضائی روژی به څه وخت ونیسی، قال المصنف:

# فَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْفِدْيَةِ لِعُسْرَتِهِ يَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ تَعَالَى وَ

اوکه قادر نه وو د غریبی چې فدیه پر لازمه وه یعنی شیخ فانی او یا د صوم الابد

# يَسْتَقِيلُهُ

نذر والا، پر فدیه باندی په سبب د مسکنت نو دی دی طلب د مغفرت کوی یعنی همیشه کما یدل علیه صیغة المضارع او طلب د عفوی دی کوی د خدائی څخه چې د ده څخه تقصیر و سو په حقوقو کی د خدائی، قال المصنف:

# وَلَوْ وَجَبَتْ عَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِينٍ أَوْ قَتْلٍ أَوْ ظِهَارٍ أَوْ إِفْطَارٍ عَمْدًا فَلَمْ يَجِدْ

او که پر سړی واجبه وه کفاره د قسم او یا د قتل خطاء، یا کفاره د ظهار او یا د روژی په قصد خوړلو کفاره

# مَا يُكَفِّرُ مِنْهُ مِنْ عِتْقٍ وَهُوَ شَيْخٌ فَانٍ أَوْ لَمْ يَصُمْ حَتّٰى

او نه ئی درلودی د کفاری شی چې ازادیده د مریی دی، یعنی د اطعام او کسوت طاقت یې هم نه وو او دی شیخ فانی هم وو یعنی چې د روژی نیولو توان یې هم

# صَارَ فَانِيًا لَا يَجُوزُ لَهُ الْفِدْيَةُ

نه درلودی، او یا یه په اول کی خو یې طاقت د روژی درلودی لکن روژی یې نه وی نیولی حتی چې شیخ فانی سو، نو ده ته فدیه ورکول نه دی روا په دلیل چې قال

# لِأَنَّ الصَّوْمَ هُنَا بَدَلٌ عَنْ غَيْرِهِ

المصنف، ولې چې روژه په د غو صورتونو کی خو بدل د بل شی ده، چې هغه کفاره مالیه ده، د دی سببه چې په روژه کفاره د د غو کارو نه سی ورکولای تر څو چې ده کفاره مالیه څخه نوی عاجزه سوی، **د روښ واړی** چې حاصل د مذکور مسئلو دا دی چې کوم ځای چې روژه اصل او مستقل وی لکه د شیخ فانی روژه او یا د نذر ابدی والا روژه، نو چې دی عاجزی د روژو څخه، نو فدیه ورکول ورته روا دی. او په کومو ځایو کی چې روژه بدل د کفاره مالی وی لکه په مذکوره اخیری ځایو کی، نو په نیز د عجز د روژی څخه فدیه نه ده.

ؤترروا بللّه ده لره بې استغفاره اوطلب دعفوی درب العزت بله چاره نسته « اللهم اغفر ذنوبنا وتقصيرنا فی اوامرک وهجومنا علی معصيتك » قال المصنفؒ:

## وَيَجُوْزُ الْفِطْرُ لِلْمُتَطَوِّعِ بِلَا عُذْرٍ فِيْ رِوَايَةٍ

اوروادی نفلی روژې والا لره ماتول د روژې بیله عذره په یوه روایت کې چې هغه روایت دامام ابی یوسفؒ دی، لکن ظاهر روایت دادی چې دده فطر بیله عذره روا نه دی، اومحیط والاهم دغه ظاهر الروایت صحیح بللی دی، **سوال**: مصنفؒ ولې غیرظاهرالروایت ذکرکړی **جواب**: ځکه چې په صحیح حدیث کې راغلی دی چې: المتطوع امیرنفسه » یعنی که روژه خوری اوکی پوره کوی، نوپه اعتبار د دلیل دا روایت قوی دی نوځکه یې ذکرکړی اوهم ددی سببه محقق ابن الهمامؒ صاحب دفتح القدیر دا روایت مختار کړی دی، قال المصنفؒ

## وَالضِّيَافَةُ عُذْرٌ لِلضَّيْفِ وَالْمُضِيْفِ وَلَهُ الْبِشَارَةُ بِهٰذِهٖ

اومیلمستیا عذر دی هم میلمه لره هم کوربه لره، اوماتوونکی لره د روژې په دغه عذر سره زیری ستّه په دغه فائده جلیله کې، ولې په حدیث شریف کې راغلی دي

**الْفَائِدَةِ الْجَلِيْلَةِ** » مَنْ اَفْطَرَ لحق اخيه يكتب له ثواب صوم الف يوم ومتی قضی يومًا كتب له ثواب صوم الفی يوم » اودا حديث په تاتارخانيه اومحيط ، اومبسوط کې نقل شوی دی، اوپه تجنیس اومزید کې وائی که یو سړی دسحار دخوا روژه نفلی نیولی وه بیاده ته یو اشنای دښناخته گانو ځنځ راغلی اووده ته یې وویل چې روژه ماته کړه: لَا بَأْسَ بان يفطر ثم ذكر له الحديث »

**فائده**: په فدیه کې دوه وخته اباحت یعنی میلمستیا دوړځی دوه وخته چې ډمرنیا وی روا ده لکه تملیک چې روا دی.

**فائده**: هغه مالی کار چې په لفظ د اطعام راغلی وی لکه فدیه اوکفاره د ظهار اود مفطر د روژې، فاطعام ستين مسكينا ، اويا په لفظ د طعام لکه جزاء د صید مقتول فی الحرم اوالاحرام، قال عزوجل : اوكفارة طعام مساكين ، په هغه کفارو کې تملیک او اباحت دواړه روا





دی اوچې په لفظ د ایتاء راغلی وی لکه زکوة : قال الله تعالیٰ: وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ، یا په لفظ داداء راغلی وی لکه په سرسایه کې : قال علیه السلام: اَدُّوْا عَنْ كُلِّ حُرٍّ ، الحديث ، په هغه کې تملیک شرط دی اباحت کافی نه دی » مر، ط » در »

**پوښتنه**: ماتول د روژې یا فاسدول د لمانځه چې دواړه نفلی وی بیله عذره باید حرام وای: لقوله تعالیٰ: وَلَا تُبْطِلُوْا اَعْمَالَكُمْ ، **جواب**: چونکه دا ایت مبارکه که ځه هم قطعی الثبوت دی، لکن قطعی الدلالة نه دی پر عدم الابطال الظاهر یعنی فاسدول معنا دایت دی داوی . وَاللّٰهُ اَعْلَمُ ، چې تاسې مه باطلوی ثواب دعملو په سبب دریا اوسمعی نوحرمت خونه په ثابتیږي البته ماتول اوفاسدول بیله عذره مکروه دی اوکه عذر وو بیا کراهت هم نسته اتفاقًا، **مسئله**: ضیافت عذر دی لکن قبل الزوال اوبیله زواله بیا روژه ماتول نه دی روا، مگرهغه وخت که په نه ماتولوکې عقوق داحد الوالدین راتی بیا پسله زواله یې هم ماتول ورته روادی، **مسئله**: که سړی ووئیله چې پر ما دی ماینه طلاقه سی چې زه به خپله روژه نفلی ماتوم نوصحیح مذهب دادی چې روژه دی ماته کړی ولو بعد الزوال **سوال**: مصنفؒ ووئیله چې ضیافت عذر دی یعنی نفلی روژه ماتوی اوسره ددی چې په حدیث صحیح کې داسې راغلی دی: اِذَا دُعِيَ احدكم الی طعام فليجب » که څوك وبلل سو وروی ته دعوت دی قبول کړی: فَاِنْ كَانَ مفطرًا فليأكل وان كان صائمًا فليصل » نوکې روژه نه وه خوړه وړی به وخوری اوکې روژه وه هورې دی نفل وکړی، نوددی حدیث معنا اومفاد خودادی چې روژه دی نه ماتوي،

**جواب**: حدیث محمول پردی دی چې دمضیف خوا نه بدیږی چې میلمه روژه نه کی ماته اوعبارت دمصنفؒ محمول پردې دی چې دمضیف خوا بدیږی، وهذا من سوانح الوقت **پوه سه** چې فرضی روژې که ادائی وی اوکه قضائی وی اود غیر رنګه د نذری روژی ماتول که دچا خوا بدیږی اوکه نه نه دی روا كذا فی شرح الجامع الصغير للسيوطیؒ ذكره الطحطاویؒ ، قال المصنفؒ

## وَاِذَا اَفْطَرَ عَلٰى اَيِّ حَالٍ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ

اوکې نفلی روژه ماته کړه په هرصورت سره چې وی

یعنی که عذر وی او که نه نو پرده قضاء لازمه ده، نو دا لکه نفلی لمونځ چې سړی فاسد کړی

## اِلَّا اِذَا شَرَعَ مُتَطَوِّعًا فِیْ خَمْسَةِ اَیَّامٍ یَوْمَیِ الْعِیْدَیْنِ

مګر هغه وخت قضاء نشته کله چې شروع وکړه په نفلی روژې په پنځو ورځو کې د کال چې ایام منهیه یې بولی

## وَاَیَّامُ التَّشْرِیْقِ فَلَا یَلْزَمُهُ قَضَائُهَا بِاِفْسَادِهَا

چې دوه د اخترو ورځې دی او درې وروسته ورځې دی تر لوی اختر وروسته چې ایام التشریق یې هم بولی

**فِیْ ظَاهِرِ الرِّوَایَةِ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ** ولې چې په دې پنځو کې چې نفلی روژه سړی ونیسی او بیا یې فاسده کړی قضاء یې نشته په ظاهر روایت کې، او خدای پاک ډیر ښه خبردار دی،

**پوښتنه:** چې امام ابویوسفؒ او امام محمدؒ وائی چې پرده غرسړی خوافطار واجب دی للنهی عن الصوم فیها، او قضاء هم پر واجب ده، ولې چې شروع په نفلوبیه وکړه، امام اعظمؒ وائی چې قضاء به هلته وائی چې ده تقصیر کړی وای په ماتولو کې د روژې، او سره د دې چې دی مقصر نه دی بلکه افساد پر واجب دی،

## حضرت ایوبته

خدای دې وساته له هره مشکلاته
ناروغی او د هر قسمه آفاته

دا دعا درته هر یو مسلمان نل کړی
حقانی هم دا دعا کړی آقا تاته

د خوار حقانی په قلم ولیکل سو





# بَابُ مَا یَلْزَمُ الْوَفَاءُ بِهٖ مِنْ مَنْذُوْرِ الصَّوْمِ وَالصَّلٰوةِ وَنَحْوِهِمَا

دا باب دی په بیان کې د هغه عمل چې پر سړي وفاء په کول لازموی چې نذر کړی روژه وی او یا لمونځ او یا مثل د هغوی وه، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## اِذَا نَذَرَ شَیْئًا لَزِمَهُ الْوَفَاءُ بِهٖ اِذَا اجْتَمَعَ فِیْهِ ثَلَاثَةُ شُرُوْطٍ

کله چې نذر کړه پر ځان باندې یو شئ، نو پرده وفاء په هغه سره لازمه ده که په دې نذر کې درې شرطه موجود وه، قَالَ اللّٰهُ تعالیٰ: وَلْیُوْفُوْا نُذُوْرَهُمْ، والامر المطلق للوجوب کما تقرر فی اصول الفقه وروی البخاریؒ: ان علیه الصلوٰة والسلام قال ... مَنْ نذر ان یطیع الله فلیطعه ومن نذر ان یعصی الله فلا یعصیه، وایضا قد اجمع الامة المرحومة علی الایفاء بالنذر، نو دی کبله بعض فقهاء وائی چې ایفاء په نذر سره فرض ده، مردر، علامه اکملؒ او نور فقهاء هم وفرضیت ته تللی دی، امام طحطاویؒ وائی چې قول په وجوب د ایفاء بالنذر او فرضیت ده، هغه دوه قوله دی چې هر یو ته ترجیح د فقهاؤ د خوا ورکړه سوی ده، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**اَنْ یَّکُوْنَ مِنْ جِنْسِهٖ وَاجِبٌ** یو شرط په منذور کې دا دی چې د ده د جنسه ځنې واجب وی یعنی د طرفه د خدائی یعنی واجب اصالتاً لا تبعاً نو ځکه نذر په اودا سه سره یا په قرائت د قرآن پاک نه دی صحیح ولې چې په تبع د لمانځه واجب دی یعنی فرض دی، **سوال:** نذر د اعتکاف صحیح دی او سره د دې چې د خدائی د خوا شئ من جنسه فرض نشته، **جواب:** د اعتکاف معنا لبث دی او د ده د جنسه ځنې فرضی لبث موجود دی چې هم اصلی دی، چې وقوف په لمانځه کې دی،

**فائدة سنیة** ذکرها صاحب الکفایه، درویش وائی چې صاحب الکفایة، د شرط اول په باب کې یوه زیبا فائده راوړې ده، چې اصل په صحت کې د نذر دا ده چې منذور به د جانبه ځنې د خدائی واجب او فرض نه وی، کما سیأتی، نو بناءً علیه د صلوات خمسو

یا د شهر رمضان د روژی نذر صحیح نه دی، لکن د جنسه څخه د منذور به واجب او فرض عبادت د خدای جل وعلیٰ د خوا موجود وي، او هغه واجب به هم اصلي واجب وی یعنی تبعی به نه وي کما مر عنقریب، د دی خبری دلیل دا دی چې عبادات الهیه باید په اندازه د انعامات الهیه وی، ولاء شکرها، لکن چونکه نعمتونه د خدای پر بنده ګانو په پوره لحظه کی د حیات متواتر او متتابع او تکاثر وه او بنده نبی کولای چې دائم الاوقات په عباداتو کی د خدای مشغول وي، من جهة توافر الضروریات البشریه فی طول الحیٰوة، فلاجل هذه الضروریات د خدای ه پنځه وخته لمونځونه او یو میاشت وهکذا الزکوٰة والحج، د ټولو شکرو په ځای کی وشمیرله تیسیرًا علی العباد، او س نو یو بنده چې نذر د یو عبادت پر ځای کوي، ګویا اراده د دې لري چې خپل عبادت منذوره و عبادت مفروضه ته د خدای ور ضم کړي تا چې فی الجمله د خدای شکریه ته دوام ورکړي، او دا قانون دی چې یو شئ چې خول وبل شئ ته ورجونه وي، نو ملحق به شئ موجود وي، نو که د جنس د منذور عبادت واجب اصلي عبادت د خدای د خوانه وی موجود، نو خو هغه ملحق به مباح وی، او د مباح کار نذر نه دی روا، حتی چې نذر د ولاړی یا ناستی یا خوراک وغیره نه دی صحیح، انتهی قول الکفایة مع کثیر من الزیادة، قال المصنف:

## وَاَنْ یَّکُوْنَ مَقْصُوْدًا اَوْ اَنْ یَّکُوْنَ لَیْسَ وَاجِبًا فَلَا یَلْزَمُ

او بل شرط دا دی چې هغه واجب اخر به مقصود وی یعنی اصالتًا لا اتباعًا لغیره لکه او س چې په سبب د لمانځه

## اَلْوُضُوْءُ بِنَذْرِهٖ وَلَا سُجْدَةُ التِّلَاوَةِ وَلَا عِیَادَةُ الْمَرِیْضِ

فرض وی، او بل شرط دا دی چې د غه منذور عبادت به واجب وی د جانبه څخه د خدای جل شانه، نو نه لازمیږی

## وَلَا الْوَاجِبَاتِ الْاُخَرِ

او د س په نذر کولو سره، ولې دی مقصود لذاته نه دی بلکه شرط د صحت د لمانځه دی مثلًا، او نه سجدة التلاوة په نذر کولو سره لازمیږی، ولې چې سجدة التلاوة خود خدای د خوا واجب ده، او عیادة المریض په نذر لازمیږی، ولې چې د جنسه څخه د هغه بل واجب من جانب الله نشته، او دا قول ظاهر الروایة





دی دا امام اعظمؒ د خوا، د رویش والی چې خلوم شرط چې مراقی زیاته کړیده چې منذور به محال نه وی مثال یې دا راوړی دی چې سړی ووائی چې پر ما یه نذر دی چې د صبا د ورځې روژه به نن ورځ نیسم، هغه ته ضرورت نشته، اذ لیس من شان العاقل نذر المحال، او نه هم لازم دی نذر د نورو واجباتو، ولې چې هغه د خدای په ایجاب سره واجب دی، او ایجاب د واجب محال دی، م

قال المصنف

## وَیَصِحُّ بِالْعِتْقِ وَالْاِعْتِکَافِ

او صحیح دی نذر په عتق د مریي یا بنځی، ولې چې ازادول د مریي مثلًا په کفاراتو کی په ایت سره فرض دی، او صحیح دی نذر د اعتکاف، ولې چې د جنسه د هغه فرض شئ سته په شرع کی چې اخیره ناسته ده، فاصل مکث الاعتکاف موجود فرضًا وهو المذکور، فالمعتکف کالجالس فی الصلوٰة للقعدة الاخیرة فصح نذره.

**مسئله** نذر د حج ماشیًا صحیح دی، ولې چې نظیر یې په شرع کی سته، ولې چې د چا کور چې مکی شریف ته نژدی وي پر هغه حج ماشیًا فرض دی، نو ده نا ذر کوی که څه هم لیری وی مګر نذر یې صحیح دی لوجود الاصل فی الشرع: **مسئله** نذر د مریي په اعتکاف سره یا د سړي د مایني په اعتکاف سره صحیح دی، نو که بادار او میړه اجازه ورکړه خو اداء یې کړي او که بادار یا میړه اجازه نه ورکړه بیا پس له عتقه او د ماینی د جلاوالی به ئې د واړه قضاء راوړي، قال المصنف

## وَالصَّلٰوةِ الْغَیْرِ الْمَفْرُوْضَةِ وَالصَّوْمِ

او د غه رنګه صحیح دی نذر د لمانځه چې فرضی نه وي یعنی نفلی او د روژی یعنی نفلی، ولې چې د دواړو مثل په شرع کی فرضی سته **مسئله** نذر د خیرات د نقود و صحیح دی او د غه رنګه نذر د ذبح د حیوان صحیح دی، لوجود مثل الاول وهو الزکوٰة ومثل الثانی وهو الاضحیة، قال المصنف:

## فَاِنْ نَذَرَ نَذْرًا مُطْلَقًا اَوْ مُعَلَّقًا بِالشَّرْطِ وَوُجِدَ الشَّرْطُ

## لَزِمَهُ الْوَفَاءُ بِهٖ

نو که سړي مطلق نذر وکړي، یعنی په شرط سره مربوط نه وو، او یا مربوط په شرط وو لکه سړی چې ووائی که خدای ما ته زوی راکړي

مثلاً پر ما یوه میاشت روژې مثلاً نذر دې او شرط موجود شو، نو پدې باندې په دواړو صورتو کې وفاء بالنذر لازمه ده». قال المصنف:

## وَصَحَّ نَذْرُ يَوْمَي الْعِيْدَيْنِ وَأَيَّامِ التَّشْرِيْقِ فِي الْمُخْتَارِ

او صحیح دی نذر کول د روژو د دواړو اخترو او د ورځو د تشریق په مختار روایت کې، او په غیر مختار روایت کې نه دی صحیح، ولې چې دا نذر په معصیت سره دی، **جواب**: روژه په اعتبار د ذات صحیح ده او حرمت خو یې په اعتبار د اعراض دی د میلمستیا څخه د خدای جل سلطانه وهو امر عارض خارج عن الصوم فلا یمنع الصحة لذاته، قال المصنف:

## وَيَجِبُ فِطْرُهَا وَقَضَاؤُهَا وَإِنْ صَامَهَا أَجْزَأَهُ مَعَ الْحُرْمَةِ

نو پر ناذر واجب ده خوړل د دغو روژو چې نذر کړې یې دی تا چې اعتراض د ضیافت څخه د خدای رانشي، او قضاء راوړل یې هم واجب دې د سببه د وفاء بالنذر» قال المصنف: او که ئې سره د منع د روژو د دغو ورځو ناذر هغه روژې ونیولې نو د ناذر غاړې په خلاصي شوې سره د حرمت ولې چې اعراض د ضیافت څخه د خدای پاک دئ او ده اعراض وکړې».

**مسئله**: که سړي نذر د داسې شي وکړي چې ده یې اراده د وجود نه درلوده لکه چې سړي ووائی که ما خبرې د زید سره وکړې پر ما یې نذر چې زه به مرئي آزادوم، او بیا یې خبرې ورسره وکړې نو ظاهر روایت خو دا دی چې وفاء بالمنذور لازم دېږده که معلق وي او که نه او په روایت کې د نوادرو وائي چې د ده خوښه ده که مرئي آزادوي او که کفاره یمین ورکوي، مصنف په مراقی کې وائي چې صحیح روایت د نوادرو دی» قال وهو المفتی به» لقوله علیه الصلوة والسلام: کفارة النذر کفارة الیمین» درویش وائي چې په دې مسئله کې ډېر تفصیل او قیل وقال سته، نو که څوک تفصیل غواړي، نو بحر الرائق یا طحطاوي دې مطالعه کړي»، قال المصنف:

## وَأَلْغَيْنَا تَعْيِيْنَ الزَّمَانِ وَالْمَكَانِ وَالدِّرْهَمِ وَالْفَقِيْرِ

او مونږ لغوه بولو تعیین د نذر د یوې خاص زماني





او د غه رنګه لغوه بولو معینه ول د یو خاص ځای، او د غه رنګه لغوه بولو د یو خاص درهم نذر او هم لغوه دی دا نذر ورکول و یو خاص فقیر ته، والدلیل علی الکل، چې نذر خو واجبول دی د یو فعل په ذمه کې خپل د جهته د ثواب، نو دا تعلق نه لري په خصوص یوې د زماني یا د ځای یا د فقیر او تقدیر یې لکه د درهم یا درهمین مثلاً صرف د یاره د تعیین د مقدار د منذور دی، قال المصنف:

## فَيُجْزِيْهِ صَوْمُ رَجَبٍ عَنْ نَذْرِهِ صَوْمَ شَعْبَانَ وَيُجْزِيْهِ

نو کافي ده نذر کوونکي لره روژه د خدای تعالیٰ د میاشتې کړده نذر کړې وه روژه د میاشتې د برات، او د غه رنګه کافي

## صَلٰوةُ رَكْعَتَيْنِ بِمِصْرَ نَذَرَهُمَا بِمَكَّةَ وَالتَّصَدُّقُ بِدِرْهَمٍ

دی دوه رکعته لمونځ په مصر کې چې ده نذر کړی چې زه به ئې په مکه شریفه کې کوم، او د غه رنګه کافي دی خیرات ول

## عَنْ دِرْهَمٍ عَيَّنَهُ وَالصَّرْفُ لِزَيْدِ الْفَقِيْرِ بِنَذْرِهِ لِعَمْرٍو

د یو درهم په ځای کې د هغه معین درهم چې ده ئې خیرات پر ځان نذر کړی وي، او د غه رنګه کفایت کوي صرفول د خیرات و زید ته چې فقیر وي چې ده نذر کړی وي چې زه به ئې عمرو ته ورکوم،

**مسئله** که چیرې یو سړي نذر کړی اعتکاف یا روژه، نو اعتکاف یا روژه یې تر هغه معین کړي وخت د مخه اجراء کړه صحیح ده، **مسئله** که سړي نذر کړي چې زه به په فلاني کال کې حج کوم او تر هغه کال د مخه یې حج وکړي صحیح دی، **مسئله**: که سړي نذر کړي چې زه به په فلاني ورځ دوه رکعته نفل کوم بیا یې هغه دوه رکعته د مخه تر هغې ورځې اداء کړه صحیح دی، د دریو مسئلو دلیل دا دی چې سبب د وجوب د دغو عباداتو خو نذر دی، هغه پید اسو پس له تحقق د سبب ټول تعیینات لغوه دي، شرن، ط، در، قال المصنف:

## وَلَوْ عَلَّقَ النَّذْرَ بِشَرْطٍ لَا يُجْزِئُهُ مَا فَعَلَهُ قَبْلَ وُجُوْدِ شَرْطِهِ

او که چیرې یو څوک معلق کړي په یو شرط سره مثلاً وئې وئیله که زما زوی خدائ د سفره څخه صحیح سالم

راوستی نو پرماد یوه پوُسه خیرات نذر دی، نو دی نذر پرځای کی نه دریږی، هغه خیرات دِ پُـه چی د مخ تر راتگ د زوی د ه ذبح کړې وی، ولې چی نذر معلق په شرط سره د مخه تر وجود د شرط گویا نه دی پیدا ، کماهو القاعدة المقررة فی اصول الفقه ، کما فی قول الرجل الامرئته ان خرجتِ من الدار بدون الاجازة فانتِ طالِق ه

# بَابُ الْاِعْتِكَافِ

باب دی په بیان کی د اعتکاف یعنی د مغه د معنا او احکامو **پـوه سـه**: چی اعتکاف په لغت کی حبس او منع ته وائی ، نو اعتکاف اصطلاحی شرعی هم منع کول او بندی کول د معتکف د ځان لره په مسجد کی ، او په شریعت کی ئ تعریف دادی.. قـال المصنفؒ:

**هُوَ الْاِقَامَةُ بِنِيَّتِهِ فِى مَسْجِدٍ تُقَامُ فِيهِ الْجَمَاعَةُ بِالْفِعْلِ**

اعتکاف اوسیدل دی په نیت د اعتکاف په مسجد کی چی په هغه مسجد کی د جماعت لمونځ اوس کیږی

**لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ** د پنځه وخته لمونځو د پاره ، حضرت علیؓ او حذیفهؓ وائی: لَا اعتکاف الا فی مسجد جماعةٍ »

**فَلَا يَصِحُّ فِى مَسْجِدٍ لَا تُقَامُ فِيهِ الْجَمَاعَةُ لِلصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُخْتَارِ**

نو نه دی صحیح اعتکاف په هغه مسجد کی چی په هغه کی جماعت د پنځو لمونځو نه کول کیږی پر مختار مذهب چی مذهب د امام اعظمؒ او د محمدؒ دی ، او د امام ابو یوسفؒ نه روایت دی چی اعتکاف واجب لکه منذور اعتکاف نه دی صحیح بیله مسجد جماعت نه او اعتکاف مسنون یا نفلی په هر مسجد کی روا دی:

: د فضل الحق حقانی په قلم ولیکل شو:





قال المصنفؒ **وَلِلْمَرْأَةِ الْاِعْتِكَافُ فِى مَسْجِدِ بَيْتِهَا وَهُوَ مَحَلُّ عَيَّنَتْهَا**

او ښځه اعتکاف کولای سی په مسجد کی د کور ، او مسجد د کور هغه خونه ده چی دې ټاکلی **لِلصَّلٰوةِ** وی د پاره د لمانځه ، او که دی د لمانځه د پاره ځای نه وو معین کړی ، نو دی لره اعتکاف نشته ، قال الرّاقی وهی ممنوعة عن حضور المساجد فلا اعتکاف لها فی المساجد ه او د نهایه د عبارت نه داسی معلومیږی ، چی اعتکاف د ښځی په مسجد کی مکروه تنزیهی دی ، لکن صحیح دا ده چی نا جائز دی

**فـائـدَه**: رکن د اعتکاف لبث او د رنگ دی او شرط یـه مسجد مخصوص دی ، یعنی مسجد جماعت او بل نیت دی ، او روژه پـه منذور اعتکاف کی ،، والاسلام والعقل والطهارة من حیض و نفاس فی المنذور ، ولی چی د منذور د پاره روژه شرطه ده ، او حا ئض او نفساء لره روژه نشته ، او بلوغ شرط نه دی ، او پاکی د جنابت نه هم شرط نه ده ، ولی چی روژه سره د جنابته هم روا ده ، ولو فی المنذور ،، او سبب د اعتکاف نذر دی پـه منذور کی او طلب د ثواب دی په نفلی کی ، او حکم د اعتکاف سقوط دی د واجب منذور ، او پیدا کول د ثواب دی په نفلی »

**مسـئـله**: د مسجد تعیین په شروع سره کیږی په یو مسجد کی نو معتکف ته نه ده روا چی په یو مسجد کی شروع په اعتکاف وکړی او بیا بل مسجد ته نقل کیږی بیله عذره کما سیاتی » ط، م، در ، قَالَ

**وَالْاِعْتِكَافُ عَلٰى ثَلٰثَةِ اَقْسَامٍ وَاجِبٌ فِى الْمَنْذُورِ وَ**

او اعتکاف پر دری قسمه دی ، واجب چی سری نذر کړی وی ، او سنت موکده کفائی دی په لس اخیرو

**سُنَّةُ كِفَايَةٍ مُؤَكَّدَةٌ فِى الْعَشْرِ الْاَخِيْرِ مِنْ رَمَضَانَ وَ**

ورځو کی د روژی ، او مستحب یعنی ښه کار دی په ما سوا کی د منذور ، او د لسو ورځو اخیرو د روژی د

**مُسْتَحَبٌّ فِى مَا سِوَاهُ** میا شتی ، زاهدی وائی وائی چی تعجب دی د مسلمانا نو د پاره عوام لا څه کوی بلکه علماء ، چی څرنگه دوی پری ایښی دی اعتکاف او سره د دی چی رسول کریم صلی الله علیه وسلم به بعض عبادات کاهی کول او کاهی به ئی پریښول

اواعتکاف به دغه وخت چي ومديني منوري ته يې هجرت کړي دی، اعتکاف دعشر اواخرد رمضان يې نه دی پرې ايښی الی ان توفاه الله تعالیٰ» نوعلماء صرف په پياشت کې د روژې دااخير لسيزې يوطالب علم جبرًا واعتکاف ته موظف کوي، اودې پخپله ور ته گرځي اودې سنت مؤکد به يو وخت هم قصد نه دی کړی طول عمره» اوعوامو ته هم ملاصاحب دا تبليغ نه کوي چي دټولو مسلمانانو دپاره سنت مؤکد دی، ولې چي ملاصاحب بيريږي چي عوام به راته ووائي چي ته ولې دا سنت مؤکد نه پرځای کوې، نود عوامو عقيده داده چي اعتکاف سنة المسجد دی هغه طالب علم اجراء کړي،

**سوال**: نوپه سبب دهميشه توب دعليه الصلوٰة والسلام پراعتکاف بايد اعتکاف واجب وای **جواب**: وجوب دعمل هميشه دعليه الصلوٰة والسلام پرتوله امت هلته ثابتيږي چي آنحضرت صلی الله عليه وسلم يې پر تارک باندې انکار کړی وي، لکن لعض صحابه کرام چي اعتکاف مذکور به ئې نه کاوه، آنحضرت صلی الله عليه وسلم انکار نه وي پرکړی، نو دا دليل ددې دی چي اعتکاف مذکور سنت کفائی دی» مراطي، در» قال المصنف:

## وَالصَّوْمُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْمَنْذُوْرِ فَقَطْ

اوروژه شرط ده دپاره دصحت دنذري اعتکاف دپاره فقط نوکه يوسړي داسې ووئيله چي زه اعتکاف نذر کوم يوه مياشت بيله روژې، نوپرده باندې اعتکاف يوه مياشت لازم دی سره د روژې، **مسئله**: نذر په ژبه پورې اړه لري، ولې نذر خود متعلقاتو څخه د ژبې دی، نوکه دسړي په زړه نذر وي اوتلفظ نه په وکي هغه شئ نه نذر کيږي **پوهه سه**: چي دفقط معنا داده چي په نفلي اعتکاف کې روژه نه ده شرط، لقوله عليه الصلوٰة والسلام ليس على المعتكف صيام الا ان يجعله على نفسه» قال المصنف:

## وَاَقَلُّهُ نَفْلاً مُدَّةٌ يَسِيْرَةٌ وَلَوْكَانَ مَاشِيًا عَلَى الْمُفْتٰى بِهٖ

اوهغه لږموده داعتکاف نفلي لږموده ده که څه هم په مسجد کې ولاړ وي يعنې ناسته لازم نه وي بلکه که څه هم تېريږي وي، پرمفتى به مذهب، اوحسنؒ دامام اعظمؒ څخه روايت کړی دی چي روژه په نفلي





اعتکاف کې هم شرط ده، ولې چي نفلي اعتکاف هم په ورځ پورې اړه لري لکه منذور اواقل اندازه يې يوه ورځ ده، لکن معتمد مذهب دادی چي اعتکاف نفلي مبني پرمسامحت دی. نومطلق نفل په لږ دریځ سره دنيت داعتکاف که دشپې وي اوکه دورځې وي روا وي. قال المراقي چي دغه لږنيت داعتکاف نفلي حيله ده دهغه چا دپاره چي دمسجد پريوه دروازه ورننوځي ويې باله دروازه وزي تاچي مسجد لاره ونه گرځي چي هغه ممنوع ده»

**پوهه سه**: چي پرجزء داعتکاف نفلي سره دنيت عبادت دی بيله تفعيه دبل جزء څکه نفلي اعتکاف په نيت اوشروع سره نه لازميږي لانتهائه بالخروج. **مسئله مهمه** که سړي نيت داعتکاف مسنون په عشراواخروکې د روژې وکړي. وندر کړي ئې سه وو نو يوه ورځ يا دوه ورځې اعتکاف وکړي بلکه که يوساعت يې وکړي اوبيا يې پريږدي قضاء باندې نه ده ولې چي اعتکاف خو چي غيرمنذور وي نه فاسديږي بلکه پای ته رسيږي په ترک سره وهسي ناغ عزيزفتذکره.

## دَاماما نومفکوره داده

چي يوچا چي نيت دعشراواخرد اعتکاف وکړي اوداسې ووئيله چي زه لس ورځې اخيرې د روژې دمياشتې اعتکاف کومه، نوپه دغه وينا پرده نذر سو، اودوې نه پوهيږي چي نذر خپل الفاظ لري

**سوال**: يوسړي چي دوو رکعتو لپاره نيت وکړي اوشروع يې هم په وکړه لکن دوه رکعته يې پوره نه کړه پرې ئې بښووله، نوولې دوو رکعتو قضاء پرسته، **جواب**: تردوه رکعته کم څولمونځ نه دی، اواعتکاف خوحد محدود نه وي لري هر اندازه لبث اعتکاف دی سره دنيته، مثال ددې دادی چي سړي دڅلور رکعتو نفلي لپاره نيت وکړي اما پردوه رکعته سلام وگرځوي، نو د دوو نورو قضاء پرې نسته، ولې چي لمونځ پوره سو، فافهم، قال المصنف:

## وَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ اِلَّا لِحَاجَةٍ شَرْعِيَّةٍ كَالْجُمُعَةِ

اونه دی وزي معتکف داعتکاف دځای څخه چي مسجد دی دنرد پاره ياهغه خونه معينه ده چي دښځي دپاره داعتکاف ځای دی» مگر دحاجت شرعي دپاره لکه دجمعې لپاره وتلو ته چي ځي»

**مسئله:** معتکف به د جمعې لمانځه ته د جامع مسجد پر خوا داسې وخت ځي چې دې سنت قبلي او د جمعې لمونځ او سنت بعدي په دغه وخت کې کولای شي نو بيرته به مسجد ته د اعتکاف راځي بافوره

قال المصنف: **اَوْطَبِيْعَةٍ كَالْبَوْلِ اَوْضَرُوْرِيَّةٍ كَانْهِدَامِ الْمَسْجِدِ**

او يا طبعي ضرورت وي لکه بولي وکذ الغائط، او دغه رنګه وتای شي د پاره د پرېولو د نجاست او يا غسل د جنابت

**وَاِخْرَاجُ ظَالِمٍ كُرْهًا وَتَفَرُّقُ اَهْلِهِ وَخَوْفٌ عَلٰى نَفْسِهِ**

چې احتلام ورته پېښ شوی وي، او يا د پاره د ضروري حاجت لپاره لکه چې مسجد ونړېږي او يا يو ظالم په زوره وباسي او يا يې کور د ړېدره شي، او يا بېرېږي پرځان يا پر کالو د ظالمانو د خوا څخه، نو دی

**اَوْمَتَاعِهِ مِنَ الْمُكَابِرِيْنَ** سمد لاسه بل مسجد ته ولاړ شي يعنې کې اعتکاف منذور وو يا يې د مسنون يا نفلي اعتکاف پوره کولو د پاره کې قصد وو، **مسئله:** که معتکف ووتی د پاره د حاجت انساني او وروسته تر قضا ئې حاجت د يو مريض پوښتنې ته ولاړي او يا د جنازې لمانځه ته بيله دې چې قصدًا د هغه د پاره وتلی وي روا ده يعنې اعتکاف يې نه ختميږي» ط، او امام طحطاويؒ په نقل د تاتارخانيه څخه وائي که معتکف په وخت کې د اعتکاف نذر د اشرط کړه چې زه به د مريض پوښتنې ته ځم او د جنازې لمانځه ته به ځم، او حضور ته د مجلس د علم شرعي به ځم، روا ده، او د اقول مشروط کار رونه کولای شي، فليحفظ هذه الفائدة» در»

**مسئله:** که معتکف د حاجت انساني د پاره ووتی وروسته تر هغه يو کړي ناحقه ځنډ وکړي اعتکاف به ختم شو، ط» قال المصنف:

**فَلَوْخَرَجَ بِلَاعُذْرٍ سَاعَةً فَسَدَ الْوَاجِبُ وَانْتَهٰى بِهٖ غَيْرُهٗ**

که معتکف د مسجد څخه ووتی بيله عذره يو کړي نو که واجب اعتکاف وو لکه منذور هغه فاسد سو يعنې قضا ئې پر لازمه ده او پای ته رسيږي سنت يا نفلي اعتکاف يعنې د نورو ورځو چې ده يې نيت کړي وو قضاء پرې نشته، کما مر»





**يادونه:** چې مراق وروسته تر «فسد الواجب» داسې ليکلي دي» ولا اثم عليه» او امام طحطاويؒ وائي چې ګناه هلته نشته چې په عذر سره يې فاسد کړي او که ئې بې عذره په فاسد کې بيا خو ګناه کار دی لقوله تعالیٰ: وَلَا تُبْطِلُوْٓا اَعْمَالَكُمْ»

**مسئله:** اعتکاف باطليږي په بيهوشي سره او په جنون سره کې دوام وکي يو څو ورځې مګر نه اول ورځ کې په مسجد کې تيره کړه، قال المصنف:

**وَاَكْلُ الْمُعْتَكِفِ وَشُرْبُهٗ وَنَوْمُهٗ وَعَقْدُ الْبَيْعِ لِمَا يَحْتَاجُهٗ**

او خوړک د معتکف او څښل د ده، او خوب د ده او عقد د بيع رانيولو د هغه شي چې دی حاجت ورته لري د ځان د پاره او يا د عيال

**لِنَفْسِهٖ اَوْعِيَالِهٖ فِى الْمَسْجِدِ وَكُرِهَ اِحْضَارُ الْمَبِيْعِ** په مسجد کې به وي

او مکروه دی حاضرول د مبيع وه مسجد ته، د اقول جواز په سبب د ضرورت د اعتکاف دی، حتیٰ که معتکف د دغو شيانو د پاره د اعتکاف څخه ووتی که واجب اعتکاف وو هغه خو فاسد سو او که نفلي وو پای ته ورسيدی، او فتاوای ظهيريه وائي چې فقهاءٌ جائز بولي وتل د مسجد څخه د پاره د اکل او شرب بيله غروبه څخه د لمر، والفتوى على الاول» در» او احضار د مبيع چې مکروه دی د دې د پاره چې مسجد ځای د حقوقو د خدای دی د کان نه دی» **مسئله:** بعض علماء د ستاينې د طالبانو په مسجد کې کوي او هلته ميلمنو ته چای او ډوډي ورکوي پرته له دې نه بايد نيت د اعتکاف نفلي لازمي دی ورنه خوړک وغيره په مسجد کې مکروه دی» قال المصنف:

**وَكُرِهَ عَقْدُ مَا كَانَ لِلتِّجَارَةِ وَكُرِهَ الصَّمْتُ اِنِ اعْتَقَدَهٗ**

او مکروه دی هغه عقد د بيع او د شراء چې د پاره د تجارت وي، که مبيعه حاضره کړي او که نه» ط، م، در

**قُرْبَةً وَالتَّكَلُّمُ اِلَّا بِخَيْرٍ** او مکروه دی پټه خوله کيدل په اعتکاف کې يعنې د چا سره خبرې نه کول که ده دا عقيده وه چې دا د ثواب کار دی، او دغه رنګه مکروه دی خبرې کول مګر نه په خير سره

**فـرعه**: چونکه په مسجد کی بیله معتکفه دمباح بیع اوشراء مکروه ده، خو په مسجد کی مخری بوکی ټاکی قهقهه خندا به څرنګه مکروه نوی **فـرعه**: په صحیح حدیث کی راغلی دی چې وړی خوړونکو یا ګندنه یا پیاز خوړونکی دی دحضور ﷺ دَجماعت په سَبب د بد بوی دَخولو منع دی د مسجد څخه، نوڅرنګه ملایان بد بویه وَرسته توک داني دنسوارو په مسجد کی استعمالوی! **فـرعـه**، چونکه مسجد دپاره دعبادت دی اودحقوقودخدائ دی اودنیائی مباح خبری په کښی مکروه دی، نوڅرنګه مُلایان د منطقو او د فلسفی درسونه په مسجد کی کوی، البته دقران مبارک درس اودا حادیث نبویهٌ وو درس اویا هغه علوم چې ناموری علوم توقف پانه ی لری لکه نحو، صرف، معانی، بدیع، عقائد وغیره وو درس په مسجد کی مکروه نه دی، قال المصنفؒ:

**وَحَرُمَ عَلَيْهِ الْوَطْئُ وَدَوَاعِيْهِ وَبَطَلَ بِوَطْئِهِ وَ الْإِنْزَالِ بِدَوَاعِيْهِ** اوحرام ګرځول سوی دی پر معتکف باندی وطی دماینی، اواسباب دوطی لکه چه اختلا اویا لمس دا عضاوو په شهوت سره او باطلیږی اعتکاف په وطی او په انزال سره په دواعیو دوطی، لقوله تَعَالیٰ: وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ عَاكِفُوْنَ فِي الْمَسَاجِدِ. نوچې جماع ممنوع سوه، نودواعی یې په اعتکاف کی هم ممنوع دی لکه قُبله ولمس بالشهوت» ولې چې دواعی اسباب دی دَجماع اوقانون دی چې سبب دحرام هم حَرَام دی، م، ط، د. **پـوهـسـه**: چې وطی فرق نه لري که عامدًا وی اوکه ناسیًا وی اوکه مکرهًا وی اوکه دورځې وی اوکه دشپې وي، **مسـئـلـه**: که معتکف په فکر وصلو اویا په کتلو سره انزال سو، نواعتکاف یې نه باطلیږی، مَراقی. قَالَ المصنفؒ:

**وَلَزِمَتْهُ اللَّيَالِيْ اَيْضًا بِنَذْرِ اِعْتِكَافِ اَيَّامٍ وَلَزِمَتْهُ الْاَيَّامُ بِنَذْرِ اللَّيَالِيْ مُتَتَابِعَةً** اولازمیږی پر سړی اعتکاف دَشپو په نذر سره دا عتکاف دورځو، ولې چې فقهاءُ وائي چې لفظ دایام په صیغه دجمع سره هغه دوَرځو په برابر شپوته هم شامل دی نودا سړی باید





په اوله شپه تر غروب الشمس دمخه وه اعتکاف ته داخل سی، او په اخیره وَرځ باید تر غروب وروسته ووزی، م، قال المصنفؒ:

**وَاِنْ لَّمْ يُشْتَرَطِ التَّتَابُعُ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ وَلَزِمَتْهُ لَيْلَتَانِ بِنَذْرِ يَوْمَيْنِ** که څه هم تتابع یعنی پیوسته اعتکاف کول شرط نه دی، ګرځول سوی په ظاهر روایت کی، لان مبني الاعتكاف في العرف على التتابع، او پر ده لازم دی اعتکاف دوی شپې په نذر سره دا عتکاف ددوو ورځو، اوامام ابویوسفؒ وائي چې داول شپې اعتکاف نه دی پر لازم، قَالَ المصنفؒ:

**وَصَحَّ نِيَّةُ النَّهَرِ خَاصَّةً دُوْنَ اللَّيَالِيْ وَاِنْ نَذَرَ اِعْتِكَافَ شَهْرٍ وَنَوَى النَّهَرَ خَاصَّةً اَوِ اللَّيَالِيَ خَاصَّةً لَا تُعْمَلُ نِيَّتُهُ اِلَّا اَنْ يُّصَرِّحَ بِالْاِسْتِثْنَاءِ** او صحیح دی نیت د ورځو نه د شپو یعنی تر میاشت کم عدد یاد کړي، ولې چې نیت معنا حقیقی دایام وکړي چې بیاض النهر دی اوکه سړی نذر کړی اعتکاف دپوره میاشتی یعنی که میاشت معین کړي چې مثلًا درات میاشت اوکه مطلق میاشت ذکر کړی، او په نیت کی وَرځې وی خاص اویا شپې وی خاص نودا نیت دده معتبر نه دی، البته کی تصریح په استثناء دورځو یا دشپو وکړه نو بیا صحیح دَی، دلیل یه دا دی چې ''شهر'' په شرع او په عرف کی نوم دی د مقدرو وَرځو او شپو دپاره، صورت داستثناء دادی چې ووائي چې پر ما نذر دی یوه میاشت اعتکاف په ورځو کی نه په شپو کی، اویا داسی ووائي چې پر ما اعتکاف دیوی میاشتی نذر دی اِلَّا اللیالی، وعلیٰ هذا فقس استثناء الایام، قَالَ المصنفؒ:

**وَالْاِعْتِكَافُ مَشْرُوْعٌ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ** او اعتکاف مشروع دی په کتاب الله سره قال الله تعالیٰ: وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ عَاكِفُوْنَ فِي الْمَسَاجِدِ» او په حدیث سره» ابوهریره رض او عائشه رض

روایت کوی، چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم به همیشه اعتکاف کاوه په اخیرو لسو ورځو کې د
روژې د، څو وخت څخه چې دی مدینې منورې ته راغلی تر هغه وخته پورې چې خدای پاک دی وفات
کړی **پوه سه**: چې سره ددې چې اعتکاف په مذکوره ورځو کې سنت مؤکد دی لکن
مع ذالک سنت کفائي دی ولا منافاة بینهما، ط، قال المصنف:

## وَهُوَ مِنْ اَشْرَفِ الْاَعْمَالِ اِذَا کَانَ عَنْ اِخْلَاصٍ

او دغه اعتکاف د بهترین اعمالو څخه دی چې د اخلاص د لارې وي یعنې ریا او سُمعت نه وي په کې او

## وَمِنْ مَحَاسِنِهٖ اَنَّ فِيْهِ تَفْرِيْغُ الْقَلْبِ عَنْ اُمُوْرِ الدُّنْيَا

بعض د ښو فائدو څخه د اعتکاف نه، فارغه کول دی د دنیا د کارونو څخه په سبب د اشتغال په عبادت
د خدای جل سلطانه، قال المصنف:

## وَتَسْلِيْمُ النَّفْسِ اِلَى الْمَوْلٰى وَمُلَازَمَةِ عِبَادَتِهٖ فِيْ بَيْتِهٖ

او بل تسلیم ده د خپل ځان د خپل بادار عزاسره ته او بل همیشه والی دی په ورځو کې د اعتکاف په عبادت د
خدای بنوافل الصلوات وتلاوة القرآن العزیز وسائر

## وَالتَّحَصُّنُ بِحِصْنِهٖ

انواع الاذکار، هغه هم په بیت الله کې چې مسجد دی، او
عادت د کریمانو خلکو دا دی چې څوک چې د دوی کور ته میلمه ورسی حتی المقدور یې ساتنه وي،
فکیف بالمعتکف الذی نزل بیت ارحم الراحمین ضیفًا، قال السعدی: مَنْ دَقَّ باب الکریم انفتح،
او معتکف د دښمنانو څخه خپل ځان خوندی کې په قلعه کې د خدای نو هیڅ د دښمن پرده نشی
کامیاب کیدای کالنفس والشیطان ومردة الجن، قال المصنف

## وَقَالَ عَطَاءٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ مَثَلُ الْمُعْتَكِفِ مَثَلُ رَجُلٍ يَخْتَلِفُ عَلٰى

او ویلی دی عطاء بن ابی رباح چې مثال د معتکف لکه هغه سړی دی، چې دی ورځی ته دیلوی





## بَابُ عَظِيْمٍ لِحَاجَةٍ

ورځي یعنې یا باچا وي، یا وزیر وغیرهما دیوکار دپاره چې د هغه
عظیم د قدرت هم پوره وي ورځي وراځي، یعنې په کرات او مرات او
یعنې هغه عظیم بالعاقبة د هغه سائل کار کوي، او نا امید یې نه پریږدي نو مالک العالم جل شانه
به څرنګه دا سائل معتکف به د خپل عظیم فضله څخه څرنګه محروم کړي، سعدی ره
ای کریمی که از خزانهٔ غیب ؛ گبر و ترسا وظیفه خورداری ، دوستان را کجا کنی محروم ؛ تو که با دشمنان نظر داری ؛ قال المصنف
چې عطاء ابن رباح جلیل القدر تابعي دی او عارف بالله دی، او امام مجتهد دی او شاګرد د ابن
عباس رض دی، او د مشائخو څخه د امام اعظم ابوحنیفه رح دی او امام اعظم وائي چې ما نه دی لیدلی
افقه تر حماد رح او نه مې دی لیدلی اَجْمع د علومو تر عطاء بن ابی رباح، وفات د عطاء رح په
۱۱۵ کې دی او سن دده سه اتیا کاله وو، قال المصنف:

## فَالْمُعْتَكِفُ يَقُوْلُ لَا اَبْرَحُ حَتّٰى يُغْفَرَ لِيْ

پس نو معتکف وائي یعنې په زبان حال
که څه هم په زبان قال و نه وائي، چې زه ددې ځایه یعنې مسجد څخه نه ځم حتی چې بخشش ونسی و
ماته یعنې عمومي بخښنه د صغائرو ګنهوا و د کبائرو ګنهو، او د کریم بادار د خواڅخه لیرې نه ده
چې دا عنسی دی وکړي، کیف وقد ورد فی الحدیث الصحیح انه تعالیٰ یقول: اَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِیْ بِیْ
وانا اقول: اللهم اغفرلی ذنوبی کلها، درویش باګناه وائي چې مصنف رح چونکه د بیان څخه
د عبادات بدنیه وو څخه فارغ سوا و نوبت د عباداتو مالیه وو را اورسیدل، نو په خاتمه
کې د عبادات بدنیه وو داسې یو عبارت زیبا راوړی دی، قال المصنف:

## وَهٰذَا مَا تَيَسَّرَ لِلْعَاجِزِ الْحَقِيْرِ بِعِنَايَةِ مَوْلَاهُ الْقَوِيِّ الْقَدِيْرِ

او دغه چې تیر سو یعنې بیان د عباداتو بدنیه وو دا هغه شی دی چې ماته یعنې عاجز حقیر بنده
ته په مهربانی او توفیق د بادار خپل چې خاوند د قوت او قدرت دی، **پوه سه**
چې مصنف رح په دې عبارت کې نفی دانانیت او کبر او لوئي د ځانه څخه وکړی،
اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِمُتَرْجِمِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِمَنْ نَظَرَ اِلَيْهِ، آمین

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ هَدَانَا لِهٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِیَ لَوْلَا

تول ثنا او صفت خدائ لره دی چی مونږ ته ئی هدایت اوښوونه وکړه ددی دپاره یعنی اول ددین اسلام

## اَنْ هَدَانَا اللّٰهُ وَصَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلٰى سَيِّدِنَا وَمَوْلٰنَا

بیا دبیان دمسائل فقهیه وو په باره کی د عباداتو بدنیه وو، او مونږ نه وو چی مونږ دی لا پیدا کړی وای ودغه کار ته کوم ته ښوونه درب العزت دخوا نه وای"

## مُحَمَّدٍ خَاتَمِ الْاَنْبِيَاءِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَذُرِّيَّتِهٖ

او د خدای پاك عظیم رحمتونه دی وی پر سید زمونږ او بادار زمونږ محمدچی ختم دانبیاءعم پرده سوی دی، او پر آل دده او پر اصحابو دده او پر هغه چاچی دده سره دوستی

## وَمَنْ وَالَاهُ

لری هم درود وی، قَالَ المصنفُ:

## وَنَسْأَلُ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ مُتَوَسِّلِيْنَ اَنْ يَّجْعَلَهٗ خَالِصًا

او مونږ سوال کوو د الله سبحانه تعالی څخه چی په وسیله د سید الرسل دی ور گرځوی دا کتاب او بیان

## لِوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ وَاَنْ يَّنْتَفِعَ بِهِ النَّفْعَ الْعَمِيْمَ

دمسائلو دفقه علی خالصه دده رضاء دپاره، او ددی سوال کوو چی نفع دی ورکړی یعنی مسلمانانو ته

## وَيُجْزِلُ بِهِ الثَّوَابَ الْجَسِيْمَ

په دغه بیانا تو سره نفع عامه یعنی تول مسلمانانو ته په نړی تول ک نړوی او که ښځی او لوی دی خدائ راکړی ثواب عظیم یعنی وماته، درویش وائی چی حقیقت دادی چی د مصنفؒ د نفع عمومی سوال خوبیله شکه او تردده قبول سوی دی، ولی چی په اسلامی نړی تولهکی نور الایضاح یو معتمد او د اعتبار ور کتاب گنړل سوی دی او په تول نړی کی په مدرسو او په انفرادی درسو کی قبول حسن او رواج عظیم لري، نو د خدائ





د فضل عظیم څخه لیری نه ده چی دوهم سوال دده دی یعنی سوال د ثواب جسیم دی هم قبول سوی

**درویش وائی:** چی ورته سوال زه باگناه محمد عُبَید الله مترجم ددی کتاب عظیم الشان نور الایضاح په پښتو ژبه هم کوم او وایم چی خدایه ته دا کوشش او عرق ریزی زما هم قبول کړی او ماته ثواب عظیم او عفوه د تولو گناهوراته وکړی او پښتنو ورونړو او خویندو ته لویه نفع په دغه شرحه سره ورسوی امین، و لِلّٰهِ الحمد والثناء الحسن اولاً واخرًا والصلوٰة والسلام علی سیدنا وآله وصحبه جمیعًا برحمتك یا ارحم الراحمین۔

## خبرتیا

عاصی وائی چی څه وخت چی ما د اشرحه پښتو تر کتاب الزکوٰة پوری ورسول خدای جل سلطانهٔ وعظم شانه وکرمه ماته سره دخپل زوی سفر د حرمینو شریفینو په برخه کړی، هغه وو چی دا شرح پر کتاب الزکوٰة معطله وه څو چی زه دخپل ملگری سره دسفر عظیم الشان څخه د حج بیتُ الله شریفی په خیر او عافیت او صحت او سلامتی سره په توفیق درب جل وعلی بیرته راستون سوم، نو می بیرته خپل دشرحی وکار ته ادامه ورکړه» اَللّٰهم وفقنی لاتمام هذا الشرح بالخیر والصحة والسلامة وارزقنی زیارة الحرمین الشریفین فی العام الآتی تمام القدرة والصحة والسلامة وما ذالك علیك بعزیز برحمتك یا ارحم الراحمین

# كِتَابُ الزَّكٰوةِ

دا کتاب ثابت دی په بیان کی د زکوٰة

**فَائِدَه**: زکوٰة په دوهم کال کی د هجرت نبوی فرض سوی لکه روژه چی هم په دغه کال کی فرض سوې ده لکن زکوٰة تر روژی د مخه فرض سوی دی، امام طحطاوی وائی چی د زکوٰة ورکول واجب دی علی الفور یعنی په اول وخت کی وعلیه الفتوٰی، نو بناءً علی هذا سړی ګناه کاره دی په ځنډ ولو د زکوٰة او شاهدی یه نه قبلیږی،

**مَسْئَلَه**: پر انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام زکوٰة نه دی واجب، ولې چی زکوٰة خو پاکی ده د هغه چا د پاره چی شاید په ګنهو به ککړ وي، لقوله تعالیٰ: خُذْ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيْهِمْ بِهَا، او انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام د ګنهو څخه پاک دی، ولې چی عصمت دانبیاء علیهم الصلوٰة والسلام په تفصیل او په حواله د معتبرو کتابو او په دلائلو سره ویپژنی نو د درویش رساله چی نوم ئی "کشف الغطاء عن عصمة الانبیاء" دی دستیاب او په غور ئی مطالعه کړي تا چی په دی مسئله کی زړه روښانه سی، او د زړه شکوک او شبهات ئې زائل سی،

**فَائِدَه**: د زکوٰة یوه معنا په لغت کی طهارت یعنی پاکی ده چی په سبب د زکوٰة ورکولو نفس د سړي د بخل څخه پاکیږی او مال یه د خبث او نجاست څخه پاکیږی، او بله معنا یه برکت دی چی د زکوٰة ورکوونکی په باقی مال کی خدائ برکت اچوي، او په دی دنیا کی خدائ سره د ثواب د اخرت عوض ورکوی، او بله معنا یه مدحه او ثناده چی خدای جل جلاله د زکوٰة ورکوونکی په قرآن مبارک کی مدحه کړیده، او خدائ مخلوق هم د مزکّي مدحه او ثنا وائی،

**درویش وائی**: چی د مانع الزکوٰة په باره کی ډیر آیتونه او ښځی ډیر حدیثونه راغلی دي چی د هغو ټولو بیان د لته ګران دی، او ولی به مانع الزکوٰة د خیر څخه محرومه نه وی او سړه د دی چی د غه مال دار چی مثلاً د زوی واده یه وي، په زرو روپی د فساق او فجارو حتی پر شوقیانو غزلیانو بلکه پر مسلیانو نړیځو صرفوی، او په دی فخر کوی او لسم حصه د هغو روپو په زکوٰة





کی نه ورکوی، افسوس صد افسوس د دغسی اغنیاوو پر حال، د مانع الزکوٰة په باره کی سعدی شیرازی وائی: بخیل ار بود زاهد بحر وبر: بهشتی نباشد بحکم خبر: قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَهِيَ تَمْلِيْكُ مَالٍ مَخْصُوْصٍ لِشَخْصٍ مَخْصُوْصٍ فُرِضَتْ

او دا زکوٰة په ملک ورکول دی دیو مخصوص مال ویو مخصوص او معین سړي ته، او دا زکوٰة فرض کړل

## عَلٰى كُلِّ حُرٍّ مُسْلِمٍ مُكَلَّفٍ مَالِكٍ لِنِصَابٍ مِنْ نَقْدٍ

سوي دی پر هر ازاد مسلمان او مکلف باندی چی مالک وی د نقدی نصاب،

**پوښتنه** چی چونکه زکوٰة د فقهی شریفی مسئله ده، او موضوع د فقهی افعال د مکلف دی نو د دی سبب مصنف تفسیر د زکوٰة په تملیک سره وکړی چی فعل د مکلف وګرځی، او دا هم مذهب دی د محققینو د اهل اصول الفقه، نو بناءً علیٰ هذا هغه مال مخرج ته زکوٰة وائی کما فی قوله تعالیٰ: وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ، مجاز شرعی دی کذا قال الفقیه الطحطاویؒ،

**فَائِدَه**: د تملیک په لفظ سره اباحت خارج سو، نو که سړي بعض فقراء میلمانه کړي او دوډی ور کړي په نیت د زکوٰة هغه د زکوٰة په ځای کی نه دریږی چی دی ته اباحت وائی تملیک نسته،

**مَسْئَلَه** که یو سړي یتیم ته کالی ورکړي مثلاً نو د زکوٰة په نیت سره یه غاړي خلاصیږی په شرط د دی چی هغه یتیم د قبض په معنا پوهیږی، در، ط،

**فَائِدَه**: مال خاص په اعیانو سره دی یعنی چی یو ذات وی نو په قید د مال په منفعت خارج کړی، نو که چیری یو غنی مسکین ته د ده په سرای کی د استوګی اجازه ورکړي د زکوٰة غاړې نه په خلاصیږی، ولی استوګنه منفعت دی مال نه دی، ط، در، رد، قوله مخصوص، چی هغه څلورم د لسمی حصی د نصاب دی، او یا د دی په ځای کی ولاړي لکه چی په صدقة الفطر کی او زکوٰة د سوائمو کی به ئی بیان راسی، اِنْ شَآءَ اللّٰهُ، قوله لِشَخْصٍ مَخْصُوْصٍ، چی هغه فقیر وی یاد هغو مصارفو چی په قرآن مبارک کی یه ذکر راغلی لکن په شرط د دی چی هاشمی به نه وی او د سړي خپل مرئی به هم نه وي، قوله عَلٰی کُلِّ حُرٍّ، پر دی سره مرئی منځه خارج سوه چی پر هغو زکوٰة نسته، قوله مسلم خرج به

الکافر بناءً علی انه غیر مکلف بفروع الشریعة حتی که یو سړی مرتد سی العیاذ بالله او بیرته مسلمان سی» په هیڅ هغه عبادت سره چې ده په وړ حُوکی د ردت نږدی کړی مکلف بالقضاء نږدی قوله مکلف ای بالغ عاقل» نو پر نابالغ کشنی یا پر لیونی زکوة نسته» قال المصنف

## وَلَوْ تِبْرًا اَوْ حُلِيًّا اَوْ اٰنِيَةً اَوْ مَا يُسَاوِيْ قِيْمَتُهٗ مِنْ عُرُوْضِ

که څه هم دغه سره زر او سپین زر داغسې چکی پراتـه وی یعنی سکه نه وی پر وهل سوی» او یا

## التِّجَارَةِ فَارِغٌ عَنِ الدَّيْنِ وَعَنْ حَاجَتِهِ الْاَصْلِيَّةِ نَامٍ

زیور وی لکه غاړگی، گُتمی وغیرهما او یا لوښی وی لکه د سپینو زرو یا د سرو زرو گلاس

## وَلَوْ تَقْدِيْرًا

وغیره، او یا برابر وی د قیمت د لاړی نصاب سره د شیانو څخه د تجارت لکه مال د غالی فروش، یا کمبل فروش، یا د پرچون دکاندار وغیره چې د تجارت د پاره وی، او دغه نصاب به فارغ وی د پور څخه یعنی پر مالك د نصاب به پور نه وی باندې ولې چې د پور په اندازه کړده وی نو پر ده باندې زکوة نسته، او دغه نصاب به زائد وی تر حاجت اصلي د ده، لکه د کور شیان که څه هم غالی وی او یا لوښی یا د سپرېدو آس یا موټر سائیکل یا موټر، او تر توری توپك، کلاشنکوف وغیره، او دا نصاب به نما اوکښه کوونکی وی که څه هم تقدیرًا، تقدیری نما داده چې دغه نصاب د تجارت څخه معطل په صندوق کی ایښی وی او بالفعل تجارت نه په کوی، قوله اوحلیًا آه عام تر دی که جائز الاستعمال وی لکه د ښځی د پاره د سرو زرو گُتمی یا نور زیورات او کی استعمال جائز وی لکه د نر د پاره د سرو زرو گُتمی مطلقًا یا د سپینو زرو گُتمی چې یو مثقال یا بالا تر هغه وی،

قوله او اٰنیة او یا لوښی وی لکه گلاس، غاب، چای خوری وغیره د سرو زرو یا سپینو زرو»

قوله او ما یساوی او یا یې قیمت برابر وی د نقدینو د نصاب سره د اسبابو څخه چې د تجارت د پاره وی

**مسئله:** که چا په کور کی غالی ډیر قیمت والا د پاره د استعمال نه ده د تجارت آواری وی او یا خولك د سپرتیا د پاره یو گران قیمته موټر لری لکن د تجارت په نیت یې نه وی رانیولی،





یا موټر گاټې یا نور ورته شیان په هغو کی یعنی په قیمت کی د هغو زکات نسته، قوله فارغ عن الدین، **پوه سه:** چې مراد د پور څخه هغه پور دی چې د بنده د خوا یې طلب کیږی، که څه هم د پاره د خدائ وی لکه زکوة چې حکومت یې طلب کولای سی مثلاً پر سړی د یو کال زکات وی، او اوس دو مره پیسې لری چې د تیر کال زکات غاړه یې وزی فقط، نو د تیر کال څخه زکات وی، او اوس زکات نسته، او یا خراج مالیه ده محکی پر با ندی وی چې بیت المال یې غوښتونکی دی، او یا یې پور د بنده وی، لکه عام پورونه، او که پور وعده لری او کی نه لری، او د ښځی د مهر موجل په اندازه هم پر ده زکوة نسته، او که د بنده د خوا مطالبه نه وه لکه نذری پوروی پر هغو رو پو زکات سته، قوله وعن حاجته آه لکه د اوسېدلو کالی او د اوړېدو شیان او گرم پوستینان یا چپنی وغیره او نفقه د عیال او سرای د ه پاره د سکونت او یا د کرایه د پاره سرایونه چې د تجارت د پاره نه وی، یا آلات د جنگ او جهاد لکه کلاشنکوف، توره، توپك وغیره، یا د کاسب د پاره لکه آهنگر زرگر وغیره د پاره د کسب اسباب، او د سپرتیا شیان لکه موټر وغیره لکه آس او بز یا کتابونه د علم د هغه چا د پاره چې دی ئې اهل وی یعنی درس یا مطالعه کولای سی»

**مسئله** که د سړی سره روپی وی چې د مذکوره شیانو د رانیولو د پاره یې ایښی وی او کال پر تیر سی او مصرف کړی یې نه وی زکوة پر واجب نه دی، طحطاوی، **مسئله** کتابونه د غیر اهل د پاره د حاجت اصلي څخه نه دی لکن په قیمت کی د کتابو زکات نسته چې د تجارت نیت یې نه وی پر کښی کړی» بحر» **فائده:** که سړی ډیر پوستینان درلوده یا چینی لوښی یا د کور نور اسباب چې حاجت یې ورته نه وو، مگر د تجارت نیت یې هم نه درلودی زکات خو نسته په کښی لکن د بل چا زکات ورته حرام دی» در، **مسئله** کتابونه د نا اهل د پاره چې قیمت یې و نصاب ته رسیږی، او یا ملا صاحب د ډیرو کتابو متعددی نسخی لری او یا د منطقو، حکمتو، یا ریاضی کتابونه لری چې قیمت یې و نصاب ته رسیږی زکات خو پر لازم نه دی لکن د بل زکوة ورته حرام دی، پر دی مسئله کی ملایان باید غور وکړی یا عمل یې وکړی یا یې ر د کړی لکن الثانی غیر ممکن فتأمل» **مسئله:** د نفقی د پاره که سړی نقدی روپی ایښی وی او کال پر تیر سو» مشهوره داده چې زکات په کښی نسته لکن په بحر الرائق کی وائی

چې په نقدو روپوکې زکوة سته پردې ول چې ئې اینبې وې که د نفقې دپاره وې اوکه دنما دپاره
وي چې کال پرتیرسی، والله اعلم، قال المصنف:

## وَشَرْطُ وُجُوْبِ اَدَائِهَا حَوَلَانُ الْحَوْلِ عَلَى النِّصَابِ الْاَصْلِي

اوشرط دوجوب داداء دزکوة تیریده دکال دے پر اصلی نصاب باندے

## وَاَمَّا الْمُسْتَفَادُ فِي اِثْنَاءِ الْحَوْلِ فَيُضَمُّ اِلَى مُجَانِسِهٖ

او هغه مال چې سړي ته پیدا شي په مابین کې دکال داصلي نصاب یعنې گټه وکړي چې دگټې پر مال کال نه

## وَيُزَكِّيْ بِتَمَامِ الْحَوْلِ الْاَصْلِيِّ سَوَاءٌ اِسْتَفَادَ بِتِجَارَةٍ اَوْ

وي تیره شوي او پر اصلي نصاب کال تیرشي نو دغه گټه مال دې رجوع کړي وخپل هم جنسه نصاب ته، او د ټول

## مِيْرَاثٍ اَوْغَيْرِهٖ

اصلي او عارضي مال زکوة دې ورکړي په تیریدو سره دکال پر اصلي مال باندې، خواه دا عارضي مال یې په تجارت گټلی وي او یا دیو قریب څخه
میراث ورپاته شوي وي او یا په بله توگه لکه یو چا چې ورته هبه کړي وي،،

**پوه سه** چې سره زر او سپین زر په زکات کې یو جنس دي نو که سړي سره او سپین زر درلوده
دکال په مابین کې مثلاً سپین زر وگټله، نو دغه مال دې ودواړو ته ورضم کړي، او که سړي دغو یو او
او بانو او د سپین زرو سره زرو نصابونه درلوده او دکال په مابین کې نور غواوې پیدا کړه هغه به
دغو یو نصاب ته جوتوي د نقدینو یا او بانو نصاب ته به ئې نه رجوتوي وعلی هذا فقس، قال

## وَلَوْ عَجَّلَ ذُوْنِصَابٍ لِسِنِيْنَ صَحَّ

که ورباندې وړاندې کړي مالک دنصاب زکوة دڅو کلو صحیح دي یعنې دهرڅو کلو صحیح
دي یعنې دهرڅو کلو زکوة چې ورکړي د هغو مره کلو غاړې په خلاصوي، مثلاً یو سړي دری سوه [300]
روپې درلودې او کال پرتیر سو نو یې سل روپې د هغو څخه په زکوة د شلو کلو ورکړي روا ده، ولې چې
نصاب چې دوه سوه روپې دی هنوز هم پاتې دي،





**مسئله**: که سړي تر دوه سوه روپې کمې درلودې، نو څه ترکال به پنځه روپې د دوه سوو
روپو زکوة ورکړي وروسته کال پوره سوا و نصاب هم پوره سو هغه مخکې زکوة یې نه دی صحیح
ولې چې هغه وخت خو نصاب نه وو پوره نو زکات مفروض نه وو، **مسئله**: که چیرې سړي
تعجیل وکړي او زکات یې ورکړي په مابین کې دکال نصاب ټول تاوان سو که څه هم په اخیر کې دکال
بیرته نصاب کامل سي هغه زکات یې نه دی صحیح کذا فی الطحطاوی، قال المصنف:

## وَشَرْطُ صِحَّةِ اَدَائِهَا نِيَّةٌ مُقَارِنَةٌ لِاَدَائِهَا لِلْفَقِيْرِ اَوْ وَكِيْلِهٖ

او شرط د صحیح والی دادا د زکوة نیت دی چې جوت به وي دوخت سره د ورکړي د زکات وفقیر او یا

## اَوْعَزْلِ مَا وَجَبَ وَلَوْ مُقَارَنَةً حُكْمِيَّةً كَمَا لَوْ دَفَعَ لِلْفَقِيْرِ

بې نیت جوت وي دوخت سره د ورکولو د روپو د زکات ووکیل ته، نو بیا کې وکیل بیله نیت د زکوة ورکړي صحیح
دی او نیت دموکل

## بِلَانِيَّةٍ ثُمَّ نَوٰى وَالْمَالُ قَائِمٌ بِيَدِ الْفَقِيْرِ

کافی دی حتی
که یو مالدار سړي د زکات روپې وهند وته ورکړي او ورته وئې ویل چې ته زما وکیل یې په فقراء و یې
وویشه هم صحیح دی، ولې اعتبار نیت لره دموکل دی، ط در، او یا یې نیت جوت وي د هغه وخت
سره چې دوي روپې د زکات د نوره مال څخه جلا کوي یعنې یو سړي د زکات مقدار روپې جلا کړي
د نورو روپو څخه او دا یې نیت وکړي چې دغه روپې به زه په زکوة کې ورکوم د غه مقارنت کافي دی
بیا د هغو روپو څخه چې کوم مسکین ته یې ورکوي نیت د زکوة نسي ورته حاضر زکات یې صحیح دی،
او کې څه هم دا مقارنت حکماً وي لکه یو سړي چې مسکین ته یو اندازه روپې ورکړي او په دغه وخت
کې د زکوة نیت نه وي، وروسته نیت د زکوة وکړي صحیح دی لکن چې هغه مال په پلاس کې د
فقیر موجود وي یعنې صرف کړي به ئې نه وي، قال المصنف:

## وَلَا يُشْتَرَطُ عِلْمُ الْفَقِيْرِ اَنَّهَا زَكٰوةٌ عَلَى الْاَصَحِّ

او نه دی شرط علم د فقیر
پردې چې دغه روپې د زکات دي پر اصح روایت حتی که فقیر ته ئې یوه اندازه

## حَتّٰی لَوْ اَعْطَاهُ شَیْئًا وَسَمَّاهُ هِبَةً اَوْقَرْضًا وَنَوَی الزَّکٰوةَ

**صَحَّتْ** یوه اندازه روپۍ ورکړي او په خوله یې ورته وویل چې دا روپۍ هبه ده او یا قرض دی اوده نیت د زکات کړی وو زکات یې صحیح سُو»

**پُوښتنه**: بعض زکوة ورکوونکي تصریح په دې سره کوي چې دا روپۍ په زکوة کې واخله نو د سې تصریح څه فائده ده **جواب** د دې تصریح دا فائده ده چې د غني په یو سړي د مسکین ګمان وي لکن په حقیقت حال نه وي خبر نو دی تصریح په زکوة د دی سبب کوي چې د غه سړی که غني وو، نو به ورته ووائي چې زه غني یم ما ته زکات نه دی روا. لکن په دې زمانه کې دا تصریح فائده نه لري بلکه اعتبار غالب الظن ته د زکات ورکوونکي دی، ولې چې هغه بل سړی که شل واره غني وي خصوصًا د مسجد مُلا صاحِب هغه نه ورته وائي چې زه غني یم زکات ما ته نه دی روا بلکه غالبًا به دا ورته ووائي چې کوږ دی ودان پر ځنګله سبه وخت دی زما د احتیاج زکات راکړی»

**مسئله**: که یو سړي په نیت د زکوة وکتنیا نو ته د فقیر قریب د اختر په مبارکۍ کې روپۍ ورکړي، یا یو چا مسکین زیری پر غني وکړي ده په زیری کې روپۍ ورکړي لکن په نیت د زکات صحیح ده غاړې د زکوة یې خلاصیږي، **مسئله** که یو شاګرد واستاذ ته یاد عِلم یاد صنعت روپۍ په نیت د زکات ورکړي، نوکه داسې وو چې دغه شاګرد روپۍ نه وای ورکړي هغه تعلیم نه ورته کاوه نو د زکات غاړې یې نه په خلاصیږي، اوکه په داسې حال کې معلم وو چې روپۍ یې نه وای ورکړي هم یې تعلیم ورته کاوه، نو د زکوة غاړې یې په خلاصیږي **مسئله**: که یو غني په قصد د نذر او یا بل واجب مسکین ته روپۍ ورکړي، د زکوة غاړې یې نه خلاصیږي»

**بنهانه** که د یو غني پر مسکین پور با ندې وو چې هغه پور نه سوای ادا کولای **فائده** نو داسې حویه د زکوة غاړې نه خلاصیږي چې مسکین ته ووائې چې هغه زما پور په زکوة کې قبول کړه، بلکه داسې دې وکړي چې مسکین ته دې زکات ورکړي بیا دې ورته ووائې چې زما پور نو اوس راکړه، اوکه داغسې وکړه بیا هغه مسکین روپۍ او پور نه ورکاوه په زور دې د لاسه ځندي وکاږي اوکه هغه شي نه سوای کولای قاضي ته دې بوزي چې هغه یې ځندي





ورواخلي» ط دره، قَالَ المُصنِّفُ:

## وَلَوْ تَصَدَّقَ بِجَمِیْعِ مَالِهٖ وَلَمْ یَنْوِ الزَّکٰوةَ سَقَطَ عَنْهُ فَرْضُهَا

که سړي خیرات کړي ټولې روپۍ یعنی نصاب پوره وو او کال هم تیر سوی وو او ده نیت د زکات نه وو یکښې کړي نو په دغه خیرات سره زکات فرضي ساقط سو» قَالَ المُصنِّفُ:

## وَزَکٰوةُ الدَّیْنِ عَلٰی اَقْسَامٍ فَاِنَّهٗ قَوِیٌّ وَّوَسَطٌ وَضَعِیْفٌ

او زکوة د پور پر څو قسمه دی یعنی په اعتبار د پور لعنی پور پر درې قسمه دی قوي، اوسط، ضعیف

## فَالْقَوِیُّ هُوَ بَدَلُ الْقَرْضِ وَمَالُ التِّجَارَةِ اِذَا قَبَضَهٗ

نو قوي پور هغه دی چې یا په بدل کې د قرض وي یعنی چا ته قرض روپۍ ورکړي وي او پور په بربا ندې وي، او یا د تجارت د مال بدل وي یعنی یو شی پر خرڅ کړی وي چې دا سې هغه پور قبض کړي»

قَالَ المُصنِّفُ **اَوْکَانَ عَلٰی مُقِرٍّ وَّلَوْ مُفْلِسًا اَوْعَلٰی جَاحِدٍ وَّعَلَیْهِ بَیِّنَةٌ**

او یا دا پور یې با ندې وي پر هغه چا چې وي هغه په دغه پور اقرار کوي که څه هم مُفلس وي، او یا د غه پور ورې پس منکر وي خو پر هغه منکر پوره ګې شاهدان وي» قَالَ المُصنِّفُ:

## زَکَاهُ لِمَا مَضٰی وَیَتَرَاخٰی وُجُوْبُ الْاَدَاءِ اِلٰی اَنْ یَّقْبِضَ

نو د غه سړي به زکات ورکوي د تیرو کلو یعنی هر څو کاله چې دا پور د ده باندې وي او د ده لاس ته نه وي رسیدلې او واجب دی د اداء په ځنډیږي تر هغه وخته پورې چې څلوېښت روپۍ قبض کوي نو په هغو کې یو درهم دی

## دِرْهَمًا فَفِیْهَا دِرْهَمٌ لِاَنَّ مَادُوْنَ الْخُمْسِ مِنَ النِّصَابِ

ولې چې تر پنځمې کم نصاب چې څلوېښت روپۍ دی یعنی ۴۰ روپۍ د ۲۰۰ روپو پنځمه حصه کیږي

## عَفْوٌ لَا زَكٰوةَ فِيْهِ وَكَذَا فِيْمَا زَادَ بِحِسَابِهٖ

هغه کم عفوه دی زکوٰة نشته پکښې او دغه رنګه دی زکوٰة ورکوی د بالا بوره روپو چې قبض یې کړی په حساب د څلویښتو روپو، قَالَ

## وَمُتَوَسِّطٌ وَهُوَ بَدَلُ مَا لَيْسَ لِلتِّجَارَةِ كَثَمَنِ ثِيَابِ الْبِذْلَةِ

او بل میانه پور دی لکه قیمت د هغه شیانو چې د تجارت دپاره نه وی مثلاً قیمت د کالود استعمال که د

## وَعَبْدِ الْخِدْمَةِ وَدَارِ السُّكْنٰى

اغوستلو کالي وی او که داواریدو شیانو وی یعنې یو سړی دغه د استعمال شیان په پور چا ته ورکړی، او پور یې پر باندی وی، او یا یې خپل د خدمت مریی پر چا خرڅ کړی وو او روپۍ پر باندی وی، او یا د استوګنې سرای ئې پر چا خرڅ کړی وی او روپۍ ئې پر باندی وی،

**پوهه سه**: د خپل سبب تیا موقر چې پر چا خرڅ کړي او روپۍ ئې پر باندې وي هغه هم وسط پور دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## لَا تَجِبُ الزَّكَاةُ فِيْهِ مَا لَمْ يُقْبَضْ نِصَابًا وَيُعْتَبَرُ لِمَا مَضٰى

نو د دغه وسط پور زکات پر ده نشته ترهغو پوری چې یو نصاب روپۍ یې قبض کړی نه وی، او تیر

## مِنَ الْحَوْلِ مِنْ وَقْتِ لُزُوْمِهٖ فِيْ ذِمَّةِ الْمُشْتَرِيْ فِيْ صَحِيْحِ الرِّوَايَةِ

کال زکوٰة د هغه وخت څخه پر ده لازم دی چې دده دغه پور په ذمه کی د مشتری لازم سوی دی په صحیح روایت کی،

**پـــوهـ ســه**: چې په دین وسط کی دوه روایته دی، یو روایت دی د مبسوط وغیره هغه دغه مذکور فی المتن دی، یعنی د زکات اداء د دغه پور هغه وخت پر ده لازمه ده چې دوه سوه روپۍ د دغه پور وکاږی د پوره وری څخه او د کال تیریده د وخت څخه د لزوم پر مشتری باندی نه د وخته څخه د قبض، او بل روایت دی د ابن سماعة د امام اعظم څخه په هغه روایت کی وائی: چې د وخت څخه د قبض د ٢٠٠ روپۍ چې کال پر تیر سی، نو





زکوٰة یې واجب الاداء دی نه د وخت څخه د لزوم پر مشتری، ودلائل الروایتین ووجه صحة روایة المتن فی الکتب المبسوطة فراجعها، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَالضَّعِيْفُ وَهُوَ بَدَلُ مَا لَيْسَ بِمَالٍ كَالْمَهْرِ وَالْوَصِيَّةِ

او بل ضعیف پور دی هغه هغه پور دی چې بدل د ماله څخه نه وی، لکه ولور د مایني چې پر میړه

## وَبَدَلُ الْخُلْعِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ وَالدِّيَةِ وَبَدَلُ

باندی او کال پر تیر سی، او یا سړی وصیت وکړی چې مثلاً زهاد د ریمی زر روپۍ فلانی ته ورکړی، نو ته

## الْكِتَابَةِ وَالسِّعَايَةِ لَا يَجِبُ فِيْهِ الزَّكَاةُ مَا لَمْ يَقْبِضْ

هغه روپۍ وڅخه ولی چې یو کال پر تیر سو بیا یې ورکړی، او یا دغه پور بدل وی د صلح د دم عمد یعنې یو

## نِصَابًا وَيَحُوْلُ عَلَيْهِ الْحَوْلُ بَعْدَ الْقَبْضِ

سړی یو چا په قصد سره مړ کړی بیا ورثه و د مقتول د قاتله سره صلح پر یوه اندازه روپو باندی وکړه، هغه روپۍ قاتل وڅخه ولی یو کال او بیا یې ور کړی، او یا بدل د خلع وی یعنی ماینی میړه ته وویل چې ما ایله که زه به دوی روپۍ در کړم، نو میړه هم قبول کړه، لکن ماینی هغه د خلع بدل روپۍ یو کال وڅخه ولی او بیا یې ور کړی، او یا دیت وی مثلاً یو سړی بل سړی په خطا مړ کړی چې د هغه دیت پر عاقلة د وژل کوونکی لازم دی لکن هغو د پور وڅخه اوه یو کال مثلاً او بیا یې ور کړی، او یا بدل د کتابت وی لکه چې مریی باداره ته ووائی چې ما مکاتب کړه زه مثلاً یې دوی میاشتی کی تاته زر روپۍ در کړم هغه قبول کړه لکن مریی دغه بدل یو کال وڅخه اوه او بیا یې ور کړی، او یا سعایة لکه سړی چې نیم مریی مثلاً آزاد کړی او ورته ووائی چې ته کوشش وکړه د هغه بل نیمی روپۍ ماته برابری کړه، نو مریی یو کال هغه نوری روپۍ وڅخه ولی او بیا یې ور کړی، نو په دی ټولو صورتو کی هم هغه سړی زکات نشته، ترهغو چې یو نصاب روپۍ یا بالا تر هغه قبض نه کړی، او پس قبض

کړي روپو نوی کال تیرنه سی». قال المصنفؒ

## وَهٰذَا عِنْدَ الْإِمَامِ وَاَوْجَبَا عَنِ الْمَقْبُوْضِ مِنَ الدُّيُوْنِ

او دا فرق په مابین کی د قوی او د وسط او د ضعیف پوره لکه چي تاسی واوریدی په نیز د امام اعظمؒ دی او یاران وائی زکوة د مقبوض روپو

## الثَّلَاثَةِ بِحِسَابِهٖ مُطْلَقًا

واجب بولی په دروسرو قسمو کی د پورو مطلقًا کی لږ قبض کړي اوکه ډیری» والدلائل فی الکتب المبسوطة. قال المصنفؒ:

## وَاِذَا قَبَضَ مَالَ الضِّمَارِ لَا تَجِبُ الزَّكٰوةُ لِلسِّنِيْنَ الْمَاضِيَةِ

که یو سړي قبض کړي مال د ضمار یعنی سره دا شکال د مال ضمار کړده قبض کړي د تیرو کلونو زکوة نسته باندی

## پُوه سه:

چي مالِ ضمار هغه مال ته وائی چي رسیده و هغه ته ډیر مشکل وی لکه چي د مثال په توګه وائی

قال المصنفؒ:

## وَهُوَ كَاٰبِقٍ وَمَفْقُوْدٍ وَمَغْصُوْبٍ لَيْسَ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ

د مال ضمار یو مثال لکه مریی یو یا ډیر چي وتښتی یا ورک سی لکن د تجارت د پاره وی وروسته هغه مریی پیدا کړي، بل مثال یې دا دی چي مال د سړي که نغدی وی اوکه تجارتی مال وی خوک یې په زور غصب کړي او مالک شاهدان نه لري، لکن اخر غاصب پښیمانه سی او هغه مال یې ور کړي» قال المصنفؒ

## وَمَالٍ سَاقِطٍ فِي الْبَحْرِ وَمَدْفُوْنٍ فِيْ مَفَازَةٍ اَوْ دَارٍ عَظِيْمَةٍ

یا د سړي تجارتی مال په دریاب کی غرق سو یا نوره مال د دریابه څخه په لوه زړلو لاس ته ورغلی، بل مثال یې هغه مال او نقود دے چي ده ښخ کړي وی په بیا بان کی، او یا په لوی سرای کی او ځای د ښخید وخندی هیر وی، بخلاف

## وَقَدْ نَسِيَ مَكَانَهٗ وَمَاْخُوْذٍ مُصَادَرَةً

د دی چي کشنی سرای وی ولی د هغه ټول سرای شنل ممکن دی، بل مثال یې دا دی چي یو اندازه مال ظالم په زوره ده څخه اخستی وی چي د ده زور نه په رسیږی





مثلاً حکومت وقت په زوره څخه ندی اخستی وی او ضبط کړی وی وروسته هغه حکومت پښیمانه سی یا بل عادلانه حکومت قائم سی او ده ده مال بیرته لاس ته ورسی، قال المصنفؒ:

## وَمُوْدَعٍ عِنْدَ مَنْ لَا يَعْرِفُهٗ

او یا یې مال امانت ایښی وی څوک اسی چا ته چي دی ده نه پیژنی، لکن هغه سړی د دی سړی مال ور ته راوړی، بخلاف د دی چي مال یې وه شناخته سړي ته ایښی وی او بیا څندی هیروی په هغه باندی د تیرو کلونو زکات لازم دی، ولی نقصان په ده کی دی څرنګه شناخته سړی څندی هیر سو، قال المصنفؒ:

## وَدَيْنٍ لَا بَيِّنَةَ لَهٗ عَلَيْهِ

او یا یې پور پر چا باندی وی او هغه پور وړی په منکر وی او دی هم شاهدان نه لري، وروسته هغه پوره وړی خپله پښیمانه سی او مال یې ور ته راوړی، درویش وائی چي په دغه ټولو مثالو کی د مالِ ضمار چي مالک ته بېله ډیرو کلو لاس ته ورسي، د تیرو کلونو زکوة باندی نسته بلکه چي بېله وصوله کال پر تیر سی بیا د یو کال زکات پر کیږی» قال المصنفؒ:

## وَلَا يُجْزِءُ عَنِ الزَّكَاةِ دَيْنٌ اَبْرَءَ عَنْهُ فَقِيْرٌ بِنِيَّتِهَا

او کفایت د زکوة څخه نسی کولای یعنی د زکات غاړی نه په خلاصیږی، هغه پور چي دیوه غنی یو فقیر باندی وی او ابراء ورکړه سی وهغه ته په نیت د زکات» درویش وائی چي د دی مسئلی ټوله بیان وړاندی عنقریب تیر سو» قال المصنفؒ:

## وَصَحَّ دَفْعُ عَرَضٍ وَمَكِيْلٍ وَمَوْزُوْنٍ عَنْ زَكَاتِ

او صحیح دی ورکول د عرض یعنی کالی کمبل لوښی وغیره، او هغه شی چي په پیمانه خرڅیږی لکه غنم

## النَّقْدَيْنِ بِالْقِيْمَةِ

حرما او ربشی وغیره په اصطلاح د عربو، او یا په ترازو تلل کیږی لکه وسپنه قلعی وغیره په زکات کی د نغدو یعنی سپین زر یا سره زر لکن په قیمت د عرض او د مکیل او موزون، یعنی د اسی غاړی نه په خلاصیږی چي د لسو روپو،

عرض وغیره د سلو روپو نغد په زکات کې ورکړي، لکه بعض عوام چې دا غنۍ حیله جوړه وي چې یو مسکین یو جوړه کالي ورکړي چې مثلاً قیمت یې لس روپۍ وي او دی مسکین ته ووایي چې دغه کالي د سلو روپو په زکوة کې قبول کړه مسکین کالي غنیمت وبولي، ورته ووائي ښه دی لکن دغه فقط د لسو روپو د زکات غاړي به خلاصیږي. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَإِنْ أَدَّى مِنْ عَيْنِ النَّقْدَيْنِ فَالْمُعْتَبَرُ وَزْنُهُمَا أَدَاءً كَمَا اُعْتُبِرَ وُجُوبًا

او که سړي زکات ورکاوه د خودی نقد ینو څخه نو معتبر به وزن دی په اداء کې لکه چې وزن د دوی معتبر وو په وجوب کې یعنی د نصاب په باره کې، مطلب دا دی چې قیمت ته د سپین زرو او سرو زرو اعتبار نشته، مثلاً په سرو او سپینو زرو کې جید او ردي چې په قیمت کې ډیر فرق سره لري. او یا یوه ګېنړه د ښځو د سرو زرو څخه مثلاً جوړه شوې وي چې قیمت یې ۳۰ مثقاله وي مثلاً لکن سره زر په کښې ۲۰ مثقاله کار شوي وي نو معتبر وزن دی قیمت نه دی، او دا مذهب دی د امام اعظمؒ او د امام ابویوسفؒ او امام زفرؒ وائي چې قیمت ته اعتبار دی. او امام محمدؒ وائي چې هر یو قیمت او وزن څخه چې د فقیر فائده په کښې وي معتبر دی

**فَائِدَةُ الْاِخْتِلَافِ**: په یو سړي پنځه درهمه د سپینو زرو زکوة واجب وو ده د بیکاره سپینو زرو څخه چې په وزن پنځه درهمه وو ورکړه فقیر ته چې قیمت د هغو په جیاد سره څلور درهمه کیدی، نو په نیز د شیخینو زکات یې صحیح دی، ولې چې وزن خو یې برابر دی لکن سره د کراهت. او امام محمدؒ او زفرؒ وائي چې زکات یې تر هغو نه دی صحیح چې هغه بالا بود د قیمت ورنه کړي. د امام زفرؒ په مذهب خو ظاهره ده ولې چې دی قیمت ته اعتبار ورکوي، او د امام محمدؒ په نیز چې انفع للفقیر اعتبار ورکوي د دې سببه غاړې نه خلاصیږي چې شک نشته چې انفع و فقیر ته خو موږ دی سره د فضله دی، فافهم. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَتُضَمُّ قِيمَةُ الْعُرُوضِ إِلَى الثَّمَنَيْنِ وَالذَّهَبِ إِلَى الْفِضَّةِ قِيمَةً

او ضـ... قیمت د عروض یعنی چې د تجارت د پاره وي و سپینو زرو یا سرو زرو ته





چې د مجموع زکات د نقدینو څخه ورکړي روا ده، او دغه رنګه ضم کړه کیږي سره زر و سپینو زرو ته په اعتبار د قیمت د سرو زرو چې نو زکات د مجموع د سپینو زرو څخه ورکړي.

قَالَ الْمُصَنِّفُ: **وَنُقْصَانُ النِّصَابِ فِي الْحَوْلِ لَا يَضُرُّ إِنْ كَمَلَ فِي طَرَفَيْهِ**

او نقصان د نصاب په مابین کې د کال تاوان نه لري یعنی زکوة نه په ساقطیږي کله چې هغه نصاب په سر او پای کې د کال پوره وو، مثلاً یو سړي دوه سوه (۲۰۰) درهمه په سر کې د کال درلوده، نو ده بیا پوښی د ګټې په امید په رانیوی، مګر په وروسته کې د هغه شي قیمت ۱۰۰ سل روپۍ راکښته شو، مال پروت وو رفته رفته په اخیر کې د کال بیرته دوه سوه (۲۰۰) روپۍ ته ورسیدی نو زکوة کامل پرې واجب دی،

قَالَ الْمُصَنِّفُ: **فَإِنْ تَمَلَّكَ عَرَضًا وَهُوَ لَا يُسَاوِي نِصَابًا وَلَيْسَ لَهُ غَيْرُهُ**

که د سړي په ملک کې وو یو عرض هر شی چې وي د تجارت د پاره لکن قیمت د هغه شي په ابتداء کې د کال

## ثُمَّ بَلَغَ قِيمَتُهُ نِصَابًا فِي آخِرِ الْحَوْلِ لَا تَجِبُ زَكَوتُهُ

نصاب ته نه رسیدی مثلاً قیمت یې سل روپۍ وو لکن دی سړي چې تجارت شروع کې رفته رفته ده په اخیر کې د کال دوه سوه (۲۰۰) ته ور ساوه. نو د دغه کال زکات بانډې نشته، تا چې

**لِذَٰلِكَ الْحَوْلِ** بل کال په تیریږي، لکن شرط دا دی چې بل شی د نقدینو څخه بې د ی نه لري چې نصاب په اول کې د کال په پوره سي، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَنِصَابُ الذَّهَبِ عِشْرُونَ مِثْقَالًا وَنِصَابُ الْفِضَّةِ

او نصاب د سرو زرو شل مثقاله دی او نصاب د سپینو زرو ۲۰۰ دوه سوه درهمه دی د

## مِائَتَا دِرْهَمٍ مِنَ الدَّرَاهِمِ الَّتِي كُلُّ عَشَرَةٍ وَزْنُ سَبْعَةٍ

هغو دراهمو څخه چې هر لس درهمه یې اوه مثقاله وي، او هغه روپۍ سري یا سپینې، چې تر شل

## وَمَازَادَ عَلٰی نِصَابٍ وَبَلَغَ خُمُسًا زَكَّاهُ بِحِسَابِهٖ

مثقاله بالاسي او ياد هغو درهمو څخه چې هر لس درهمه يې اوه مثقاله وي، او هغه روپۍ سرې يا سپينې چې ترڅلور مثقاله بالاسې اوياتردوه سوه درهمه بالاسې، لکن پنځمې حصې ته د نصاب ورسيږي يعنې ۴ مثقاله د سرو زرو يا ۴۰ درهمه د سپينو زرو نو زکات به يې په حساب د نصاب ورکوي.

**پوهه سه**: پوه سه چې د پاره د پيژندلو د مقدار د دينار او درهم چاره نشته، چې د هغو کسو به سړي پيژني، نو واوره چې دينار شپږ حبې دی، او حبه دوه ارېشې ده نو د حبې ارېشې ۱۲ کيږيکه او اربشه ۲ خردله ده، او خردل ۱۲ فلس دی، او فلس ۶ فتيله دی، او فتيله ۲ نقير دی، او نقير ۶ قطير دی، او قطمير ۱۲ ذره دی، نو تر په ضرب سره د دينار ذرې معلومې کړه، او هغو ذرې چې عوندي کړي دينار به څندي جوړسي، او درهم خو هغه دی لکه مصنف چې وويل لس درهمه اوه مثقاله کيږي، او **پوهه سه**: چې مثقال او دينار يو شي دی، نو په بل عبارت پيژند ګلوي د مثقال او دينار داسې کيداى سي چې يو دينار شل قراط دی، او درهم ۱۴ قيراط دی، او قيراط پنځه ارېشې دی، نو په دی حساب دينار ۱۰۰ ارېشې دی، او درهم ۷۰ ارېشې دی.

**تنبيه**: درهم چې ۱۴ قيراط هغه درهم شرعي او درهم متعارف ۱۲ قيراط دی، نو مقدار د نصاب د دراهمو متعارفو په حساب ۲۰۰ درهمه دی، او درهم شرعي په حساب ۱۷۵ كذا قال الامام الطحطاوي، او بعض متاخرين چې د هغه بنا ر او وطن خپل دراهم معتبر دی په نصاب کی لکه افغاني په افغانستان کی، کالداري په پاکستان کی، ريال په سعودي کی په فتح القدير کی وائي: وهوالحق، وَاللهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ. **فائده**: علامه طحطاوي په مصنف باندی داسې نيوکه کړيده، چې مناسب دا وه چې پر سپينو زرو مصنف د مخه تر سرو زرو خبره کړي واى، ولې چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم و عمالوته خپل اول د سپينو زرو نصاب او زکوة بيان فرمايلی، او سره زر نه؛ او بل دا چې په خلګو کی عمومًا





او اکثرا سپين زر رواج دی، نو ددی سببه مهم بنځوا و نصاب د رقه هم د دغه سپينو زرو په روپوسته کل کيږي، **درويش** وائي چې شايد مصنف ددی لپاره د سرو زرو نصاب ذکر کړي وي چې سره زر خو اعز د نقدينو وه، نو حلګ چې په دی پوهه سي چې په کی د نقدينو زکات نو پر سپينو زرو به دلاو رسي، د زکات په باره کی» قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَمَا غَلَبَ عَلَى الْغِشِّ فَكَالْخَالِصِ مِنَ النَّقْدَيْنِ

او هغه سکه و بلی زر چې زر يې ترقوتو ډيروي، نو هغه لکه خالص زر داسې دی يعنې په نصاب او زکوة الله کی غش غالبه وه هغه حکم د عروضو لري په اعتبار د قيمت يې زکات سته.

## وَلَازَكٰوةَ فِى الْجَوَاهِرِ وَاللَّاٰلِیْ اِلَّا اَنْ يَتَمَلَّكَهَا بِنِيَّةِ

او زکوة نشته په جواهراتو کی لکه عقيق، مرجان، يا قوت، او نور د دغه قسمه جواهرات او نه په ملغلرو کی زکوة سته، مګر هغه وخت بيا زکات

## التِّجَارَةِ كَسَائِرِ الْعُرُوْضِ

پکښې سته، يعنې په اعتبار د قيمت د هغو کړده په ملک کی د غه جواهرات وغيره او ستلی وه په نيت د تجارت. **پوهه سه**: چې امام طحطاوي د درمختار نقل کړی دی، چې غير د سرو زرو او سپينو زرو او غير د سوائه و هرشي چې موتيران وي که سايونه وي کر غالی وی که جواهرات وغيره وي، په هغو کی زکوة نشته مګر چې په نيت د تجارت په رانيولی وي په وخت د عقد کی، **مسئله**: که سړي يو شی د دغو شيانو رانيوی او په وخت کی د عقد په نيت د تجارت نو ورسته، په نيت د تجارت په کښې وکړي زکات نشته باندی» ط» **مسئله** که يو چا د دغو شيانو څخه يو شی رانيوی د پاره د استعمال او نيت په دا وو که چيري بنه ګټه پر راغله خرڅوم يې تر هغو چې خرڅ کړي يې نو ی زکات په کښې نشته در، ط،

قال المصنف **وَلَوْ تَمَّ الْحَوْلُ عَلٰى مَكِيْلٍ اَوْمَوْزُوْنٍ فَغَلَا سِعْرُهٗ**

او که پر کيلي شی لکه غنم و ورلشي، جوار، ورجي وغيره او يا پر وزني شی لکه وسپنه وغيره کال تير سو يعنې د تجارت د پاره لی

## اَوْرُخِصَ فَاَدّٰی عَنْ عَیْنِهٖ رُبُعَ عُشْرِهٖ اَجْزَئَهٗ وَلَوْاَدّٰی

رغول وه، نو زرخ د غوشیانو پوره سوا و یا کبته سو نو که د غه تجار د عینی د غوشیانو څخه غلرمه دلسمی حصی ورکړه د زکات غاري

## مِنْ قِیْمَتِهٖ تُعْتَبَرُ قِیْمَتُهٗ یَوْمَ الْوُجُوْبِ وَهُوَ تَمَامُ

په غاړه سوی، او که د قیمت څخه د د غوشیانو زکات ورکړی، نو حضرت الامام الاعظمؒ چې هغه ته په اعتبار دی چې

## الْحَوْلِ عِنْدَ الْاِمَامِ وَقَالَا عِنْدَ یَوْمِ الْاَدَاءِ لِمَصْرِفِهَا

پر د زکات د غوشیانو واجب سو چې حولان د کال دی، او یارانؒ وائی چې قیمت د هغه ورځې معتبر دی چې دی په و مصارفو ته د زکوٰة ورکوی، قـــال المصنفؒ:

## وَلَا یَضْمِنُ الزَّکَاتَ مُفْرِطٌ غَیْرُ مُتْلِفٍ فَهَلَاكُ الْمَالِ بَعْدَ

او د زکات ضامن نه دی هغه سړی چې په اداکولو کی د زکوٰة ئی تفریط کړی وی یعنی پر مال کال تیر سو

## الْحَوْلِ یُسْقِطُ الْوَاجِبَ

لکن مالک د مال بیله عذره زکات وځنډوی حتی چې مال تو له بیله دده د صنعی هلاك سو مثلاً غلو څنډي یو وړی او یا څنډی وړك سو وغیره، نو دی ضامن د زکات نه دی، نتیجه د اسوه که مال تو له بیله تمام الحول هلاك سو، نو هغه واجب زکات ساقط سو که څه هم ده په اداء کی تفریط کړی وی

قال المصنفؒ **وَهَلَاكُ الْبَعْضِ حِصَّتَهٗ وَیُصْرَفُ الْهَلَاكُ اِلَی**

او د بعض مال هلاك ساقطوی حصه د هغه هلاك مال د باقی مال زکات پر ستره، او صرفول کیږی هلاك اول و هغه قدر ته چې عفوه

## الْعَفْوِ فَاِنْ لَمْ یُجَاوِزْهُ فَالْوَاجِبُ عَلٰی حَالِهٖ

دی یعنی زکات نه وی پکښی، نو که هلاك تر عفوی نه سو بالا نو د ټوله مال زکات پر لازم دی یعنی هغه چې باقی مال دی،





مثلاً یو چا شپږ اوښان درلوده، نو پر ده څو یو پسه کیږی او یو اوښ عفوه دی، نو بیله تمام الحول یو اوښ هلاك سو نو پر ده پوره پسه کیږی هغه هلاك متوجه و عفوی ته دی، نو د اموال د تجارت هم پر دغه قیاس کړه، فتفکر، قـــال المصنفؒ:

## وَلَا تُؤْخَذُ الزَّکَاةُ جَبْرًا وَلَا مِنْ تَرِکَتِهٖ اِلَّا اَنْ یُوْصٰی بِهَا

او نه دی اخستل کیږی زکات په زوره او نه زکات دی اخسته کیږی د میراث څخه دده مگر نه که مړی د خوا څخه وصیت کړه سوی وو په زکات نو له مړی وصیت

**فَتَکُوْنُ مِنْ ثُلُثِهٖ** د زکوٰة کړی وو نو بیا دی قدر د زکوٰة د دریمی څخه ورکړی فقط کی غاړی په خلاصیږی او که نه ولی چې دوه ثلثه خوده ورثه و حق دی، الا ان یتبرعوا به.

## وَیُجِیْزُ اَبُوْ یُوْسُفَ الْحِیْلَةَ لِدَفْعِ وُجُوْبِ الزَّکٰوةِ وَکَرِهَهَا

او روا بولی امام ابو یوسفؒ حیله د پاره د دفع د وجوب د زکوٰة، او امام محمدؒ یه مکروه بولی

مثلاً یو سړی د امی مال درلودی

**مُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُمَا** که کال پر تیر سوی وای پر ده زکوٰة واجبیدی لکن دده په مابین کی د کال هغه مال و چا ته و بخښه بیا چې کال پوره سو او هغه مال په نیز د موهوب له موجود وو بیا دوباره واهب رجوع په هبه کی وکړه، او هغه مال په د څخه بیرته واخستی یا په رضا او یا په قضاء د قاضی، نو دد غه مال پر یوه باندی زکات نسته، لعدم حولان الحول عند احدهما، خانیه ط وفی المعراج، که یو سړی اوښان چې نصاب یه پوره وو، نو ده یوه ورځ تر کال پوره کیدو د مخه خرڅ کړه فرارًا عن وجوب الزکوٰة، قال محمد یکره وقال ابو یوسفؒ لا یکره وهو الاصح، او کی د کوره د نفقی د پاره خرڅ کړه لا یکره بالاجماع وتمام هذا المبحث فی البحر، درویش وائی چې خدای جل سلطانه چې سړي ته دونه مال ورکړی چې پر ده زکوٰة واجبیدی نو مناسب دا ده چې د پاره د اسقاط د حق الله چې زکات دی حیله و نه کړی، وَلَئِنْ شَکَرْتُمْ لَاَزِیْدَنَّکُمْ، ایت کریمه دی، او شك نسته چې زکوٰة شکر د مال دی،

# بَابُ الْمَصْرِفِ

باب ثابت دی په بیان کی دمصرف دزکوٰة

**پوښتنه** چې دمصرف تعریف قهستانیٔ په اصطلاح کی دشرع په داسی ډول کړی دی چې هغه مسلمان دی چې هغه ته ورکول دزکات روا وی» **فائده**: مصنفؒ دباب په عنوان کی داسی ونه ویل، باب مصرف الزکوٰة »که څه هم بحث خودزکات دی، ددی دپاره چې مصرف الزکوٰة مصرف العشر، مصرف خمس المعادن، ته هم شامل سی، چې دمعادنو دخمس المصرف بیت المال دی **فائده**: په قرآن شریف کی دزکوٰة اته ۸ مصارف ذکرسوی او مصنفؒ اوه مصارف ذکرکړه، ولی چې مؤلفة القلوب چې په قرآن مبارك کی ذکرسوی دي دهغو برخه په اجماع دصحابه کرامو ساقطه سوه»

**پوښتنه**: مؤلفة القلوب څه کسان وه چې صحابه کرامو د مصرفیت څخه وایستل»
**جواب**: مؤلفة القلوب هغه ضعیف الایمان مسلمانان وه چې داسلام سره ئې قوی رابطه نه وه، نوآن حضرت صلی الله علیه وسلم په امرالهی ودوی ته په صدقاتو کی ونډه ورکړل تاچه دایمان سره ئې علاقه په مرور دزمان ټینګه سی، نوځکه اضافه دمصرف دصدقاتو په قرآن مبارك کی اته ذکرسوی دي، قَالَ اللهُ تَعَالیٰ: اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ الی ان قال وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ الآیة
**پوښتنه**: چونکه دمؤلفة القلوب په قرآن کی ذکرسوی دی نو دصحابه کرامو په قول څرنګه منسوخه کیدای سی، **جواب**: په اصولو کی دفقه راغلی دی چې اجماع دصحابه کرامو دلیل قطعی دی، نوکیدای سی چې ناسخ دقرآن وګرځي: والتفصیل یطلب من کتب فن الاصول

قال المصنفؒ **هُوَ الْفَقِيْرُ وَهُوَ مَنْ يَّمْلِكُ مَالَا يَبْلُغُ نِصَابًا وَلَا قِيْمَتَهُ**

یومصرف دزکات فقیردی، اوفقیرهغه څوك دی چې مالك څووی دڅه مال لکن نه رسیږی مال دده نصاب ته اونه قیمت ته د نصاب»





**مِنْ اَیِّ مَالٍ کَانَ وَلَوْ صَحِیْحًا مُکْتَسِبًا** دهرمال څخه چې وی که څه دی په صورت جوړ اوکسب اومزدوری قابل وی، **مسئله**: که سړی نصاب خودرلودی لکن هغه مستغرق دده په حاجت اصلی سره وو نو زکوٰة اخسته ورته روادي ط. **مسئله** که دسړی پوروړی پوچاباندی وو چې نصاب کیدی لکن په مده سره اومده نه وی رسیدلی اودی نفقی ته محتاج سو، نوده ته زکات اخستل روادی تروخت داجل **مسئله**: که پور دده اجل نه درلودی نوکه پوروړی دده مسکین وو، نوده ته اخستل دزکوٰة روادی په صحیح روایت کی اوکه پوروړی غنی وو لکن دده دپور څخه منکروو، اوده شاهدان دپور نه درلوده، نوده ته اخستل دزکات روادی، اوکه پوروړی غنی وو اوده په پور یې اقرار کاوه، نوده ته اخستل دزکات ناروادی،» ط »در» **فائده**: هغه چاته چې روغ رمټ وی او پرکسب هم قادر وی، اولیٰ داده چې دزکات وانخلی، اوداذلت پرځان نه کړی تیر» در، ط، قال المصنفؒ

**وَالْمِسْکِیْنُ وَهُوَ مَنْ لَاشَیْءَ لَهٗ** **پوښتنه**: چې مراد نفی دشئ مطلق نه دی یعنی چې نه قمیص لری اونه پرتوګ لری وغیرذالك بلکه مراد نفی دهغه شی دی چې دهغه شی په نصاب کی زکوٰة کیږی لکه سره زر اوپن، تیر، وغیره **پوښتنه**: چې بعض فقهاءؒ تعریف دفقیر اومسکین پرعکس دماقال المصنف کوی، لکن دمصنفؒ قول اولیٰ دی: لِقَوْلِهٖ تَعَالیٰ: اَوْمِسْکِیْنًا ذَامَتْرَبَةٍ، قال

**وَالْمُکَاتَبُ** اودریم مصرف مکاتب دی چې بادار وده ته وواٸی چې دومره مقدار روپی ماته راکړه نوته ازادئ، وهوالمراد بقوله تعالیٰ: وَفِی الرِّقَابِ، عند اکثر المفسرینؒ **پوښتنه**: چې په مکاتب کی افرق نسته چې مکاتب دغنی مالک وی یاد فقیر پرمذهب صحیح ط **مسئله**: ومکاتب ته دهاشمی زکوٰة نه دی روا، ط، **فائده**: ومکاتب ته نه دی روا چې چا زکات ورکړی چې دی به ئې صرفوی په غیرکی دبوٴ دکتابت» بحر»

اللهم اغفر لمؤلفه ولمترجمه ولشارحه ولکاتبه وقدکتبه بقلمه قاری فضل الحق حقانی غفرله

قال المصنف

## وَالْمَدْيُوْنُ الَّذِىْ لَايَمْلِكُ نِصَابًا وَلَاقِيْمَتُهٗ فَاضِلًا عَنْ دَيْنِهٖ

اوبل مصرف د زکوٰة هغه سړی دی چی پور پر باندی وی او دی مالك دنصاب یا دقیمت دنصاب چی بالاده تر پور وی نه وي، په فتاوٰی ظهیریه کی وائي چی مدیون ته د زکات ورکول ورکړی سړی ته اولٰی دی تر ورکړی وفقیر ته، لکن مدیون به هاشمی نه وی

قال المصنف

## وَفِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَهُوَمُنْقَطِعُ الْغُزَاةِ اَوِالْحَاجِّ

اوبل مصرف د زکوٰة فی سبیل الله دی یعنی په لار کی دخدای **پوښتنه**: چی کله ټول زکاتونه فی سبیل الله دی لکن په عرف دشرع فی سبیل الله هغه کسان دي چی په غزا کی نفقه او خرچ یې خلاص سی، یا یې دابه یا موټر د کاره ولویږی نو هغوته د زکات ورکول او اخستل روا دي که څه هم کسب کاره خلك وی، ولی که دوی په کسب لاس پوری کړي نو د غزا څخه پاتیږی، او دغه خلکوته ورکول د زکات دیرښه کاردی په سبب دفقر او جهاد څخه پاته کیدو، او دا تنویر مختار د ابو یوسف دی د فی سبیل الله. یا منقطع الحاج یعنی چی دحاجی دحج په وخت کی نفقه خلاصه شي وبیا غله یې خندی یوسی. او دا هم قول د امام محمد دی د فی سبیل الله او بعض فقهاء وائی چی فی سبیل الله طالبان دعلم دی چی فقیران وي. **فائده**: دا اختلاف په مابین کی د امام ابو یوسف او دامام محمد په تفسیر کی، دهغه ایت دی چی فی سبیل الله په کښی ذکر سوی دی ورته په اتفاق ورکړه د زکوٰة وټولوته روادی، په شرط دفقر. قال المصنف:

## وَابْنُ السَّبِيْلِ وَهُوَمَنْ لَهٗ مَالٌ فِىْ وَطَنِهٖ وَلَيْسَ لَهٗ فِىْ سَفَرِهٖ

وبل مصرف د زکات ابن السبیل دی یعنی د لاری زوی، چی معنا یې مسافر دی، او دی هغه سړی دی چی په وطن کی څه مال لری لکن دا مال ده سره نه وي په سفر کی **پوښتنه**: چی ابن السبیل چی په وطن کی مال دنصاب لری پر ده زکوٰة واجب دی چی څه وخت مال ورلاس ته ورسیږی لکن فی الحال په لاس کی ده مال نسته، نو دی فقیر دی د زکات اخستل ورته روادی.





**سوال** منقطع الغزاة او منقطع الحاج که په وطن کی مال لری، نو دوی څو په ابن السبیل کی داخل سوه، او که په وطن کی هم مال نه لری نو څو په فقراوو کی داخل سوه نو څرنګه ابن السبیل کی داخل سوه. **جواب** په اختیار دشق ثانی چی چونکه په منقطع الغزاة او منقطع الحاج جلا قسم سو چی دوی په عبادت کی دخدای ولاړدی چی غزا یا حج دی نو دی کبله دفقیر مطلق څخه جلا قسم سوله، **مسئله** د ابن السبیل دپاره قرض کول دیوچا اولٰی دی تر قبول د زکات د خلکو کذا فی بحر الرائق. قال المصنف:

اوبل مصرف

## وَالْعَامِلُ عَلَيْهَا يُعْطٰى قَدْرَمَا يَسَعُهٗ وَاَعْوَانَهٗ

په عامل دی بر صدقاتو جمع کولو باندی، لیعنی که هغه سړی چی حکومت اسلامی دی مقرر کړی پر راغونډولو د زکات داو بناتو، پسو وغیرها باندي، نو دغه عامل ته دی د زکات د مالو څخه دومره قدر تنخواه ورکوي چی دده او دده ملګری لیعنی مرستیانو یا مزدورانو بسیږی که هم دغه عامل څخه غنی وي،

## وَلِلْمُزَكِّىْ الدَّفْعُ اِلٰى كُلِّ الْاَصْنَافِ وَلَهُ الْاِقْتِصَارُ عَلٰى وَاحِدٍ

او روا ده زکات ورکوونکی ته چی خپل زکات پر ټولو دغو صنفو وویشی، او هم ده ته روا ده چی خپل زکات

## مَعَ وُجُوْدِ بَاقِى الْاَصْنَافِ

پر یوه صنف قسم کړی لیعنی یوه صنف ته یې ورکړی سره د دی چی باقی اصناف هم موجود وی، بلکه دا هم موجود وی، بلکه دا هم ورته روا ده چی دیوه صنف و یوه سړی ته یې ورکړی فقط. او بعض امامان وائی چی مزکی به حتمًا خپل زکات و ټولو اصنافو ته او په هر صنف کی کم از کم درو کسانو ته ور ورکوي، وفی النهر روی عن کثیر من الصحابة رض عدم التعیین یعنی د مزکی اختیار دی". قال

## وَلَايَجُوْزُ دَفْعُهَا لِكَافِرٍ وَغَنِيٍّ يَمْلِكُ نِصَابًا اَوْمَا يُسَاوِيْ

او نه ده روا ورکړه د زکات وکافر ته لیعنی که مشرك وی او که دهري وي او که یهودی وی او که نصاري وي، او دغه رنګه روا ده ورکړه د زکات وغنی ته چی مالك د نصاب وی د هر ماله څخه چی وي

لکن دا نصاب دَحَوَا ئجو او د پورہ څخه خالی وي . قـال المصنفؒ:

## فِيمَتُهُ مِنْ اَىِّ مَالٍ كَانَ فَاضِلًا عَنْ حَاجَتِهِ الْاَصْلِيَّةِ

خواه هغه نصاب نامی بالفعل وی او که صالح دنماوی لکن ده معطل پرېښودی، او یا بل شی چې برابروی قیمت د هغه د نصاب سره د هر مال څخه چې وي، **فـائـده**، مراد د بل شی څخه هغه شی دی چې دَ تجارت دپاره وی، نه د استعمال دَپاره مثلًا یو سَړی په کورکې ډیری غالی او لوښی او سپرتیا موټر وغیره د استعمال دپاره نو هغو په قیمت کی زکات نشته، که څه هم نصاب ته رسیږی اوکې یو غالی مثلًا تجارتی در لوده چې قیمت یې نصاب ته رسیدی زکات پا ندی فرض دی، وعلیٰ هذا القیاس ډیر سرایونه دکرائی دَپاره نه دَ تجارت دَپاره د هغو په قیمت کی زکات نشته، وهکذا اسپې ډیری څوک رانیولی وی لکن نه په نیت دَ تجارت فتأمل، قـالَ المصنفؒ:

## وَطِفْلِ غَنِيٍّ

او د غه رنګه نه ده روا ورکول د زکات وکشنی ته د غنی سړي کم زوری او که بنځه او که په عَیال کی دغنی وی او حَلاوي، **پوهـه** چې مراد د طفل څخه هغه دی چې بلوغ ته نه وی رسیدَ لی، دلیل د عدم جواز چې طفل غنی ګنړل کیږی په غنا د پلار **فـائـده**: دغنی زوی چې لوی وی زکوٰة ور ته رَوادی، که څه هم مثل وی نفقه یې پلار ورکوی **مسـئله**: په لورکی دغنی چې میړه لری اختلاف دی صحیح دادی چې زکوٰة ورته روادی، **مسئله** رواده ورکړه د زکات وما یني ته د غنی سړي چې دا پخپله مالکه دنِصاب نه وی، ط **مسـئله**: دغنی بنځې وه کشنی زکوٰة روادی ولی چې دی غنی په غنا دمور نه ګرځې که څه هم د دی سَره یوځای وي، ط قـال المصنفؒ

## وَبَنِي هَاشِمٍ وَمَوَالِيهِمْ وَاخْتَارَ الطَّحَاوِيُّ جَوَازَ دَفْعِهَا لِبَنِي هَاشِمٍ

او د غه رنګه دی زکوٰة نه ورکوی وبنی هاشِم ته او د دوی ازادکړه سوی مريانو ته او مختار کړیده امام او فقیه ابوجعفر الطحاویؒ چې مصنفؒ دشرح معانی الاثار دی په حديثوکی، او ده په شان حنیفیانؒ وائی چې اعلم دنا سوی مذهب





دامام ابوحنیفهؒ هم د غه طحاویؒ دی چې د زکوٰة ورکړه وبنی هاشمو ته روادی، **پوهـه** زکات ورکول وبنی هاشمو ته نارَوادی په اختیار د مصنفؒ کی بل څوك وَدوی ته زکات ورکوی او کی دوی یو بل ته زکات ورکوی، او امام ابویوسفؒ یو و بل ته دبنی هاشمو زکات روا بولی" **پوهـه**: چې حرمت د زکات وبنی هاشمو ته بعض فقهاءؒ بلکه اکثر قدماء په شرافت د نسب د دوی بولي او زکات د مال خیره ده نو دا شریف نسب باید په ملوث نه سي، نو بیر دی تقدیر ودوی ته زکات الی یوم القیامه نارَوادی، واختاره المصنفؒ واکثر الفقهاءؒ او بعض فقهاء لکه امام طحاویؒ او نور ډیر فقهاء وجه یې دا بولي چې بنی هاشمو ته خمس الخمس د بَیت المال څخه ورکول کیدی، نو زکات نه د دوی ضرورت نه وو، **پـوهـه**: چې ابوعصمتؒ دامام اعظمؒ څخه دا هم روایت کړی دی چې دفع د زکات وبنی هاشمو ته په دی زمانه کی رواده، ولحچې عوض د زکات چې خمس الخمس وو دوی ته اوس نه ور کول کیږی، ولحچې بیت المال په بارغ کی د غنائمو ډیر سست عمل مختار کړی دی او پر مستحقینو یې نه ویشي بلکه غیر مستحقین کـانو ته ورکوی، نو بنی هاشمو ته چې عوض د زکات یعنی خمس خمس الغنائم نه رسیږی لکه چې معلوم خبره ده، نو د دوی حال واصل ته رسو چې جواز دا خذ الزکات دی، او امام قهستانیؒ هم په جواز د زکات وبنی هاشمو ته فتوٰی ورکړیده،

**تبصره** در و لیش وائی په اوسنی زمانه کی یعنی سنه ۱۴۲۳ھ ق، بلکه تر دی ډیر کلونه د مخې چې کفارو غلبه وکړه او مسلمانان په هر کنج کنج دَ نړی دکفارو سره دَجهاد توان نه لری نو غنائم بیخي اوس وجود نه لری حتیٰ چې خمس الخمُس یې وبنی هاشمُوته ورکړه سی، او بله خبره دا ده چې بنی هاشمِوته څوك مَزدوری هم نه ورکوی، ولی وائی چې دا بی ادبی دَه، نو چې زکات هم نسی ور ته روا نخیر بنی هاشِم به څه کوی **مسـئله** نفلی صدقات او دوقفی څکوغله وبنی هاشِموته اتفاقا رواده، وهوالحق کما فی فتح القدیر" او سیّد وائي چې د زکات خمس د بیت المال څخه هم وبنی هاشمو ته روادی، وابعد الزیلعیؒ حَیث سَوّی فی المنع بین الصدقة الواجبة والتطوع" والعلم عند الله"

قال المصنف: **وَاَصْلُ الْمُزَكِّيْ وَفَرْعِهٖ** اوده ته زکوٰة نه دی روا د زکات ورکونکي خپل واصل ته لکه پلار نيکه که څه هم لوړ وي او يا مور ته او هغې مور يا پلار ته، او ده ته زکوٰة نه دی روا وفروع ته د مزکي لکه زوی يا زوی زوی وان سفل يا لور، يا د هغې عيال **مسئله** چې نه اصول د مزکي وي او نه فروع وي وهغو ته زکات روا دی، لکه خوندي، وروڼه، او د هغو اولادونه، دا کا زامن او يا خودی آکا او اخوال او خالا نو ته زکوٰة ورکول روا دی، بلکه دوی ته دفعه اولی ده تر بېګانو وخلکو ولې چې په ورکړه کی صله رحمي هم راځي علاوه تر زکوٰة، **مسئله**: د زوی ومايني ته زکات روا دی، لکن په ټولو کی شرط دا دی چې فقراء به وي، وفي الصورة الاخيرة نظرٌ فتدبر.

قال المصنف: **وَزَوْجَتِهٖ** اوده ته زکات د مېړه ومايني ته روا نه دی که څه هم مسکينه وي داخو اتفاقا نا روا دی، او د مايني چې غنی وي ومېړه ته چې فقير وي يا ران وائي چې روا دی او امام اعظم وائي چې نا روا دی، قال المصنف:

**وَمَمْلُوْكِهٖ وَمُكَاتَبِهٖ وَمُعْتَقِ بَعْضِهٖ وَكَفَنِ مَيِّتٍ وَقَضَاءِ دَيْنِهٖ** اوده ته زکات نا روا دی وخپل مريي ته او د سري خپل مکاتب ته، او يا د مريي بعض بل چا يا ده ازاد کړي وي، او ده ته نه دی روا چې د زکات په روپو مړي ته کفن رانسي او يا د مړي پوروڼه په اداء کړي، لکن اشباه ونظائر دا سی حيله د مړي کفن ته ذکر کړېده چې د زکات روپۍ دی يو فقير ته ورکړي، او هغه دی مړي ته کفن رانسي، او ثواب د زکات ورکونکی او فقير ترمابين شريك دی، او دا حيله په قضا کی د پور د مړي کی هم جاري کيږي **مسئله**: د زکات په روپو خولي مسجد نه سی جوړولای، ولې په زکات کی تمليك وفقير شرط دی، نو دی چې په مسجد صرفوي تمليك به چا ته کوي، نو دی د مسجد امام چې فقير وي يا بل سړي ته ووائي چې مسکين وي چې زه به تا ته روپۍ په زکات کی درکړم ته مسجد په جوړ کړه ثواب به نيمي وي نو دا سی کار کيدای سي، **پوښتنه**: که هغه فقير روپۍ تنګ سوا او وی وېل چې مسجد نه په جوړوم نو بيا يه څه حکم دی **جواب**: غنی بيرته





خپل د زکات روپۍ په زور نه سی اخستلای، ولې ده خو تمليك وکړي د زکوٰة غاړي خلاصي کړي، هېر خو نه دی چې رجوع په کښي وکړي»

**مسائل شتّی فی باب الزکوٰة**: ۱ که چا خپل مريي يا مکاتب ته په شپه کی مثلا روپۍ په زکات کی ورکړي او ده نه پيژندي چې زما مريي وو يا مکاتب وروسته دا ورته ښکاره سوه چې ماخوذ کات خپل مريي يا مکاتب ته ور کړي دی، ده زکات غاړي نه خلاصيږي» ط، ع۲ او که چا زکات ويو چا ته ورکړي په تاريکه کی او پيژندی يه نه، وروسته دا ښکاره سوه چې هغه سړي هندو وو، يا زما پلار وو يا مي زوی وو، يا مي مايينه وه يا هاشمي وو د زکات غاړي يه خلاصي سوي» ط، ع۳ يو فقير ته چې پور وړي وو دونه روپۍ په زکات کی ورکول چې هغه وروسته تر پوره اداکولو پوره نصاب ور پاتيدی داورکړه مکروه ده، بلکه دونه قدر به ورکوي چې دسوال راوګرځي ع۴ حتی که يو سړي سل او نه نوي روپۍ درلودی مزکي يو درهم په زکات کی ورکړي چې نصاب په پوره سو دا هم مکروه ده» ط، ع۵ او که مزکي ويو فقير ته تر نصاب ډيري روپۍ ورکړي لکن دونه روپۍ وي که هغه فقير د خپل کور پر ټولو افرادو وېشلي وای هر يوه ته تر نصاب کمي ور رسيدلی نو بيا کراهت نه لري» مراقي» ع۶ که سړي مثلا يو درهم زکوٰة مثلا مانی کړي يعني ۳ ځايه يا ۴ ځايه کړي نو يوه يوه حصه فقراء ته ورکړه دا سی کول خلاف د اولی ده، اولی چې جمع اولی تر تفريق، لقوله تعالیٰ: اَفَرَاَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى وَاَعْطٰى قَلِيْلًا، بحر، فخر،

قال المصنف: **وَثَمَنِ قِنٍّ يُعْتَقُ وَلَوْ دَفَعَ بِتَحَرٍّ لِمَنْ ظَنَّهٗ مَصْرَفًا** اوده ته د زکات غاړي په نه په خلاصيږي که سړي د زکوٰة په روپو مريي رانيوي چې بيا ازاد کړه يې ولې چې قبض د فقير شرط دی هغه نه راغلی،

**فَظَهَرَ بِخِلَافِهٖ اِجْزَئَهٗ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدَهٗ اَوْمُكَاتَبَهٗ** که چا زکات ورکړي يو چا ته او فکر يې هم پکښي وکړي او ده غالب ګمان دا وو چې دا مصرف د زکات

دی، وروسته ورته ښکاره شو چې هغه سړی چې ما زکات ورکړی زما د زکوٰة مصرف نه وو

هغه ورکړه کافي ده یعني د زکات غاړې به خلاصې شوي، مګر نه کرم هغه څوک د ده مرئي او یا

مکاتب وو، وقد مر تفصیله من قبل فتذکره قـــال المصنفؒ:

وَكُرِهَ الْاِغْنَاءُ وَهُوَ اَنْ يَّفْضُلَ لِلْفَقِيْرِ نِصَابٌ بَعْدَ قَضَاءِ

او مکروه دی غني ګرځول د فقیر په زکات سره هغه داسې چې بالاسي و فقیر ته نصاب کامل پس له اداء کولو

دَيْنِهٖ وَبَعْدَ اِعْطَاءِ كُلِّ فَرْدٍ مِّنْ عِيَالِهٖ دُوْنَ النِّصَابِ

څخه د پور چې پر فقیر باندې وه، او پس له دې څخه چې د غه فقیر ورکړي وای و هر فرد ته د ده د عیال

مِنَ الْمَدْفُوْعِ اِلَيْهِ وَاِلَّا فَلَا يُكْرَهُ وَ نُدِبَ اِغْنَاؤُهٗ عَنِ السُّؤَالِ

کم تر نصاب د هغه مال څخه ده ته د ده دخوا ورکړه شو، او که پوره نصاب فقیر ته نه پاته کیږي، نو بیا که

څوم تر نصاب بالا ورکړي مکروه نه دی، او مستحب ده چې د وینه زکات دی ورکړي چې فقیر د سوال

څخه په راوګرځي، او د دی تفصیل هم د مخه تیر شو،

**مسـئـله**: په تنویر او شرح کې د هغه وائي: چې نه دی روا و سړي لره سوال د نفقې د خلګو څخه

چې د ده سره د یوې ورځې نفقه موجوده وي بالفعل یا بالقوه یعني چې په صورت جوړ او پر کسب

قادر وي، او هغه سړی چې د د غه سوال ګر په حال خبر وي، په ورکولو کې د قوت ګناه کار دی"

ولې چې ده پر حرام کار چې ورته سوال وو کومک وکړي، او کې د کالو د پاره سوال کاوه او یا د

سوال کاوه د دی سبب چې دی د کسب څخه په جهاد مشغوله وو، او یا په طلب د علم مشغول وو

بیا ده ته سوال روا دی او ورنوو نکې په ګناه کار نه دی، ط، قـــال المصنفؒ:

وَكُرِهَ نَقْلُهَا بَعْدَ تَمَامِ الْحَوْلِ لِبَلَدٍ اٰخَرَ لِغَيْرِ قَرِيْبٍ اَوْ

او مکروه دی وړل د زکات وروسته تر پوره والي د کال د اقید چې مصنفؒ وو ایه د پاره د دې چې حق





د فقراوو د خپل ښار هغه وخت په مال د غني سره تعلق نیسي چې پر مال د غني کال تیر سي، قـــالَ

اَحْوَجَ وَاَوْرَعَ وَاَنْفَعَ لِلْمُسْلِمِيْنَ بِتَعْلِيْمٍ وَالْاَفْضَلُ صَرْفُهَا

او ما سوا ته د ډیر محتاج وي او ووه پرهیزګار ته او چې نفع ئې رسیږي مسلمانانو ته په تعلیم سره، او ښه خبره دا ده چې

لِلْاَقْرَبِ فَالْاَقْرَبِ مِنْ ذِیْ رَحِمٍ مَّحْرَمٍ مِّنْهُ ثُمَّ لِجِيْرَانِهٖ

ورکې و ننږدی او ننږدی قریب ته چې د ده سره قرابت نسبي لري او محرم د زکوٰة والا، تر هغه وروسته وهمسایه

ثُمَّ لِاَهْلِ مَحَلَّتِهٖ ثُمَّ لِاَهْلِ حِرْفَتِهٖ ثُمَّ لِاَهْلِ بَلْدَتِهٖ وَ

او بیا د خپلې محلې او کلي محتاج ته، او بیا د خپل کسب هم شریکه ته، او بیا د خپل ښار محتاجه ته او و

قَالَ الشَّيْخُ اَبُوْ حَفْصٍ الْكَبِيْرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا تُقْبَلُ صَدَقَةُ الرَّجُلِ

ئیلی دی شیخ ابو حفصؒ کبیر الله دی پر ده رحم وکړي، چې نه قبلیږي د یو چا صدقه تر څو چې د ده

وَقَرَابَتُهٗ مَحَاوِيْجُ حَتّٰى يُبْدَءَ بِهِمْ فَيَسُدُّ حَاجَتَهُمْ

خپلو قریبانو کې احتیاج والا وي تر څو چې ابتداء ردوي څخه ونه کې او د دوی حاجتونه پوره نه کې"

**فـائـده**: او وړل د زکوٰة مکروه دی و بل ښار ته یعني که څه هم تر مسافت د قصر د لاندې کم وي

**مسـئـله**: چې معتبر په زکات کې ځای د مال دی نه ځای د مالک حتی که سړی په یوه

ښار کې وو لکه هرات مثلاً او مال یه په بل ښار کې وو لکه قندهار مثلاً نو دی به زکات روپې

پر فقیرانو د قندهار ویشي، او په صدقة الفطر کې معتبر د ده ځای دی نه د ده د عیال دارې

او مکروه دی نقل وغیر ته د قریب او کې خپلو اقرباوو ته نقل کاوه بیا هیڅ کراهت نشته، او ما

سوا ته د ډیر محتاجه، او کې احوج ته نقل کې یعني تر اهل بلد محتاج وو هغو ته نقل د زکات روا دی

او یا په بل ځای کې ښه پرهیزګاره فقیروي و هغه ته هم نقل کول د زکات مکروه نه دی، او یا په

بل بنارګي يو عالم فقير وو چي مسلمانانو ته يې ډېر نفع رسېدې په سبوونه ددين، او افضل داده چي زکات دې سړي ترټولو نژدې قريبانو ته اوبيا ترهغه وروسته اقرب ته چي خاوند دقرابت نسبي او محرم د زکوة والاوي لکه ورونه د سړي يا خوېندې وروسته د هغو اولاد چې وربېرونه او خورېزې ګانې دي وعلى هذا فقس» او وروسته ترهغو افضل داده چي همسايه ګانو ته زکوة ورکړي، او وروسته د محل والا فقيرانو ته او وروسته هغه کسانو فقيرانو ته زکات والا چي دغني سړي سره په کسب او کارکې شراکت لري، يعنې دهغو کسب هم دغني کسب وي لکه آهنګران، موچيان، بنايان، نجاران وغيره اوبيا وروسته دې دبنار ومسکينانو ته ورکوي، شيخ ابوحفص کبيرٔ خداى دې پرده رحم وکړي وئيلې دي چي زکات دهغه سړي نه قبليږي چي دې ئې وبل چا ته ورکړي، او ده خپل قريبان محتاجه وي، يعنې مسکينان وي حتى چي دى اول شروع د زکات ورکولو د دوي څخه ونه کي او د دوي احتياجات ور دفع نه کي،

**پُوهِ سَــه**: چي مراد دابوحفص المرحوم د نه قبليدو څخه دادى چي ودغه سړي ته خداى جل شانه ثواب نه ورکوي که څه د زکات غاړې خلاصې شوي يعنې دوزخ هم خدائى نه ور کوي پر دغه فعل دده، په معراج کې وائې چي ورکول د زکات وعالم فقير ته اولى دى ترجاهل فقيرته ق

**مسئله** کـه غني په دارحرب کې وو او زکات يې د دار اسلام فقيرانو ته استاوه کراهت نه لري که څه هم په دارحرب کې مصرف د زکوة وي، ط .







# بَابُ صَدَقَةِ الفِطْرِ

دا باب دى په بيان کې د صدقې دوړځې داختر،

**پُــوه سَــه**: چي فطر اسلامى لفظ دى او خولک چي په پښتو يې "سرسايه" بولي. ط **فـــائِــدَه**: د صدقة الفطر سرايه ته صدقة الفطرة وائى هغه غلط لفظ دى، ط

امر نبوى هغه کال کې وسو چي په هغه کال روژه فرض شوله، او تر زکات د مخه، او د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم عادت داوو چي تر اختر د مخه يوه ياد وئ ورځې به ئې خطبه وياه او د صدقة الفطر امر بې خلګو ته ورکاوه، **فـائِدَه**: زکات چي پر سړي واجب سى او د مخه تراداء د زکات مال يعنې نِصاب هلاک سى يعنې دلاسه څخه ئې ووځى زکات څخه ساقط دى، او سرسايه په سله وجوب څخه کې څه هم مال هلاک سى واجب الاداء ده، قـاله الامام الطحطاوئ، قَـالَ المصنفؒ:

**تَجِبُ عَلىٰ كُلِّ حُرٍّ مُسْلِمٍ مَالِكٍ لِنِصَابٍ اَوْقِيمَتِهٖ وَاِنْ لَّمْ**

واجب ده صدقة الفطر پر هر حر يا ندې، ولې چي مرئي مالک د تمليک د شي نه دى، چي مسلمان وي ځکه صدقة الفطر عبارت مالى دى

**يَحُلَّ عَلَيْهِ الْحَوْلُ عِنْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ**

او کافر اهل د عبارت نه دى چي مالک يو نصاب وي يعنې د هر شي نصاب چه وي، د دې شرط وجه داده چي غرض د صدقة الفطر

**وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ لِلتِّجَارَةِ** څخه دادى چي احتياج د فقير دفع سى، نو چي سړي څخپله فقير وي بل فقير به څرنګه د فقره خلاص کړي، يا مالک وي د قيمت د نصاب د عروضو څخه که څه هم کال نه وي پرې تېر سوى او دا صدقة الفطر واجبيږي په وخت کې د طلوع د سپيدو د وړځې داختر، که څه هم دغه نصاب د تجارت د پاره نه وي بلکه زيور وي د بنځې،

**تفريع** نوکه پوسری ترسپيد ود اختر دورځی د مخه مړشي ود غه کس ته صدقة الفطر نشته اوکه په سپيدو کی وزيږی صدقة الفطر پړسته يعنی واجب ده **پوهه** چی نصابونه دری قسمه دی ۱ يو هغه نصاب دی چی نامی وی حقيقةً او تقديرًا په هغه نصاب پوری تعلق لری زکوٰة ۲ او بل نصاب هغه دی چی هغه پوری صدقة الفطر او وجوب داضحيه وحرمة الزکات اړه لری او په هغه پوری نفقه داقرباء و تعلق لری په هغه نصاب کی نما او تجارت وحولان الحول شرط نه دی ۳ او بل نصاب هغه دی چی په هغه سړو سړی ته سوال حراميږی بعض فقهاء وائی چی پنځوس درهمه ولری، او بعض فقهاء بيا وائی چی نفقه د يوی ورځی اوشپی لری، نو سوال ور ته حرام دی. قال المصنف:

## فَارِغٍ عَنِ الدَّيْنِ وَحَاجَتِهِ الْأَصْلِيَّةِ وَالْمُعْتَبَرُ فِيهَا الْكِفَايَةُ لَا التَّقْدِيرُ

چی فارغ وی د پور څخه او د حاجت اصليه څخه لکه د کور سامان او فاضل نه تر حوائجو دده د عيال وی، او معتبره په حوائجو اصليه کی دده او په حوائجو د عيال دده مقدار د کفايت دی اندازه نه لری. قال المصنف:

## وَهِيَ مَسْكَنُهُ وَأَثَاثُهُ وَثِيَابُهُ وَفَرَسُهُ وَسِلَاحُهُ وَعَبِيدُهُ لِلْخِدْمَةِ

او حوائج اصليه دادی نه سرای دی دا و سيدو او که مال دار وو مسکن خيمه يا کيږدی ده، او بل د کور سامان دی لکه کمبله، تلنيک بالښت، کټوه وغيره او بل کالی دا غوستودی د سړی او بل آس دی د سپرتيا، بل سلاح ده لکه توره، توپک وغيره او بل مريان دی د خدمت د پاره، **درويش وائی** چی دليل د وجوب د صدقة الفطر هغه حديث دی چی ابوداؤد په روايت کړی دی: قال عليه الصلوٰة والسلام فی خطبة: أَدُّوا عن کل حر و عَبْد صغير او کبير نصف صاع من بر او صاعًا من شعير او صاعًا من تمر، اصولی قانون چی امر مطلق د پاره د وجوب وی **مسئله** صدقة الفطر واجب موسع په ټول عمر کی يعنی هر وخت چی ورکی اداء ده، نزد جمهور حنفيه وو په نيز،





قال فی البحر وهو الصحيح لکن کانت، او بعض فقهاءؒ وائی چی خاص د اختر ورځ په وخت دادول دی وروسته کی ورکی هغه قضا ده، واختار هذا المذهب الکمال فی التحرير، قال المصنف:

## فَيُخْرِجُهَا عَنْ نَفْسِهِ وَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ الْفُقَرَاءِ وَإِنْ

او صدقه فطر دی د خپل ځان دا ورکوی، او اولاد دده که نر وی او که ښځی چی دا اولاد فقراء وي، او که چيری اولاد اغنياء وه مثلاً يو

## كَانُوا أَغْنِيَاءَ يُخْرِجُهَا مِنْ مَالِهِمْ

سړی د عو کچنيا نو ته ورثه وه بخښلی وي، نو بيا دی صدقة الفطر د دوی د مال څخه ورکړی، **مسئله** د بالغانو اولادو صدقهٔ فطر پر پلار نشته که څه هم دده په عيال کی وي، او فقراء هم وي. او د ماينی سرمايه هم پر ميړه نشته، قال المصنف:

## وَلَا تَجِبُ عَلَى الْجَدِّ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ وَاُخْتِيرَ أَنَّ الْجَدَّ

او نه ده واجبه سرمايه پر نيکه باندی پر ظاهر الروايت کی، او دا خبره مختاره کړه سوی ده چی نيکه لکه پلار دی چی د لمسي پلار نه وی يعنی مړوی

## كَالْأَبِ عِنْدَ فَقْدِهِ أَوْ فَقْرِهِ

او يا مسکين وی يعنی د لمسيانو په دغه دوه صورته کی سرمايه پر نيکه ده، او دا هم روايت د حسن دی، امام اعظمؒ واختار هذه الرواية الکمال، واختارها فی الاختيار او صاحب الدر هم ود غه روايت ته تګ کړی دئ،

**تنبيه** درويش وائی چی د دغه روايت په مختار ولو سره هغه سؤال دفع سو چی فقهاء خو وائی چی سبب د صدقة الفطر د وجوب هغه سړ دی چی مؤنت يه پر سړی وی او سړی کامل ولايت او تصرف پر لری نو نيکه چی د لمسيانو پلار په مړوی او يا فقير وی او لمسيان نيکه ساتی نو خو نيکه مؤنت د لمسيانو د نفقی پر ځان اخستی دی او نيکه هم ولايت کامله پر لمسيانو لري، نو بايد د دغو لمسيانو سرمايه پر نيکه واجب وی او سره د دی چی په ظاهر روايت کی وائی چی پر نيکه مطلقًا د لمسيانو سرمايه نه ده واجبه، نو خو سبب چی رأس

يمونه وشِلی علیه پیدا سوا ومسبب نشته چې وجوب الفطر دی ومثل هذا لایجوز» حاصل د دفع اختیار دی د روایت د الحسنؒ یعنی چې مذکوره د دوو صورتو د لمسیانو سرسایه پرنیکه واجبه فلا یلزم تخلف المسبب عن السبب فافهم، وقد خطِئ صاحب البحرؒ فی جواب هذا فارجع الی کتاب الکمال» قال المصنفؒ:

## وَعَنْ مَمَالِيكِهِ لِلْخِدْمَةِ وَمُدَبَّرِهِ وَأُمِّ وَلَدِهِ وَلَوْ كُفَّارًا

او د غه رنګه به سرسایه کوی د هغو مریانو چې د خدمت د پاره وی یعنی کرد تجارت د پاره وه بیا به صدقة الفطر پرمالک نشته بلکه په هغوکی زکات سته او د واړی صدقی نه سره یو ځای کیږی او د غه رنګه به سرسایه د مدبر مریي ورکوی، مدبر هغه مریي دی چې مالک ورته ووائي چې پس له مرګه زما ته حر (آزاد) یې، او د غه رنګه به سرسایه ورکوی دام الولد چې هغه مینځه چې دبادار نه لنګوی کړه هم د غه دی کافران وي، قال المصنفؒ:

## لَاعَنْ مُكَاتَبِهِ وَلَاعَنْ وَلَدِهِ الْكَبِيرِ وَزَوْجَتِهِ وَفِنٍ مُشْتَرَكٍ

او نه دواجب پرسړي سرسایه د مکاتب مریي، او نه ده واجبه پرپلار سرسایه دلوی بالغ عیال کړوی

## وَابِقٍ اِلَّابَعْدَعَوْدِهِ وَكَذَا الْمَغْصُوبِ وَالْمَأْسُورِ

او که بنځه که د ده په عیال کی وی یعنی نفقه پلار ورکوی او که نه وي، او د ماینی سرسایه پرسړي نه ده واجب، او د هغه مریي سرسایه چې شریکي به پرېوه شریک هسته، او د تښتیدلی مریي سرسایه پرمالک نشته مګر هغه وخت چې بیرته مولی ته راسی، او د غه رنګ سرسایه د هغه مریي نشته چې د مالک نه غصب کړی وی، او د غه رنګ د بندی مریي سرسایه پرمالک نشته، قال المصنفؒ:

## وَهِيَ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ اَوْدَقِيْقِهِ اَوْسَوِيْقِهِ اَوْصَاعٌ مِّنْ تَمْرٍ اَوْزَبِيْبٍ اَوْشَعِيْرٍ

او صدقة الفطر نیمه کاسه ده د غنمو او یا د وړو د غنمو او یا د سویق





د غنمو او یا پوره کاسه ده د خرما او یا د اوشکو د انګورو، او یا د اوربشو، **پـوه سه** چې سویق د عربو په اصطلاح د ابولی چې غنم ننی کړی او بیا یه میده کړی او د لوړی په وخت کی او به ورواچوی، یا ګولی ځندی کوی او کی ډیری او به ورواچولی بیا یه چښی، عربو به ځوانی ځروکی د اسویق د ځان سره اخستی، ولی چې هر ځای دوی ته دوړی ځول ګران کار وو او بل هر ځای به بوځای هم نه وه، ولذالک یقال فی الشئ النافع غایة النفع هوانفع من تفاریق العصاء» او د بخر د ننی کید وحکمت دا دی چې صرف اوبه او م خوړل به خوند نه کوی او بل مرضی ځندی پید اکیږی کما هوالظاهر بالتجربة» قال المصنفؒ:

## وَهُوَ ثَمَانِيَةُ اَرْطَالٍ بِالْعِرَاقِيِّ

او کاسه اته رطله په عراقی حساب **پوه سه**: چې عراقی رطل د وزن په حساب یوسل او دیرش [130] درهمه دی، نو په د غه حساب کاسه یو زر او شلولینت درهمه وزن ده، دا قول د امام اعظمؒ او د محمدؒ دی، والتفصیل فی شرح الامام الطحاویؒ **فـائـده** صاع یا نصف صاع په پیمانه او په وزن دواړه روا دی کذا ذکره الزیلعیؒ شارح الکنز» قال

## وَيَجُوْزُ دَفْعُ الْقِيْمَةِ وَهِيَ اَفْضَلُ عِنْدَ وِجْدَانِ مَايَحْتَاجُهُ

او روا ده ورکړه د قیمت یعنی د د غو خوراکی شیانو بلکه قیمت افضل دی په وخت کی د دی چې

## لِاَنَّهَا اَسْرَعُ لِقَضَاءِ حَاجَةِ الْفَقِيْرِ

د فقیر سره به غالبًا د غه خوراکی توکی موجود وی یعنی چې وخت د حاصلاتو مذکوره شیانو وی په سبب د دی چې قیمت اولی دی چې دراهم دی مثلًا زر او سید ونکی دی، وما یحتاج الیه الفقیر یعنی کالی دکور د بند ګانو بیا نور ورته شیان ولی په نغدو روپو هر شی رانیول کیږی بخلاف الحبوبات المذکورة» قال المصنفؒ

## وَاِنْ كَانَ زَمَنُ شِدَّةِ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ فَهُمَا وَمَا يُؤْكَلُ اَفْضَلُ مِنَ الدَّرَاهِمِ

او که زمانه د سختی د غنمو او اوربشو وه یعنی د حاصلاتو وخت نه وو، نو غنم او اوربشی او چې

خوړل کیږي هغو شیان لکه خرما یا سویق هغه افضل دي تر درا همو، قال المصنف:

## وَوَقْتُ الْوُجُوْبِ عِنْدَ طُلُوْعِ فَجْرِ يَوْمِ الْفِطْرِ فَمَنْ

او وخت د واجبوالي د صدقة الفطر په نیزد راختنو د سپیدو د ورځي د کښتني اختر دي نو که څوك

## مَاتَ اَوْ اِفْتَقَرَ قَبْلَهُ اَوْ اَسْلَمَ اَوْ اَغْتَنٰى اَوْ وُلِدَ بَعْدَهُ

مړ شي او یا مسکین شي د مخه تر طلوع الفجر او یا مسلمان شي او یا غني شي او یا وزیږیدی پس له سپیدو نه

## لَا تَلْزِمُهُ وَيُسْتَحَبُّ اِخْرَاجُهَا قَبْلَ الْخُرُوْجِ اِلٰى

پر ده لازمه نه ده، او مستحب دي ورکول د صدقة الفطر مخه تر وتو د خلکو و عیدگاه ته تاچي زړه د فقیرانو

## الْمُصَلّٰى وَصَحَّ لَوْ قَدَّمَ اَوْ اَخَّرَ وَالتَّاخِيْرُ مَكْرُوْهٌ

دعملي بیغمه شي او اضطراب په دفع شي، او صحیح دي دمخه تراختر ورکول د سرسایي او ځنډول یه هم روادی لکن ځنډول یه مکروه دي، په هدایه کې وائي چي تفصیل یه په جواز کې د صدقة الفطر په مابین کې دیوې مُدې او بلې مُدې شته، یعني واجب موسع دی لکه زکوٰة، او خلف بن ایوب وائي چي تعجیل ورسته تر دخول د میاشتي روادی، او د مخه تر روژي نه دی روا، او بعض فقهاء وائي چي تعجیل په نصف اخر کې د روژي روادی، او بعض وائي چي په لسو اخیرو ورځو کې تعجیل روادی، وعند الحسن بن زیاد: لا یجوز تعجیلها اصلاً کالاضحیة" د روایش وائي چي تفصیل د دې مبحث په کفایه شرح الهدایه او یا په بحر الرائق کې مطالعه کړه، قال

## وَيَدْفَعُ كُلُّ شَخْصٍ فِطْرَتَهُ لِفَقِيْرٍ وَاحِدٍ وَاخْتُلِفَ فِيْ جَوَازِ

## تَفْرِيْقِ فِطْرَةٍ وَاحِدَةٍ عَنْ اَكْثَرَ مِنْ فَقِيْرٍ

او ورکوي دي هر سړي خپله سرسایه ویوه فقیرته او اختلاف د فقهاء





دی په رواوالي کې د ویشلو دیوې سرسایي پر بالاد یوه فقیر، د روایش وائي صحیح اول مذهب دی او عادت د خلکو داسی دی چي مثلاً شل روپي سرسایه پر کیږي عیدگاه ته نو په لار کې فقیران ولاړ وي نو دی یوه یوه روپي و فقیرته ورکوي چي فقیرانه په ازار سي، قال المصنف

## وَيَجُوْزُ دَفْعُ مَا عَلٰى جَمَاعَةٍ لِوَاحِدٍ عَلَى الصَّحِيْحِ

او روا دي ورکړه د ډیرو کسانو د سرسایي وه یوه نفرته یعني فقیرته پر صحیح روایت،

## وَاللّٰهُ الْمُوَفِّقُ لِلصَّوَابِ

او خدائ توفیق ورکوونکی دی د حق لاره

# كِتَابُ الْحَجِّ

داکتاب دی په بیان کی د احکامو د حَج

**مُقَدِّمَه:** پوه ساله: چی لفظ د حَج په زَوَر د حاء اوزیر د حَاء دواړه راغلی دی، اومشهور په عاموکنا بوکی داده چی حَج په لغت کی مطلق قصد ته وائي، لکن طحطاویؒ وائی چی غلط خبره ده بلکه حج قصد دی ومحترم ځای ته اویا وبنه کاره دی،

**اِخْتِلاف:** په دی کی شک نشته چی حَج په شریعت کی د نورو انبیاء علیهم السلام هم وو، لکن په دی کی اختلاف دی چی په هغو باندی هم حَج فرض وو صحیح داده چی فرضیت د حَج په امت مرحوم پوری خاص دی، **اختلاف اخر،** حج په سنه شپږ کی د هجرت فرض سوی دی، وهو المشهور والصحیح ایضًا کذا قال العلامة نوحؒ: وقیل، په سنه ... کی د هجرت فرض سوی، وقیل په سنه نه ۹ کی د هجرت مختار د قاضی عیاضؒ دغه خبره ده، وقیل حَج د مخه تر هجرت فرض سوی دی وهو بعید، اوتر دی ابعده خبره داده چی په سنه لس کی هجرت فرض سوی دی،

**اِختلاف اخر،** آنحضرت صلی الله علیه وسلم څو حج کړی دی! دارقطنیؒ د جابر بن عبد اللهؓ څخه روایت کوی چی علیه السلام دری حجه کړی دی، دوه ۲ د مخه تر هجرت، اویو حَج په سنه لس کی د هجرت کړی چی د حجة الوداع په نامه مشهوره دی او علیه السلام په دغه کی قارن وو او هغه کال حج اکبر هم وو یعنی د عرفات ورځ د جمعی وه، اوپه سنه ۹ نه کی ابوبکرؓ الصدیق حج ته استولی وو او پیغام یه داور کړی وو چی پسله سن کاله دی مشرک حج ته نه راځي کذا فی البخاری، او ملاعلی القاریؒ: وائی چی علیه الصلوٰة والسلام تر هجرت د مخه ډیر حجونه کړی دی چی عدد یه نه دی معلوم، او علامه ابن الاثیرؒ پخپل تاریخ کی وائی چی علیه الصلوٰة والسلام قبل الهجرة او وروسته تر نبوت هر کال چی مانع به نه وو حج یه کاوه، وَاللّٰهُ اَعلم و علمه اتقن واحکم،





# د حج د مخه څه کول پکار دی؟

**پوه ساله ۸:** چی یو سړی چی د حج اراده ولری نو کی مور اوپلار دواړه یا یو تر وندی وه او د ده وخدمت یا نفقی ته اړوه نود هغو څخه دی اجازه د حَج واخلی، او کی بی اجازی د دوی ولاړی نو گناه کاره دی، او بعض علماء یه حج مکروه بولي البتهٔ که مور او پلار د ده وخدمت یا نفقی ته محتاجه نه وه خو بیا هم اجازه اخستل خو ډیر بنه کار دی مگر که بی اجازی د دوی ولاړسی گناه کار نه دی، د اهلته که روپی د حَج د دوی خپلی گټلی روپی وي. او کی د پلار د ړمانی څخه روپی اخستی وی بیا خو یه بی اجازی حَج صحیح هم نه دی،

**پوه ساله** چی نیکه او انا حکم د مور اوپلار لری کی مور اوپلار مړه وه" په کتاب النوازل کی وائی که زوی بی ږیری وو او بنائسته وو پلار د ده حج کولو څخه منع کړی، د زمانی بعض متکبر مالداران داسی هم کوی چی بی ږیری بنائسته زوی په سفر د حَج د بیگانه خلگو سره استوی چی د هغه بل سړی حج هم ورمکروه یا فاسد کړي، په دی سبب چی په طول کی د سفر د حج چی په یو اطاق کی دوی سره اوسیږی په بچه بازه بلکه په بدکاری دی سره اختہ سی، شیطان په داسی مواقعو کی ډیری هلی ځلی کوی، بلکه عجیبه بله ده چی د فتا واوو په کتابوکی داسی مسئله راغلی ده چی د سړی زوی ډیر بنائسته وی که څه هم بالغ وی ترکوره د باندی دگلی او کلی د کانو ته دی نه پریږدی لکه لوی چی کوڅوته نه پریږدی لخوف الفتنة، بلکه فتنه په زوی کی ډیره ده تر لور، ولی لور ته خو یواځی بدکاره ځوانان گوری، او زوی چی بنائسته وی هم بدکاره ځوانان سترگی ور ته کشوی او هم بدکاره ښځی سترگی د شهوت ور اړه وي، نو زوی چی بنائسته وی د ږیری تر راتلو باید په کور کی وي، خصوصًا د مسکینا نو زامن چی پلار یه د جیب خرڅ ور کولو توان نه لری نو د هغه زوی په شل روپۍ مثلًا و بد کاری ته تیا رېږي،

**پُوه ساله:** چی د فرضی یا واجب مثلًا کار کولو یا د حرام او مکروه کار کولو حاجت د استخاره خو هیڅ نشته مگر په سفر کی د حَج د اقدر استخاره دی وکی چی زه حج ته په موټرو کی ولاړ سم یا په آب گوټ کی یا په طیاره کی ولاړسم، او د ا استخاره دی هم وکړي چی د فلانی سړي سره ملگری

## سم که د فلانی سره، نوي شرط د حج د سفر مخ د ادئ

چي سړی به د ننه په اخلاص د ټولو ګنهو نه توبه کاږی او د ټولو فرائضو، واجباتو، سنتو
د کولو به د خدای جل وعلی سره وعده کوی، او مظالم کی کړی وه په خلکو باندی یا به
بخښنه غواړی یا به رد د مظالمو کوی کی امکان وو، او هغه عبادات لمنځونه روژې
وغیره چي ده خو وخت نه وي کړی د هغو به قضاء را اوړل شروع کوی، او ټینګ قصد دی
وکړي چي زه به اینده داسی نه کوم، او کی د چا سره دخولی یا د لاسو خصومت کړي وی د هغو نه
دی هم عفوه وغواړی، او که د چا پور پر باندی وی د هغو ټولو دی وصیت وکړی، او په طول
د سفر د حج دې دا دوه کلمې ډیری وائي: لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ، لَا اِلٰهَ
اِلَّا اَنْتَ سُبْحَانَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ،،

او په ټوله سفر کی دی د انډیوالانو سره ښه اخلاق په کار واچوی، قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: فَلَا رَفَثَ
وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ،، الآیة ۰ او چي هرکله حرمینو شریفینو ته ورسیږی شپې
او ورځې چي ډیری محدودی دي و خدای جل جلاله په طاعت او عبادت کی صرف کړی
داسی دی نه کوی چي ټوله ورځ په بازار کی د تحفو د رانیولو د پاره تیروی، او داسی دی هم نه کوی
چي د بعض وطندارانو سره شلًا د ابوجهل په سرای کی یا په حرم شریف کی په باندار ورځ تیروی
درویش وائي: ما ډیر وار ونه ولیدل چي د عرفات شریف چي ځای د دعا ګانو د قبلیدو دی
حاجیان صاحبان په مخرو په خندا سره دیوی خیمی نه بلی ته په بله خیمه به ننوتل چي
مازدیګر به سو یو کړی به ئې دعا وکړه بیا به په موټرانو کی سپاره سوه د مزدلفی پر خوا به
روان سو،

حاجی باید فکر وکړی چي ما دا دونه روپې په طیاره کی مصرف کړي او دونه ستړتیاوی پرځان
برداشت کړی او د کور اولاد نه می ځان مسافر کړی دی د څه د پاره؟ ډیر خلک د شرمه او
بیغورو نه چي فلانی روپې لری او حج نه کوی حج ته ولاړ سي، هغه کسان نو ځکه داغه شپې
او ورځې په حرمینو کښی عبث تیره وی چي راسی خلک وائي چي فلانی حاجی صاحب د حجه راغلی





دی، ومن التوفیق لما یرضی به الرب جل سلطانه، قال علیه الصلوٰة والسلام: انما الاعمال
بالنیات وانما لامرءٍ ما نوی،، الی اخر الحدیث رواه البخاری فی اول کتابه، قال المصنف

## هُوَ زِيَارَةُ بُقَاعٍ مَخْصُوْصَةٍ بِفِعْلٍ مَخْصُوْصٍ فِيْ اَشْهُرِهٖ

حج زیارت کول دی د خاصو ځایو لکه عرفات کعبه وغیرهما من المقامات المعروفة فی مکة المکرمة وحوالیها، هغه داچي

## وَهِيَ شَوَّالٌ وَذُوْالْقَعْدَةِ وَعَشْرُ ذِي الْحِجَّةِ

دی به محرم سوی په نیت د حج اولًا او طواف کوونکی به طواف قدوم او بیا به عرفات دریدل وغیرها من الافعال التی تنتهی بها، په میاشتو کی د حج
چي هغه د کښتي اختر میاشت او د میانی میاشت ده، او لس ورځې د لوی اختر د میاشتی دی. نو که څوک
یو فعل د افعالو د حج تر دغو میاشتو خارج وکړي هغه به درد نه خوری، یعنی نه دی رواحتی چي احرام
تړل د مخه تر دغو میاشتو د مخه وکړي مکروه تحریمي دی که څه هم پر ځان یه اعتماد وی چي زما نه محظور
الاحرام نه صادریږی، قَالَ المصنفُ:

## فُرِضَ مَرَّةً عَلَى الْفَوْرِ فِي الْاَصَحِّ

فرض کړه سوی دی حج یو وار یعنی په ټوله عمر کی لکن
کول به پوری لازم دی په هغه شروط ثمانیه چي عنقریب به راسی، امام طحطاوی وائي چي وقت
د حج په اصطلاح د اهل اصول مشکل بولي، د دی سببه چي د بعض عباداتو وقت معیار وي.
د معیار معنا دا ده چي څومره وخت هغو به عبادت وي لکه د روژی وخت په ژمی او د و بی
کی او بل د جنسه د هغه عبادت نور سره ځائیږی لکه د فرضی روژی سره نفلی یا قضائي نه
ځائیږی، نو د دی جهته چي چونکه په اشهر وکی د حج په یوه کال کی بل حج نه ځائیږی، نو باید
وخت د حج معیار وی، او د بعض عباداتو وخت ظرف وی یعنی سره د هغه عبادته بل د جنسه
دده ځائیږی، او عبادت ټوله وخت نه نیی، لکه وخت د لمانځه چي نفل او قضائی لمونځ په
وخت کی د فرضی لمانځه ځائیږی، او لمونځ ټوله وخت هم نه نیی، دا اخری خبره د دی سببه یعنی
چي د حج افعال ټوله میاشتی د حج نه نیسی نو باید وخت د حج ظرف سی، نو څوک چي جهت د معیاریت

ترجیح ورکوی نو هغه با لفور واجب بولي، لکن نه په دی معنیٰ کی سري تر اول کال په وځنډوی نو حج قضائی بلل کیږی لکه روژه چی تر خپل وخت تیروسی نو قضائی گنړل کیږی، بلکه په دی معنا چی تر اول کال په وځنډیدی گناه کاره فاسق، مردود الشهادة دی، لکن بیا هم کی په وروسته کلو کښی اداء کړي، دغه مذکوره جریمی بیرته پورته کیږی، نوځوک چی ترجیح و ضرفیت ته ورکوی هغه حج واجب علی التراخی بولي، یعنی په تراخی گناه کار نه دی لکن نه په دی معنا چی هیڅ گناه نسته، البته که مذکوره جریمی نسته، او په دی کی شک نشته چی عبادت ته تیادر سپه کړدی، ط، دروېش» قـــال المُصنفؒ:

## وَشُرُوطُ فَرْضِيَّتِهِ ثَمَانِيَـةٌ عَلَى الْأَصَحِّ اَلْإِسْـلَامُ

وشرطونه دفرضیت دحج اته دی پر صحیح مذهب باندی، اول یه اسلام دی، نو پر کافر حج نسته حتی که کافر په وخت کی دکفر غنی ؤ بیا وروسته مسکین سو او مسلمان سو نو دکفر د غنا په سبب پر ده حج نه دی فرض، او که مسلمان طاقت دحج په درلودی لکن ده ونه کړی او بیا مسکین سو حج به پر ذمه کی پاته دی، قـــال المُصنفؒ:

## وَالْعَقْـلُ وَالْبُلُوْغُ وَالْحُرِّيَّـةُ وَالْوَقْـتُ

دوهم شرط عقل دی نو پر لیونی نسته، او دریم شرط بلوغ دی نو پر کشنی که څه قدرت مالی دحج لری حج باندی فرض نه دی، او څلورم شرط ازادوالی دی، نو پر مریی باندی حج نسته، او پنځم شرط وخت دی چی دحج میاشتی دی نو د مخه دحج تر میاشتو حج فرض نه دی حتی که یو سړی تر شهرو دحج د مخه غنی وو چی اشهر دحج راتلی نو دی مسکین سو حج پر فرض نه دیٗ» قـــال المُصنفؒ:

## وَالْقُدْرَةُ عَلَى الزَّادِ وَلَوْ بِمَكَّةَ بِنَفَقَةٍ وَسَطٍ

او شپږم شرط یه قدرت دی پر توښه یعنی نفقه، که څه هم په مکه کی وي یعنی توښه دلاري او د مکی مکرمی هم شرط دی، لکن میانه نفقه، **پوښتنه** چی بحر رائق او طحطاویؒ کی وایی چی مراد د زاد څخه وسطه هغه نفقه مراد ده چی د سړی صحت د بدن ورسره عادت وي، او دا هم





نفقه په خلکو کی تفاوت لری لبعض خلک دسرکی او وچی ډوډی سره عادت وي یعنی که غوښی نه خوری صحت د بدن ته یه تاوان نه رسیږی، او لبعض خلک د غوښو یا د ورجو سره عادت لری **نتیجه** که یو سړی دغوښو سره په عادت وود خوړلو او حج کولو په صورت کی صرف پر وچه ډوډی یاد شلومبو سره قدرت په درلودی، پر غوښو خوړلو به قدرت نه درلودی نو دی قادر علی الزاد نه بلل کیږی او حج پر فرض نه دی **پوښتنه** د وسط معنا نو څه ده **جواب** د وسط معنا داده چی په معتاده نفقه کی میانه وي، فتدبر

## وَالْقُدْرَةُ عَلَى رَاحِلَةٍ مُخْتَصَّةٍ بِـهِ اَوْعَلَى شِقِّ مَحْمِلٍ

او اووم شرط یه قدرت دی پر راحله یعنی اوښ یا اوبنه، او یا قدرت دی پر نیمی دکجاوی د اوښ لکن

## بِالْمِلْكِ اَوِالْإِجَارَةِ لَا الْإِبَاحَةِ وَالْإِعَارَةِ

په ملک وي او یا په کرایه وي، نه په اباحت یعنی چی یو سړی وبل ته ووائی چی زما پر راحله تا ته سپرتیا مباح ده یا په عاریت غوښتلو سره یعنی چی یو سړي وبل ته ووائی چی دا ستا اوبنه ما ته په عاریت راکړه چی حج ته پر ولاړ سم هغه ورته ووائی بنه دی، غرض په دی دوو صورتو کی سړی قادر پر راحله نه بلل کیږی او حج پر فرض نه دی، او د موټر او طیاری هم دا غه حال دی شبرا بشبر، فتفکر، درویش»

**دیاد ورخبره:** بحر رائق په بحث کی د راحلی وائی چی که پر اوښ نه وو قادر پر غاتره یا خره قادر وو حج پر واجب نه دی آه» **مسئله:** که یو سړی ته زوی دحج روپی ورهبه کولی پر سړی قبول نه دی لازم، نو په دی سره حج نه پر فرضیږی» ط»

**مسئله** که یو سړی د اهل مکه ومن حولها څخه وو بلکه وطن آفاقی لری وو لکن مع ذالک قادر پر مشی پیاده وو حج نه دی پر فرض» در» قـــال المُصنفؒ:

## لِغَيْرِ اَهْلِ مَكَّةَ وَمَنْ حَوْلَهُمْ اِذَا اَمْكَنَهُمُ الْمَشْيُ بِالْقَدَمِ

او قدرت پر راحله شرط دی د غیر اهل مکه او هغه څوک چی پرشا و خواد مکی مکرمی وی که دوی ته ممکن

وو تگ پرپښو، نو پر دوی حج فرض دی پر پښو ولی چی دا لکه تګ جمعې ولمانځه ته دی، لاقال

## وَالْقُوَّةِ بِلَا مَشَقَّةٍ وَإِلَّا فَلَا بُدَّ مِنَ الرَّاحِلَةِ مُطْلَقًا

او بچیل قوت سره بیله مشقته څخه او کی تګ د پښو بیله تکلیفه نه سوای کولای نو چاره نسته په فرضیت کی د حج در احلی څخه مطلقًا که مکی وی او که بل څوك وی» در ولیش وائی، چی نن صبا چونکه داوس سفر د حج بیخی نادر دی بلکه په ځای کی داوس نن ورځ موټران لوی او کښتی ولاړ دی نوکه مشقت وو نو ده کرایه د موټرڅخه چاره نسته په فرضیت کی د حج» قال المصنف

## وَتِلْكَ الْقُدْرَةُ فَاضِلَةٌ عَنْ نَفَقَتِهِ وَنَفَقَةِ عِيَالِهِ إِلَى

ود غه قدرت مالی دده به زائد وی تر نفقی دده او تر نفقی د عیال دده تر وخت دده د بیرته راتلو

## حِيْنَ عَوْدِهِ وَعَمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ كَالْمَنْزِلِ وَأَثَاثِهِ وَالَاتِ

د سفر څخه د حج او دغه رنګه به زائد وی د هغه شیانو څخه چی ده لره د هغو چاره نه وی لکه سرای خواه ملکًا وی خواه په کرایه وی، او اسباب د منزل

## الْمُحْتَرِفِيْنَ وَقَضَاءِ الدَّيْنِ

او کور، لکه کمبله نالی و تلتك وغیرها، او زائد به وی تر الاتو د کسب کارانو لکه تیشه، اره وغیره د نجار، د لپاره او یا نور کسب کاران، او زائد تر اداء کولو د پور چی پره باندی وی، **پوه سه**: چی عیال د سری هغه څوك دی چی نفقه یی پره لازم وی، **مسئله** که د سری په سرای کی ترحاجت دده بالا محکه یا خونی وی چی ده هغه خرڅی کړی وای، نو حج به په کولای سوای ایا پر ده خرڅول د دغه یا لمتوځای واجب دی او حج پر فرض دی او که څرنګه! **جواب**: خرڅول خو یی واجب نه دی لکن افضل دا ده چی خرڅ یی کړی او حج په وکړی» ط» قال المصنف

## وَيُشْتَرَطُ الْعِلْمُ بِفَرْضِيَّةِ الْحَجِّ لِمَنْ أَسْلَمَ بِدَارِ الْحَرْبِ

او بل شرط د فرضیت د حج علم دی د سری پر فرضوالی سره د حج هغه چا لره چی په دار الحرب کی اسلام راوړی دی





## أَوِ الْكَوْنُ بِدَارِ الْإِسْلَامِ

وی او یا دا چی په دار اسلام کی بود باش کوی نو که په دغه وخت کی په فرضیت د حج خبر وی او که نه وی حج پر فرض دی، ولی ناخبرتیا په دار اسلام کی عذر نه دی بلکه د سری خپل تقصیر او بیا کی ده چی په دار اسلام کی او سیږی او ده د اسلام په فرائضو سره دی خلاص او په ناخبر دی بخلاف دار الحرب کما لا یخفی، عز در، قال المصنف:

## وَشُرُوْطُ وُجُوْبِ الْأَدَاءِ خَمْسَةٌ عَلَى الْأَصَحِّ صِحَّةُ الْبَدَنِ

او شرطونه د وجوب د اداء یعنی پر سری لازمولی کول د حج پنځه دی پر صحیح روایت اول جوړوالی د بدن دی نو پر غنی سړی چی ناجوړ وی که څه هم حج فرض دی لکن اداء یی نه ده فرض لعذر المرض» قال

## وَزَوَالُ الْمَانِعِ الْحِسِّيِّ عَنِ الذَّهَابِ لِلْحَجِّ وَأَمْنُ الطَّرِيْقِ

وبل شرط دا دی چی مانع چی په سترګو معلوم وی د تګه څخه د حج زائل یعنی نه به وی. لکه چی حکومت پاسپورت نه ورکوی چی بیله پاسپورټه حاجت حج سفر ممکن نه دی الی غیر ذالك وبل شرط دا دی چی لاره حج به په خطره کی نه وی. **پوه سه**: چی معتبر په امن کی دا ده چی غالبًا لاره امن وی، ولی حقیقت امن په علم کی د خدای جل سلطانه دی، لکه په موټر کی حج کول او یا په طیاره کی حج کول او یا په آب ګوټ کی حج کول، چی که څه هم احتمال د دی سته چی موټر دی په لاره کی د سفر د حج چپه سی، او یا دی طیاره سقوط وکړی یا دی آب ګوټ په دریاب کی غرق سی، لکن دا احتمالات فرضیت د حج د اداء سری د ذمی څخه نه ساقطیږی، ولی چی اغلب په دغو سړلیو کی سلامتیا ده کما یدل علیه التجربة» قال المصنف:

## وَعَدَمُ قِيَامِ عِدَّةٍ وَخُرُوْجُ مَحْرَمٍ وَلَوْ مِنْ رَضَاعٍ

او بل شرط د وجوب الاداء دا دی چی د ښځی سره چی حج ته ځی محرم به په سفر ور سره وزی» **پوه سه**: چی محرم هغه څوك چی ابدی د دغی ښځی نکاح ور ته حرامه وی، نو اخښی

## اَوْمُصَاهَرَةٍ مُسْلِمٍ مَامُوْنٍ عَاقِلٍ بَالِغٍ

نواخښي يعني دَ ښځې د خور ميړه محرم نه دَی الى غيرذالك، کې شرم محرم د رضاع د سببه وي لکه د ښځې سره رضعي زوی يا ورور ملګري وي او يا د خيښي دلاري په محرم وي لکه دَ ښځې سره چې زوم په سَفرکې دحج ملګري وي. لکن شرط دادی چې دغه محرم به مسلمان وي او دامن سړي وي يعني نا کاربه نه وي، اوعاقل به وي ليونی به نه وي او بالغ به وي کشنی به نه وي، سبب دَادی چې مقصود ملګرتيا څخه دحرم ساتنه ده دحاجيه ښځې دخلګو د بدکاری څخه اودا مقصد په کافر خائن ليونی يا نابالغ کی نه پوره کيږي،

**پوښتنه**: چې اصلي خائن مجوسي دَی چې دهغه عقيده روا والی دنکاح دخور او مور سره ده لکن چونکه مجوسي په قيد مسلم ووتی، نودلته د مامُونٍ څخه اخراج دخائن مومن دی کما لا يخفى» در، قَالَ المصنفُ:

## اَوْزَوْجٍ لِامْرَأتِهٖ

او يا به ميړه دَ ښځې د دی سَره ملګري وي. **مسئله** ښځه که ځوانه وي او که بڅې سپين سرې وي خو د ذکر سوو ملګرو څخه چاره نه لري. او امام شافعيؒ وائي چې ښځه که څه هم ځوانه وي دَنورو سپين سرانو ښځو حاجيانو سره بې محرم او ميړه سفر د حج کولای سی، لحصول مقصود من الحاجيه من الزناء، لکن نصوص د منع د سفر د حج بيله محرمه او ميړه عام دَی، نود ښځو سپين سرو سفر د حج ښځې ته مطلقًا حرام دی

**مسئله** که ښځه کونډه وه او غنی وه، د مالي حيثيته پر حج قادره وه، او محرم يې نه درلودی، او يا نورسره تللې پردی فرض نه دَه چې دحج دپاره به ميړه کوي، او کې وکړي ښه کار دی لکن دا شرط غلط دی چې دابه ميړه ته وائي چې دحج راغلو ما به طلاقوې، او نه سره به په سفر کې دحج جماع نه کوې، او کې شرط هم کړي ميړه ته روا ده چې په سفرکی دحج جماع ورسره کوي، او چې دحج څخه راغله خواه مخواه به ئې طلاقوي، بلکه دده خوښه دَه کې طلاقوي او که نه» در، قَالَ

## وَالْعِبْرَةُ بِغَلَبَةِ الظَّنِّ فِى السَّلَامَةِ بَرًّا وَّبَحْرًا

او اعتبار غالب ګمان لره دی په سلامتيا کې دَه سفر ده حج که په وچه کې وي او که په دریاب کې وي





درويش وائی: چونکه په زمانه دقدماء دا امامانو او مصنفانو طياره نه وه، نوځکه په عبارتونو کې د دوی جَوًا لفظ نه دی راغلی، وقدمرمنا التفصيل فى ذالك»

**مسئله**: که ښځې بې محرمه حج وکړي دحج فارضي خلاصي سوي لکن مکروه کار دی،

**مسئله**: که ميړه دحج اسلام يعني فرضي څخه ماينه نه سي منع کولای. البته د نفلي حج څخه يې منعه کولای سی لکه فرضي روژه او نفلي روژه، **مسئله** که د ښځې محرم دې سره حج ته ولاړې ټوله خرڅ او نفقه اوکرايه وغيره پر ښځه باندې دَی، البتَّه که محرمه غني وو او حج پر فرض وو او د خپل حج دپاره تللی، او ښځه يې چې دی محرم وو ورسره ملګرې سوه نو پر ښځې نفقه نه ده لازمه» در» قَالَ المصنفُ:

## وَيَصِحُّ اَدَاءُ فَرْضِ الْحَجِّ بِاَرْبَعَةِ اَشْيَاءَ لِلْحُرِّ الْاِسْلَامُ

او صحيح کيږي اداء د فرضي حج په څلورو شيانو سره حُرسړي لره، قيّد به لان العبد ليس عليه الحج المفروض، او اسلام چې مسلمان به وي، او دوهم

## وَالْاِحْرَامُ وَهُمَا شَرْطَانِ

احرام او دادوه شرطه دی يعني د صحت دپاره او رکن دحج نه دي، **پوښتنه** چې شرط خارج موقوف عليه او رکن داخل ته وائي، قَالَ

## ثُمَّ الْاِتْيَانُ بِرُكْنَيْهِ وَهُمَا الْوُقُوْفُ بِعَرَفَةَ لَحْظَةً

او بيا راتګ کول دی په دوو رکنو سره دَ حج، او هغه نو اول رکن دَ حج دريده دی پر عرفات لحظةً

## مِنْ زَوَالِ يَوْمِ التَّاسِعِ اِلَى فَجْرِ يَوْمِ النَّحْرِ بِشَرْطِ عَدَمِ

يعني که څه هم يو کم وخت وي، د وخت څخه د زوال دَ نهمې ورځې بيا ترسپيدو پورې د اختر دَ ورځې

## الْجِمَاعِ قَبْلَهٗ مُحْرِمًا

په شرط د دی چې دَ مخه تر عرفات بې جماع نه وي کړې په داسې حال کې چې دی محرم وو، **مسئله** کې جماع کړې وي نو حج يې فاسد سو نو د غه حج افعال به ټول پوره کوي، او بل کال بې قضا راوړي» در

قال المصنفؒ **وَالرُّكْنُ الثَّانِي أَكْثَرُ طَوَافِ الْإِفَاضَةِ فِي وَقْتِهِ**

او دوهم رکن د حج اکثر د شو طو د طواف زیارت دی چې څلور شوطه دي، یعني هغه دری شوطه واجب دی کړد سرې څخه پاتې سي

**وَهُوَ مَا بَعْدَ طُلُوعِ فَجْرِ النَّحْرِ** چاره یې په دم سره کیږي، او دا طواف به په خپل وخت کی کوي چې وروسته تر طلوع د سپیدو دی د ورځې د اختر، معنا دا ده چې تر دغه وخت د مخه طواف زیارت نه دی روا کی څه هم تر اخیره عمره څنه ول روا دي، لکن واجبه دا ده چې په ورځو کی دغربه ئی کوي، چې دری ورځې دي، والا یجب علیه الدم

**پوښتنه:** چې دی طواف مفروض ته طواف افاضه وائي یعني چې حاجي د عرفات څخه راکښته سو بیا یې کوي، او طواف زیارت یې هم بولي چې دی زیارة ته بیت الله شریف راځي» ط، د

قال المصنفؒ **وَوَاجِبَاتُ الْحَجِّ إِنْشَاءُ الْحَجِّ مِنَ الْمِيقَاتِ**

او واجب شیان د حج دا دي ما شروع کول دی د حج د میقات څخه، **پوښتنه:** چې پر اطرافو د مکي مکرمې څو ځایونه دي، بعض لیري او بعض نژدې د یې چې وهغوته میقاتونه وائي د میقات معنا دا ده چې آفاقي سړی به تر هغه ځای بې احرامه د حج یا د عمرې نه تیریږي،

۱۔ میقات دی د مدینې والاو، چې هغه ته ذوالحلیفه وائي، چې د مدینې منورې څخه ۲ شپږ یا ۷ میله لیری دی، او تر مکې مکرمې پورې لس منزله دي یا نه ۹ » او دا هغه لیرې میقات د مکې مکرمې څخه او د التربه چخوانی زمانه کی خاهان وه چې عوام ورته ابیار علی وائي، ۲۔ ذات عرق بولي، چې هغه میقات د اهل مشرق د مکې مکرمې څخه دی چې په مابین کی د دغه میقات او د مکې مکرمې ۲ منزله دی، ۳۔ جحفه ده یا د مهیعه» امام نوويؒ وائي چې د دغه میقات او مکرمې مکې تر مابین ۳ منزله دي، او دا دیوی قریې نوم دی په مابین کی د مغرب او شمال د مکې څخه پر لاره د تبوک » او دا ځای میقات دی د اهل شام او مصر او د اهل مغرب، ۴۔ قرن دی او قرن دیوه غره نوم دی چې پای یې په عرفات ته رسیدلی دی، چې د مکې او قرن تر مابین دوه منزله دي، او دا میقات دی د نجد یا نو»





۵۔ یلملم دی چې جنوب ته د مکې واقع دی دوه منزله د مکې مکرمې څخه لیرې دی او دا میقات د یمن د خلکو دی» **پوښتنه** چې د دغه ځایونه چې میقات دیو خاص خلکو د پاره تاکل سوي د دی معنا دا نه ده چې بیله د غو خلکو بل څوک د التر احرام نسي تر لای، لما ورد فی الحدیث النبویؐ هن لهم ولمن اتی علیهن» بحر، د» قال المصنفؒ

**وَمَدُّ الْوُقُوفِ بِعَرَفَاتٍ إِلَى الْغُرُوبِ وَالْوُقُوفُ**

او بل واجب څنډه ول د وقوف پر عرفات تر لوید ود لمر پورې او غایه په مغیا کی داخله ده، او بل

**بِالْمُزْدَلِفَةِ فِيمَا بَعْدَ فَجْرِ يَوْمِ النَّحْرِ وَقَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ**

واجب دریدل دی پر مزدلفه چې دیو ځای نوم دی چې د عرفات پای ته دی، او دا دریدل پسله سپیدو څخه د ورځې د اختر وی او د مخه تر راختو د لمر، قال المصنفؒ:

**وَرَمْيُ الْجِمَارِ وَذَبْحُ الْقَارِنِ وَالْمُتَمَتِّعِ** او بل واجب ویشتل دی د ځلو چې په عرف کی شیطانان ورته وائي، او بل واجب ذبح کول دیو حیوان دی قارن لره چې د میقات څخې د حج او عمرې یو ځای نیت کړی او متمتع لره چې د میقات څخه یې د عمرې نیت کړی او د عمرې تر افعالو وروسته احرام خلاص کی، بیا اثم یا اووم په ورځ د حرمه څخه د مکې احرام د حج وتړي، چې عوام ورته د شکرانې پوسه وغیره وائي» قال المصنفؒ:

**وَالْحَلْقُ وَتَخْصِيصُهُ بِالْحَرَمِ وَأَيَّامِ النَّحْرِ وَتَقْدِيمُ الرَّمْيِ**

او بل واجب سر خریل دی یعني یا تقصیر دی پنسا نو د سر چې عوام ورته ځان حلالیدل وائي، او بل واجب خاص کول دی د حلق په حرم پورې او په ورځو کی د اختر او د مخه

**عَلَى الْحَلْقِ وَنَحْرُ الْقَارِنِ وَالْمُتَمَتِّعِ بَيْنَهُمَا** کول دی د ویشتلو د جمرة عقبی په حلق باندې او ذبح د قارن او متمتع به په مابین کی وی یعني تر رمی وروسته او تر حلق د مخه چې دا هم واجب دی

## وَاِيْقَاعُ طَوَافِ الزِّيَارَةِ فِيْ اَيَّامِ النَّحْرِ وَالسَّعْيُ[11] بَيْنَ

اوكول واجب دى دَطواف زيارت په ورځوكى دَ نحر چې درې دى، او بل واجب سعى دَه په مابين كى دَ صفا

## الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فِيْ اَشْهُرِ الْحَجِّ وَحُصُوْلُهُ[12] بَعْدَ طَوَافٍ

او دَ مروا، چې دوه غرونه دى، په مياشتوكى دَ حـج، او بل واجب كول دَ سعى دي پسله طواف **مُعْتَدٍ بِهِ** څخه چې دَ اعتبار وړ وى، يعنى تر نفلى طواف وروسته سعى به دَ صفا او مروه نشته، دَ ره ف، قَالَ المصنفُ:

## وَالْمَشْيُ[13] لِمَنْ لَاعُذْرَ لَهُ وَبِدَايَةُ[14] السَّعْيِ مِنَ الصَّفَا وَ

## طَوَافُ[15] الْوَدَاعِ

او بل واجب پر پښو تګ كول دى دَ سعى هغه چا له چې عذر نه لرى يعنى كه عذر وو بيا دى دَ كراڼې په ريړۍ يا نوكى سپور رسى، او يا دى بل سړى په شاكى په شا دي سعى وكړي، او بل واجب شروع دَ سعى دَه دَ صفا څخه، نوكى دَ مروې څخه شروع وكړه هغه اول شوط له اعتبار نشته. او بل واجب طواف وداع دى چې طواف رخصت يه هم بولي او طواف الصدر يه هم بولي، چې په اخيركى چې كورته راوانيږى دغه طواف به كوى،

**پوه سه**: دَ وداع معنا او د رخصت معنا يوه دَه. او صدر په معنا دَ رجوع دى، دا معنا نه ده لكه بعض امامان چې كوى او عوام هم چې پرځيګردى كعبى شريفى څخه دَ حرم څخه وزى، قَالَ

## وَبِدَايَةُ[16] كُلِّ طَوَافٍ بِالْبَيْتِ مِنَ الْحَجَرِ الْاَسْوَدِ وَالتَّيَامُنُ[17] فِيْهِ

او بل واجب شروع كول دَ هر طواف چې پر كعبه شريفه يه كوى دَ حجر اسود څخه، او بل واجب دَادى چې ښى راسته طرف دى راوانيږى، قَالَ المصنفُ:

## وَالْمَشْيُ[18] فِيْهِ لِمَنْ لَاعُذْرَ لَهُ وَالطَّهَارَةُ[19] مِنَ الْحَدَثَيْنِ

او بل واجب دادى چې طواف دى پر خپلو پښو كوى هغه څوك چې عذر نه لرى، او بل واجب كى دَ بدن دَه دَ ګشتى او لوى او دَ ساحځچې جنابت





## وَسَتْرُ[20] الْعَوْرَةِ وَاَقَلُّ الْاَشْوَاطِ بَعْدَ فِعْلِ الْاَكْثَرِ مِنْ طَوَافِ

## الزِّيَارَةِ

او بل واجب پټ والى دَ عورت دى په طواف كى، او بل واجب كول دى دَ اقل شوطو پسله دى چې اكثر طونه يه دَ مخه كړي وي. قَالَ المصنفُ:

## وَتَرْكُ الْمَحْظُوْرَاتِ كَلُبْسِ الْمَخِيْطِ وَسَتْرِ رَاْسِهِ وَوَجْهِهِ

او بل واجب پرېښول دى دَ ممنوعاتو دَ احرام لكه پټول دَ سر خپل او مخ خپل او ګنډلي جامي اغوستل

## وَسَتْرُ الْمَرْاَةِ وَجْهَهَا وَالرَّفَثُ وَالْفُسُوْقُ وَالْجِدَالُ

او پټول دَ ښځي محرمي خپل يعنى سر دي پټوى، او نه به كوى رفث چې جماعت وائى او بعض فقهاء وائى چې رفث قول فحش ته وائى او فسوق به نه كوى يعنى مطلق معاصى او ګناهونه، **پوه سه** چې ګناه كول خو په احرام او غير احرام كى ممنوع دَه لكن په احرام كى اشد منع دَه لكه دوړينى جامى اغوستل په لمانځه كى اشد ګناه دَه تر خارج دَ لمانځه او جدال به نه كوى يعنى خصومت دا نه يو الانو سره دَ خادمانو سره او دَ هيڅ چا سره، قَالَ المصنفُ:

## وَقَتْلُ[24] الصَّيْدِ وَالْاِشَارَةُ اِلَيْهِ وَالدَّلَالَةُ عَلَيْهِ

او قتل دَ ښكار لكه هوسى، كوتره يعنى صيد برى ولي چې دَ بحرى صيد لكه ماهى روا دى په احرام كى او اشاره به نه كوى و بل چاته كه محرم او كه حلال دَ ښكار وَخواته، او دلالت به نه كوى دَ چاو ښكار ته يعنى دا چې فلانى ځاى ته ولاړ سه هلته هوسى دَه، نو اشاره حاضرته وائى، او دلالت وغائب ته دَه فافهم الفرق بين الاشارة والدلالة، قَالَ المصنفُ:

## وَسُنَنُ الْحَجِّ مِنْهَا الْاِغْتِسَالُ وَلَوْ لِحَائِضٍ اَوْ نُفَسَاءَ اَوِ الْوُضُوْءُ

او سنت كارونه په حج كى دادى يو دَ سنتو څخه دَ حج غسل كول دى كه څه هم حائضه ښځه وى يا نفساء او يا

**إِذَا أَرَادَ الْإِحْرَامَ** اودس تازه کول دي چي سړي یا ښځی اراده د احرام وکړه پوه سه چي غسل خو افضل دی کما لا یخفی **فَائِدَه**: د حائض او نفساء د غړ غسل یا اودس د طهارت د پاره نه دی، ولې چي دوی که شل واره غسل وکي مثلاً په زمانه کی د حیض یاد نفاس وکړي پاکی نه ګرځی بلکه دا غسل مثلاً د پاره د احترام د احرام دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَلُبْسُ إِزَارٍ وَرِدَاءٍ جَدِيدَيْنِ أَبْيَضَيْنِ

اوبل سنت د حج اغوستل دی د لنګ یعنی د پاره د ستر دعورت، اوبل بټو یعنی د پاره د پټولو داوږو، ولې چي لمونځ سره د لڅ والی د اوږي اوږی او یا د دواړو اوږ و مکروه دی، ط، او هغه دوی ۲ جامی به نوی او سپینی وي. اوکه د نوو طاقت نه درلودی نو غسیلې هم کافی دي، **وَالتَّطْيِيبُ** او بل سنت خوشبوئی لګول دي یعنی قبل الاحرام لکن په بدن نه پر کالو، ولې چي تطیب د جامو په نیزد ټولو اماما نو ناروا دی لکه بعض جاهلان عوام چي کوي، او د بدن سر یا ږیری خوشبوئی عامه ده که ذات د خوشبوئی پاته لکه مشك او که صرف بوی یه پاته وي، کذا فی البحر و در، ط، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَصَلوٰةُ رَكْعَتَيْنِ وَالْإِكْثَارُ مِنَ التَّلْبِيَةِ بَعْدَ الْإِحْرَامِ رَافِعًا

او دوه رکعته لمونځ هم سنت د حج دی د مخه تر احرام، او ډیره دی وائی تلبیه پسله احرامه څخه او پورته کوونکی

## بِهَا صَوْتَهُ مَتٰى صَلّٰى أَوْ عَلٰى شَرَفًا أَوْ هَبَطَ وَادِيًا أَوْ لَقِيَ

به وی اواز لره په تلبیه سره هر وخت چي لمونځ وکړي، او یا پر یو لوړ ځای پورته کیدی، او یا کښته

## رَكْبَانًا وَبِالْأَسْحَارِ

شیلی ته شوه کیدی، او یا د نورو سپرو خلګو سره ملاقی شو او د سحار په وخت کی دی هم تلبیه ډیره وائي"

## وَتَكْرِيرُهَا كُلَّمَا أَخَذَ فِيهَا وَالصَّلوٰةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او مکرر دی وائي چي شروع یه په وکړه یعنی هر وخت چي شروع په تلبیه وکړه یو څو واره دی پر له پسی وائی





الله مرتبه یه دری واره دي، او و الصلوٰة عطف دی پر تلبیه یعنی د سنتو څخه د حج درود ویل دی پر نبی علیه الصلوٰة والسلام باندي، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَسُؤَالُ الْجَنَّةِ وَصُحْبَةِ الْأَبْرَارِ وَالْاِسْتِعَاذَةُ مِنَ النَّارِ

اوبل د سنتو څخه د حج سوال دی یعنی په لوی دربار کی د خدای جل سلطانه د جنت او ملګرتیا د نیو خلګو په جنت کی او د پناه غوښتلو د اور څخه" درویش وائی چي د دغو دریو شیانو د رخواست باید په بار بار په ډیر عجز او انکساری سره حاجی وکړی ولې چي مقصود د حج څخه بلکه د ټولو اعمالو حسنه وو بلکه د اسلام د دین څخه هم دغه دری شیان دي" قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَالْغُسْلُ لِدُخُوْلِ مَكَّةَ وَدُخُوْلُهَا مِنْ بَابِ الْمُعَلَّاةِ نَهَارًا

اوبل سنت غسل دی د پاره د داخلی د مکی مکرمې اوبل سنت دخول دی و ناړته د مکی مکرمې د باب المعلاة څخه چي اوس په نامه د کدأ یاد یږی او عوام یه کُدَی بولي، درویش وائی چي دا سنت په اوسنی زمانه کی عمومی حاجیان چي د مشرق او مغرب او د لیری مملکوته څخه راځی نسی اجراء کولای، ولې چي کاړو بار د حاجیانو د معلمانو په لاس کی دی، حاجیانو ته هیڅ درك نه معلومیږی البته په سنه ۱۴۲۳ چي دا فقیر حج ته تللی وو اتفاقاً مو پر دغه دروازه دخول راغلی هغه په دی سبب چي زمونږ د معلم په کداء کی کور او دفتر وو او د کداء عماری د حاجیانو د پاره په کرایه اخستی وي. او چي مونږ ور غلو نبان او مطوف را سره کړی پر دغه دروازه هم دو راځی داخل سو، فلله الحمد و المنة، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَالتَّكْبِيْرُ وَالتَّهْلِيْلُ تِلْقَاءَ الْبَيْتِ الشَّرِيْفِ

او الله اکبر دی وائی او لا اله الا الله دی وائي په وخت کی د ملاقات یعنی د لیدلو د بیت الله الشریف، **پوه سه**: چي معنا د تکبیر داده الله اکبر من کل کبیر کما هو المتعارف فی الکتب وما قال ط معناه الله اکبر من الکعبة لئلا یقع نوع شرك آه فمما لا افهمه تدبر" درویش،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما ولجمیع المؤمنین.

## وَالدُّعَاءُ بِمَا أَحَبَّ عِنْدَ رُؤْيَتِهِ وَهُوَ مُسْتَجَابٌ وَطَوَافُ[١٢]

اوبل سنت دحج دعا کول دی په هغه شی چی دحاجی خوښ وی په وخت کی دلیدو دکعبی شریفی او دغه دعاء

## الْقُدُومِ وَلَوْ فِي غَيْرِ أَشْهُرِ الْحَجِّ

په دغه وخت کی قبلیږی. اوبل سنت طواف قدوم یعنی اول وار چی کعبی شریفی ته ورسیږی که څه هم په غیر کی دمیاشتو دحج وی، یعنی دعمری په نیت، حاصل دا چی طواف قدوم په حج پوری تخصیص نه لري،

## وَالْاضْطِبَاعُ[١٤]

اوبل سنت دحج یعنی دطواف په وخت کی یعنی طواف قدوم اضطباع ده. داضطباع معنا دا ده چی پیتهودی تر استه اوږه لاندی برچیه اوږه واچوی **تنبیـــه** بعض عوام حاجیان چی په طواف کی ئی اضطباع وکړه نو وهغه ته دوام ورکوی په غیر کی دطواف یعنی کوی حتی دروئیش ولید دچی بعض حاجیانو په کلپی سنتن پیتهوی چیه اوږه تینګ تړلی وو اولمونځونه ئی کول اوسره ددی چی دمخه ذکر سوه چی په لځه اوږه لمونځ مکروه دی حتی چی ما پیرد غسو خلګوته ووئیله چی اوږه دی پټه کړه لکن عمل یه نریه کاوه ولنعم ماقیل. آن کس که نداند وبداند که بداند :: درجهل مرکب ابدالدهر بماند:: قال المصنف:

## وَالرَّمَلُ إِنْ سَعَى بَعْدَهُ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ

اوبل سنت دحج اوږی سنوره ول دی په هغه طواف کی وروسته سعی ده صفا اومروا لیسی کوی، او په اشهر کی دحج وی **پـوه ســه** چی رمل چابک تګ دی چی ګامونه نژدی سره ایږدی، او اوږی به هم سنوره وي، **مســئـله** کی په اولو دروشوطو کی رمل نه وکړی په هغه پاته شوطو کی به ئی هم نه کوی، ط، او که په ازدحام دخلګو کی داغلی چی رمل په نه سوای کولای نودی ودریږی چی فرجه پیدا سی بیا دی رمل وکړی **پـوه ســه**: چی دمتن څخه دا معلومیږی که طواف قدوم والا اراده دسعی نه درلوده بیله طوافه نو پر هغه رمل هم لازم نه دی، وسیأتی بیانه فی الفصل الآتی إن شاء الله،

اللهم اغفر لمولفه ولکاتبه وقد کتبه بقلمه فضل الحق حقانی ١٤٢٣ھ ٧-٩





## وَالْهَرْوَلَةُ فِيمَا بَيْنَ الْمِيلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ لِلرِّجَالِ وَالْمَشْيُ

اوبل سنت دحج چابک تګ دی په سعی کی په مابین کی ددوو میلانو چی په نښه ږغونه دی، لکن نرانو لره نه ښځو لره او تلل دی کوی په سکون او اطمنا ن

## عَلَى هَيْئَتِهِ فِي بَاقِي السَّعْيِ

کوی چی تر میلینو تیریږی. قال المصنف

## وَالْإِكْثَارُ مِنَ الطَّوَافِ وَهُوَ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاةِ النَّفْلِ

اوبل سنت دحج ډیر طوافونه کول دی او طواف افضل دی تر نفلی لمانځه دهغو

## لِلْآفَاقِي

حاجیانو دپاره چی داطرافو څخه دعالم اسلام راغلی وی سبب دا دی چی نفلی لمونځونه خو حاجی کور هم کولای سی، او طواف خو هر وخت نه میسریږی کما لایخفی **فـائـده** دمکی مکرمی خلګو لره په موسم کی دحج نفلی لمونځ افضل دی تر طواف، تا چی طواف ګاه افاقیانو ته خالی سی. او په غیر کی دموسم الحج دوی لره هم طواف افضل دی تر نفلی لمانځه، قال المصنف:

## وَالْخُطْبَةُ[١٩] بَعْدَ صَلَاةِ الظُّهْرِ يَوْمَ سَابِعِ ذِي الْحِجَّةِ

اوبل سنت دحج ویل دخطبی دی یعنی امام لره دحرم شریف په ما پښین د لمانځه څخه پر اوومه ورځ

## وَهِيَ خُطْبَةٌ وَاحِدَةٌ بِلَا جُلُوسٍ يُعَلِّمُ الْمَنَاسِكَ فِيهَا

دلوی اختر ده میاشتی چی دا خطبه یوه خطبه ده په مابین کی نا سته نشته لکه دجمعی د خطبی په مابین کی او ورښیی به وحاجیانو ته مناسک او افعال دحج لکه وقوف عرفات، مزدلفه، او نور افعال دحج چی په دغو ورځو کی حاجیان کوی، قال المصنف:

## وَالْخُرُوجُ بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ مِنْ مَكَّةَ إِلَى مِنًى وَالْمَبِيتُ بِهَا

اوبل سنت دحج وتل دی دحاجی بیله راختلو څخه دلمر په ورځ دا ته مه دمکی مکرمی څخه و منی ته او شپه تیرول دی په منی کی

## ثُمَّ الْخُرُوْجُ مِنْهَا بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ يَوْمَ عَرَفَةَ إِلٰى عَرَفَاتٍ

اوبل سنت دحج وتل دی دحاجی دمنٰی څخه پله ر اختلو دلرپه ورځ دعرفات اوعرفات سته درولیږ وائی چی په ورو سته کی ترلررا ختوحاجیان دلوی تکلیف سره چی عرفات ته وزری محاج کیږی، هغه داچی چونکه دمعلمانو نفر ډیردی، نودوی نسی کولای چی وروسته تر اختود لمدی ترزوال پوری خپل حاجیان وعرفات ته ورسوی، نوځکه دوی دسپیدو څخه موټران ولیبان حاجیانوته ودروی چی په هغه وخت کی هیڅ بیربار اوازدحام په موټرانوکی نه وي نودوی چی یوه پیره حاجیان وعرفات ته وخپلوخیموته ورسول، بیرته موټران بلامعطله راځی، نور حاجیان ترخیمود عرفات رسوی څروشم،

چی لمراوختری حاجیان ددغه سنت دپرځای کولو دپاره ډیر او اکثر په منٰی کی وی اوپه یوپلا پربسانو ر اووزی، حتی چی داسی ازدحام جوړیږی چی په موټرانوکی ځای په حملو اوپه جنګو نه پیدا کیږی، یوکری وروسته دبسانو آمدورفت هم بند سی، نوکوم حاجیان چی په منٰی کی هنوز باقی وی یاب پر پښوځی هغه ډیر لوی مزل دی، ولی چی دمنٰی څخه ترعرفات پوری ۲ میله لاره ده، اوبابه په تکسی موټرانوکی ځی. اول خو تکسیان دموقع څخه استفاده سره ډیر ریالونه غواړی، اوبیا چی تکسی والا چی صرف حاجی په عرفات کی داخل کړی نو بیه تاکی، حاجی بیچاره دخپل معلم په خیموپسی سرګردان وي، اوبل معلم یوخپلوخیموته نه پیژنی دی . ده معلم خپل تکټ دحاجی سره وی چی هغه و رنبکاره نه کی په دروازه کی دمجموعه خیمو، کی ده مُعلم سرې ولاړوی تکټ کوري نه ئی پریږدی اوکه څه هم معلم خو خپل حاجی ته تکټ دخیمو ور کړی هم وی، لکن حاجی ته داپته هم نه لګیږی چی زما دمعلم خیمی ب چیری وي، په زرو بلکه په لکوخیمی ولاړی وی، حتی ما داسی حاجیان ولیده چی خیمی ب څنډی ورکی وی نو لبب پریوه درخته بیتهو وغیره اچولی وو، وږی اوتږی ترلمرلویده پوری ب ناست وو، اوکوم حاجیان چی دمعلم په موټرانوکی ب وَلاړه هغه خویه دخپلوخیمو څخه تاکوی هلته بنی بنی فرش کړی خیمی ولاړی وی اود چینګ اوبه فراوانه وی، اودچکرځایونه ډیروی اوداودس یا غسل کولوځایونه هم فراوان وی، اوددی سره دغرمی په وخت کی دمعلم دخوانبوځچی





اوغونبی مفتی ورکول کیږی اوحاجی د ټولو سرګردانیو څخه دخدای جل سُلطانه وعبادت ته فارغ البال وي،

**تشریح** نودی تکلیفو اوکړاوونو سبب که حاجی په منٰی کی دلمر اختو ترسُنت تیرسی اوقبل ازان ب ازدحامد به عرفات ته وخپلوخیموته ورسیږی، نود عرفات سخته ورځ ب ئی دسرګردانی څخه خلاصوی اوعبادت اودعا گانوته پپله زواله د لمر ب ښه به استراحت وي، وقد قالوا الضروریات تبیح المحظورات ـ نوپه نظر د درولیږ ودغه سنت بنی دلمر اختو وروسته وتل دمنٰی څخه پاتیدو سره اوپه پټ لمر وتلوسره دمنٰی څخه، درولیږ وائی چی داټولی واقعاتی چی ما بیان کړی زما چشم دید واقعی وي. ولی چی د درولیږ اود اته کسه اندیوالانوه څه وخت چی سپیدی سوی په منٰی کی اود مُعلم دموټرانو انتظار کونه ویږ غیده دوی ماته وویل چی اوس موټران ډیر فارغ اوخالی دی راځی چی عرفات ته ولاړسوما ورته وویل چی داکار خلاف السنة دی نودوی هم پاته سوه اخیر چی لمر اوخوت ازدحام دومره ډیرسو، چی موږ اندیوالانو ته پاجتماعی صورت کی په موټرانوکی ځای پیدا کول ناممکنه سوه. اخیر چی موټران قطع سوه په تکسی کی ولاړو، اوهغه بیان کړه سوی تکلیفونه موګرده ولیدل. قال المصنفؒ:

## فَيَخْطُبُ الْإِمَامُ قَبْلَ صَلٰوةِ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ مَجْمُوْعَةً

اوبل سنت دحج دادی چی امام به دمخه دماپښین اومازدیګر ترلمانځه حال کوچ دمازدیګره چی جمع کړه

## جَمْعَ تَقْدِيْمٍ مَعَ الظُّهْرِ خُطْبَتَيْنِ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا

کیږی جمع تقدیم سره یعنی ترخپل وخت دمخه دماپښین دلمانځه سره اداکیږی دوی به وائی چی په مابین کی به کښینی، **پوه سه**: چی ټوله حاجیان چی حساب یه نکوته ر سیږی په مسجد کی دلمره چی په عرفات کی واقع دی نه جمع کیږی اونه ئی امکان دجمع سته، بلکه په اوس کلوکی داسی حاجیان ډیروی چی دغه مسجد یه په ستر ګونه وی لیدلی، نوهغه کسان چی دغه مسجد ته که حاضر نسی نو غرمازدیګر لمونځ بخپل وخت کی کوی اوجمع ورته روا. هو کولای سی چی هریو دغو دوولمونځو

پخپل خپل وخت کی په جماعت سره وکړي، قال المصنف:

## وَالْاِجْتِهَادُ فِی التَّضَرُّعِ وَالْخُشُوْعِ وَالْبُکَاءِ بِالدُّمُوْعِ

او بل سنت د حج دادی چې ډیر کوشش به کوی ټوله حاجیان په تضرع یعنی عجز ظاهری سره او خشوع یعنی په عجز باطنی سره او ژړا به کوی په او ښکو سره یعنی نه په غرغره سره لکه لعض ریا کاران چې په سترګو کی ښکه نوی او ناری او غلبلی ئې تر اسمان تیری وي، گفته اند ؎
بروی دریا خرقه سهلت دوخت ؛ اگر بر خدا در پروشی نکوست ؛ والله الغنی عن العبادة الشریکه. قال

## وَالدُّعَاءُ لِلنَّفْسِ وَالْوَالِدَیْنِ وَالْاِخْوَانِ الْمُؤْمِنِیْنَ بِمَا شَاءَ

او بل سنت د حج دادی چې دعا به کوی د ځان د پاره او د مور او پلار د پاره او د یاره د ټولو ورونړو مسلمانانو د پاره په هغه دعا سره چې د ده

## مِنْ اَمْرِ الدَّارَیْنِ فِی الْجَمْعَیْنِ

خوښه وي د کار و څخه د دنیا او اخرت په دواړو جمعو کی یعنی د عرفات او مزدلفی شریفی. قال المصنف:

## وَالدَّفْعُ بِالسَّکِیْنَةِ وَالْوَقَارِ بَعْدَ الْغُرُوْبِ مِنْ عَرَفَاتٍ

او بل سنت د حج دادی چې به ارام او عزت سره دی په لمر لویدو د عرفات څخه راروان سی او بل

## وَالنُّزُوْلُ بِمُزْدَلِفَةَ مُرْتَفِعًا عَنْ بَطْنِ الْوَادِیْ بِقُرْبِ جَبَلِ قُزَحَ

مزدلفه دی ورته واړوی. د شیلی د نسه څخه لوړ چې وادی محسر یه بولي. نژدې و جبل قزح ته چې مشعر حرام یه هم بولي، **مسئله** د ماښام لمونځ دی تروخت وځنډوی او د ماخستن د لمانځه د مخه دی وکړي انفرادًا کان او جماعة، قال المصنف:

## وَالْمَبِیْتُ بِهَا لَیْلَةَ النَّحْرِ وَالْمَبِیْتُ بِمِنٰی اَیَّامَ مِنٰی بِجَمِیْعِ اَمْتِعَتِهٖ

او بل سنت شپه تیرول دی په مزدلفه کی او بل سنت د حج شپې تیرول دی په منیٰ کی په ورځو کی





د منیٰ سره د ټوله کالو او سامانه، قال المصنف:

تقدیم

## وَکُرِهَ تَقْدِیْمُ ثِقْلِهٖ اِلٰی مَکَّةَ اِذْ ذَاکَ

او مکروه دی د مخه استول د خپل سامان و مکی ته په دغه وخت کی چې دی په منیٰ کی وي،

**مهمه مسئله**، یوه دا مسئله چې ټوله امتعه د ده سره به ورسره وي! او بله دا چې خپل سامان د مخه و مکی ته نه استوي، او بله دا مسئله چې حاجی د خپل سامان په مکه مکرمه کی نه پریږدی بلکه ټوله به عرفات ته ورسره وړي، او په کتابو کی د فقهی وائی چې د دی ټولو کراهت تحریمی دی، او سره د دې چې حاجیانو ډیر سامانونه او شیان په مکه مکرمه قبل ایام الحج رانیولی وي او هغه ټوله په مکه شریفه کی د معلم پر ځای په کوټه اطاق کښی پریږدی اطاق لپی قلف کی نه ئې عرفات ته ټوله وړای سی او نه ئې خوله وړی او نه ئې منیٰ ته خوله وړی او نه ئې وړای سی، او لعض خلګ د منیٰ څخه لعض د روند بار مکی ته خپل اطاق د مخه لا راوړي د طواف زیارت په ورځ، نو د دغه کراهت جواب به څه وي! قال المصنف

## وَیَجْعَلُ الْمِنٰی عَنْ یَمِیْنِهٖ وَمَکَّةَ عَنْ یَسَارِهٖ حَالَةَ الْوُقُوْفِ

او ګرځوی به منیٰ پر ښی اړخ او مکه پر چپه طرف په حال کی د دریدو د ځلو د ویشتلو د پاره

## لِرَمْیِ الْجِمَارِ وَکَوْنُهٗ رَاکِبًا حَالَةَ رَمْیِ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِیْ

او بل به دی سپور وی پر اس یا اوښ په حال د ویشتو د جمرة العقبة یعنی اول ځلی، په ټولو

## کُلِّ الْاَیَّامِ

ورځو کی، درویش وائې چې په حال کی د سپرتیا پر یوشی دا شیا وو که څه هم باشکل وی و ویشتل د جمرة العقبه په او سنی زمانه کی هیڅ امکان نه لري لازدحام الناس غایة الازدحام حتیٰ چې و ویشتونکی د ځلو د وو پښو ځای په ډیر تکلیف به پیدا کوي نو دا سنت په سبب د مجبوری په نني زمانه کی پاته دی او په پرینبولو کی ئې گناه هم نسته،

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولجمیع المسلمین آمین

قال المصنف

## مَاشِيًا فِي الْجَمْرَةِ الْأُولَى الَّتِي تَلِي الْمَسْجِدَ وَالْوُسْطَى

او پیاده به وی پـه حال کی دویشتو د اول ځلی چی نږدی دی و مسجد ته یعنی مسجد خیف ته او د میانځ ځلی په ویشتو، او په وخت کی دویشتلو

## وَالْقِيَامُ فِي بَطْنِ الْوَادِي

د جمارو دی په نښته کی د شیلی د پیړی

**پوښتنه**: چی د هر ځلی سره په پخوانی زمانه کی شیلی تیری سوی وه، چی د درو لیشو هم په اولو ځوکی هغه شیلی پیاده دي، په اوسنی زمانه کی نږدی شیلی نوم هم نه دی نښتانی، بلکه چونکه غوکاله د ځمکه په دغو ویشتلو کی د شیطانانو دیر ضعیفه خلک او ښځی د خلکو تر پښو لاندی مړه سوه، نو د سعودی حکومت هر ځلی ته لوړځای هم جوړ کړی چی دهغی څخه هم ځلی ویشتل کیدای سی او کښته پخوانی ځای هم باقی دی، تا چی خلک سره تقسیم سی او لوی ازدحام سپک سی فی الجملة۔

بعض مشککین کسانو وائی چی د لوړ خوا یه ویشتل نا روادی، لکن دا د دوی غلطیاده، ولی اصلی مقصود خو رمی د جمار دی. د هره ځای ځخه چی وي، تر نو ویني چی د سببه دا ازدحام د خلکو سعودی حکومت شاو خوا بندی جوړی کړي دی چی په هغو برنډو کی هم طائفین طواف کوي، او سره د دی چی په خیر القرون کی بلکه زمونږ په اولو ځوکی یوازې طواف کښته په ځمکه کیدی وبس، وروسته چونکه په وخت کی د اجتماع د حاجیانو اختر په نږدو شپو کی چونکه پر ځمکه او په برنډو کی هم طواف کوونکی نه ځائیدل، نو سعودی د برنډو پر بام چی تر بام د کعبی شریفی ډیر لوړ دی طواف ځای جوړ کړی چی پر هغه بام چی ساحه یه ډیره فراخه ده حاجیان طواف نه کوي، نو په مقتضی د قول د دغه مشکک باید په برنډو او یا پر بام د برنډو دی هم طواف نه وی روا۔

**سوال**: په کتابو کی د حدیثو او د فقه داسې وائی چی کعبه شریفه تر عنان پوری ده اسمان کعبه

**جواب**: د هر ځو لوړ ځایه په سبب د عذر د ازدحام زید بیری د مرګ چی شیطانان وولی هم روا ده ولی چی مقصود د دوی ویشته دي، وبس، قال المصنف

## وَكَوْنُ الرَّمْيِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ فِيمَا بَيْنَ طُلُوعِ الشَّمْسِ إِلَى زَوَالِهَا

او بل داسنت دی چی په اوله ورځ دی رمی د شیطان په مابین کی د راختو د لمر پیا تر زواله پوری وکړي





درولیش وائی چی معذورین سپین ږیری او ښځی چی د دیر ازدحام سره په دغه محدود وخت کی ځانونه نه شی رسولای نو ... 
ځامخ کیږی کولای سی چی دا اولی ورځ رمی دی تر ماښام پوری وکړي، قال المصنف

## وَفِيمَا بَيْنَ الزَّوَالِ وَغُرُوبِ الشَّمْسِ فِي بَاقِي الْأَيَّامِ

او رمی دی کوی یعنی د درو سره ځلو په مابین کی زوال تر لویدو د لمر په باقی ورځو کی ...

## وَكُرِهَ الرَّمْيُ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالرَّابِعِ فِيمَا بَيْنَ طُلُوعِ

او مکروه دی ویشتل په اوله ورځ او په څلورمه ورځ په مابین د راختو سپیدو او د راختو د لمر

## الْفَجْرِ وَالشَّمْسِ وَكُرِهَ فِي اللَّيَالِي الثَّلَاثِ وَصَحَّ لِأَنَّ

او مکروه دی رمی د ځلو په درو شپو کی یعنی د مینی او که چا وکړی صحیح دي. ولی چی شپی ټولی

## كُلُّهَا اللَّيَالِي تَابِعَةٌ لِمَا بَعْدَهَا مِنَ الْأَيَّامِ إِلَّا اللَّيْلَةَ الَّتِي

تابع دی د و روسته ورځو یعنی په شرع کی مګر هغه شپه چی وروسته د عرفات د ورځی ده،

## تَلِي عَرَفَةَ حَتَّى صَحَّ الْوُقُوفُ فِيهَا بِعَرَفَاتٍ وَهِيَ لَيْلَةُ الْعِيدِ

مګر نه هغه شپه چی خرمه د ه د عرفات ورځې ته چی هغه تابع د وروسته ورځې نه ده بلکه، تابع د د مخی ورځی ده چی د عرفات ورځ ده، حتی چی صحیح دی دریده پر عرفات په دغه شپه کی او په حقیقت کی خو دا شپه دا اختر ده نو که د غه شپه تابع د وروسته ورځی وای، باید وقوف د عرفات په دغه شپه نه وای صحیح، قال المصنف:

## وَلَيَالِي الرَّمْيِ الثَّلَاثِ فَإِنَّهَا تَابِعَةٌ لِمَا قَبْلَهَا

او دغه رنګه تابع نه دی هغه دری شپی د رمی د جمراتو، ولی چی هغه تابع د وروسته ورځو نه دی بلکه د مخه ورځو تابع دی کما لا یخفی۔

## وَالْمُبَاحُ مِنْ اَوْقَاتِ الرَّمْیِ مَابَعْدَ الزَّوَالِ اِلٰی غُرُوْبِ

او مباح یعنی جائز د اوقاتو څخه د رمی ورسته تر زوال تر لویدو پوری د لمر د اولی ورځې یعنی سنت

طریقه خو هغه وه چې د مخه تیره سوه لکن په

## الشَّمْسِ مِنَ الْیَوْمِ الْاَوَّلِ

مذکوره اوس وخت کی هم رمی د اولی ورځې یعنی

چې ویشتل د جمره عقبی دی هم مباح او جائز دی، قال المصنف:

## وَبِهٰذَا عَلِمْتَ اَوْقَاتَ الرَّمْیِ کُلِّهَا جَوَازًا وَّکَرَاهَةً وَّاسْتِحْبَابًا

او په دغه تیره سوی بیان سره تا وپیژندل وختونه د رمی ټول په توله یعنی د د رمی وختونه من حیث الجواز یعنی روا والی او مکروه والی او مستحب والی دي، **پوهسه** چې په جوهره کی چې شرح د قدوری ده، د اسې وائی، چې اوقات د رمی الجمار څلور ورځې دي. د اختر ورځ او دری ورځې ورسته تر اختر، نو په اوله ورځ کی وقت مکروه سته چې په مابین د سپیدو او د طلوع الشمس وخت دی. او بل وخت مسنون سته، چې ورسته تر طلوع الشمس زوال پوری، او وخت مباح سته چې بعد الزوال تر غروب پوری د لمر، و بعد غروب الشمس تر طلوع الفجر پوری مکروه دی، یعنی د مرې هیڅ صورت کی نسته البته په اخیری صورت کی کراهت موجود وي، او په دوهمه ورځ او دریمه ورځ څورمی الجمار د راختو څخه د لمر تر زوال پوری خو هیڅ روانه دئ، او پله زواله تر غروب پوری وخت مسنون دی، او ورسته تر غروب تر سپیدو پوری وخت مکروه دی، یعنی صرف کراهت دی دمره پر لازمیږی. حاصل دا چې که دغو دوو ورځو رمی کړ په شپه کی و کړی تر سپیدو د مخه روا دی، وَلَا شَیْئَ عَلَیْهِ، او څلورمه ورځ وخت د رمی یه په نیز د امام اعظمؒ د سپیدو څخه شروع کیږی تر غروب الشمس پوری، لکن قبل الزوال مکروه دی، او بعد الزوال مسنون دی او په نیزد یارانو د څلورمی ورځې وخت د ویشتو بعد الزوال دی او د مخه تر زوال هیڅ روانه دی

## وَمِنَ السُّنَّةِ هَدْیُ الْمُفْرِدِ بِالْحَجِّ وَالْاَکْلُ مِنْهُ

او سنت څخه دی هدیه د مکی شریفی یعنی که او بن و سے او که غوبئ وی او که پسه وی





## وَمِنْ هَدْیِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ فَقَطْ

دیاره د هغه چا چې یوازی د حج په نیت یې کړی وی، او خوړل به هم کوی د هغه هدئ د غوښو څخه، او د غه رنګه دی خوړل کوی د نفلی خیرات څخه چې په مکه شریفه کی و کړی. او د غه رنګه د تمتع د شکریه د غوښو څخه فقط یعنی د جنایاتو د دم د ه د په غوښی به دی نه خوری. **پوهسه**: چې د هدی المفرد یا هدی التطوع یا هدی التمتع یا هدی القران د حیوان د غوښو خوړل لازم نه دی. بلکه جائز دی په دی غرض د مصنفؒ احتراز د خوړلو د دم الجنایات دی، چې د هغه خوړل ورته روا نه دی، قال:

## وَمِنَ السُّنَّةِ الْخُطْبَةُ یَوْمُ النَّحْرِ مِنَ الْاُوْلٰی یُعَلِّمُ فِیْهَا

او بل د سنت څخه دی خطبه ویل د امام په ورځ د اختر په مثل د اولی خطبی چې ور ښیه به په

## بَقِیَّةَ الْمَنَاسِکِ وَهِیَ ثَالِثَةُ خُطَبِ الْحَجِّ

د غه خطبه کی باقی مناسک د حج لکه رمی الجمار طواف زیارة وغیره، او دا هم دریمه خطبه د خطبو څخه د حج ده، **پوهسه** چې د دوو خطبو ذکر و مخاندی تیر سو فتذکر، قال المصنف:

## وَلِتَعْجِیْلُ النَّفْرِ اِذَا اَرَادَهٗ مِنْ مِنًی قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ مِنَ

او بل سنت څخه دی تلوار په وتو کی د منی څخه کی اراده وه د وتو د مخه تر لویدو د لمر د دو لسمی

ورځې **فائده**: د اند ده لازمه چې حاجی به تر لمر لویدو

## الْیَوْمِ الثَّانِیْ عَشَرَ

د مخه مکی شریفی ته ځان رسوی بلکه چې د نفر اراده ولری نو تر حدود د منی دی صرف ځان وباسی تر لمر لویدو د مخه نو د کراهت څخه خلاص سو، **فائده** اوله ورځ یوم النحر بولی، دوهمه ورځ یوم القر بولی چې حاجیان قرار لری په منی کی، او دریمه ورځ یوم النفر الاول بولي، چې بعض خلک وزی د منی څخه او څلورمه ورځ یوم النفر الثانی بولی چې ټول خلک منی پریږدی، کذافی الجوهرة،

## وَانْ اَقَامَ بِهَا حَتّٰی غَرَبَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْیَوْمِ الثَّانِیْ عَشَرَ

اوکه حاجي پاته سو په منیٰ کي تر هغه چي لمر لویدی د دولسمي ورځي یعني وروسته تر لمر لویدو د ووتي نوشته یعني د مروړه

## فَلَاشَیْءَ عَلَیْهِ وَقَدْ اَسَاءَ وَانْ اَقَامَ بِمِنیٰ اِلٰی

خوباندي نسته، لکن په دغه کار سره ګناه ګار سو، اوکه دي پاته سو په منیٰ کي تر سپیدو چاودلو د څلرمي

## طُلُوْعِ فَجْرِ الْیَوْمِ الرَّابِعِ لَزِمَهُ رَمْیُهُ وَمِنَ السُّنَّةِ

ورځي نو پر ده لازم دی رمی د څلورمي ورځي، او هم سنت

**النُّزُوْلُ بِالْمُحَصَّبِ** څخه نازلیده دی په محصب کي، **پوه سه**: چي محصب چي ابطح په هم بولي د یو نژدي ځای نوم دی و مکه ته چي هوری شیله ده چي میده میده شګي په کښي دي، **پوه سه**: چي د ابطح نزول صرف زمونږ حنیفیا نو په نیز سنت دی په دی سبب چي علیه الصلوٰة والسلام په حجة الوداع دلته اړولی وه او په منبسط کي واي که چا نزول د محصب پرینو ګناه کار دی، درویش وائي چي که څه هم ما په اولو څو کي محصب لیدلی دی او هلته چي یو مسجد دی چي علیه الصلوٰة والسلام چیري چي په محصب کي لمونځ کاوه پر هغه د ګرد غه مسجد هغه جوړ دی او ډیر بنائسته مسجد لري غرمه مي په کښي تیره کړیده، او دماپښین لمونځ مي په هغه مسجد کي اداء کړي دی او بیا مکي شریفي ته تللی یم، فَـقَـالَ الْمُصَنِّفُ:

**سَاعَةً بَعْدَ ارْتِحَالِهِ مِنْ مِنیٰ** یو ګړی دی نزول په کښي وکړی وروسته تر کوچ د منیٰ څخه، درویش وائي چي د نزول د محصب په هغه وخت کي حاجیانو کولای سوای چي د منیٰ څخه به دوی پر پښو مکي شریفي ته تلل نو بي یو ګړی غرمه مثلاً په محصب کي تیر کړه بیا به مکي ته روان سوه، مګر په اوسني زمانه کي محصب ځوك پیژني لا نه، ولي چي دوی یعني حاجیان په ټکسي موټرانو د منیٰ څخه برابر مکي ته ځي حتیٰ که حاجي و ټکسي والانه ووائي چي ما محصب ته صرف یو ګړی وروله چي داسنت پر ځای کړم،





ټکسي والا وروته ووائي: وَاللّٰهِ مَا اَعْرِفُ الْمُحَصَّبَ وَلَا الْاَبْطَحَ، نو د دغه مجبوری د سببه د حاجیانو تولو څخه دا سنت پاته دی، اِلَّا الشَّاذ وَالنَّادِر، فَـقَـالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَیَشْرَبُ مِنْ مَاءِ زَمْزَمَ وَیَتَضَلَّعُ مِنْهُ

او دغه رنګ سنت دی چي سړی به څښي او به د زمزم د څا او بیه دي ځان په او به کي، او ننس دي په ډکوی پر در ي واره سره.

## وَاسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ اَلنَّظَرُ اِلَیْهِ قَائِمًا وَالصَّبُّ مِنْهُ عَلٰی رَأْسِهِ

او مخامخ و قبلي ته دریږ ي په وخت کي د څښلو د اوبو د زمزم، او د قبلي و خوا ته دي ګوري او به ولاړ ی

## وَسَائِرِ جَسَدِهِ وَهُوَ لِمَا شَرِبَ لَهُ مِنْ اُمُوْرِ الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ

دي څښي او او به د زمزم دي توی کړي پر سر او پر ټول بدن خپل، او د زمزم او به د هر غرض دپاره د امورو څخه د دنیا او اٰخرت چي و څښي کافي دی، **پوه سه**، چي اهل تجربه د علماوو او د صالحینو او به د زمزم د مختلفو امراضو دپاره او د رقم رقم اغراضو او مطالبو دپاره څښلي دي خدای جل جلاله هغه د دوی مقاصد او مطالب حاصل کړي دي، لکن درویش وائي چي حسن نیت او ټینګه عقیده په دی باره کي مهم رول لري، د شك او شبهی په سترګو دي نه ورته ګوري، لان ماء زمزم من عظیم قدرة الله جل سلطانه في تلك البقعة الشریفة، درویش وائي چي طریقه او داداب د آب زمزم څښلو داده: چي حاجي دي د زمزم څا ته ورسي او په خپله دي او به راوکاږي یعني په سولاغه لکن دا کار په پخوا زمانه کي چي د زمزم او به په سولغور اکښه کیدلي، چي د درویش هغه وخت هم پیاد دی خو ممکن وو، لکن اوس چي د زمزم څا ځوك لیدلای نه سي، بلکه د مشین په ذریعه او به څنډی ر اکاږی او هلته نلکی دي هغه اوبه اوس خلګ څښي خو په هر صورت حاجي دی په اوسني زمانه کي په هغو اوبو مخامخ و قبلي ته ښه ځان اوبه کړي، او بیا دي ساه وکاږي، او بیا دي او به و څښي او څو واره دي د غسي وکي او هم پلادي کعبي شریفي ته ګوري، درویش وائي د داخله څخه د احاطي د زمزم څخه کعبه شریفه نه معلومیږي نو صرف وجهت ته د کعبي شریفي دي ګوري. او مخ دي په پریولي او سر دي هم په

په سر یولي او پټان دي هم او به توی کړي حتی الممکن» قال المصنف رحمه الله:

## وَمِنَ السُّنَّةِ اِلْتِزَامُ الْمُلْتَزَمِ وَهُوَ اَنْ يَّضَعَ صَدْرَهٗ وَوَجْهَهٗ عَلَيْهِ

او بل د سنت څخه دی په غیږ کې ټینګ نیول د ملتزم شریف په دې ډول چې سر دې ځیګر او مخ پر ملتزم کښیږدي. او هر څه دعاء چې زړه یې غواړي هغه دې وکړي، د روایت وائي چې پخوا زمانه کې چې زما نه بنیاد دی دا کار ډیر آسانه وو هر سړي کولای سوای، اما په اوسنی زمانه کې که حاجي یې او لو حاجیانو ته ورلاړ سي، او یا په اخیرو حاجیانو کې پاتی وي نو شاید دا کار به وکړای سي، او که د حاجیانو د ازدحام وخت وو نو زه ګمان کوم چې بیله پړي وهلو او کښلولو به دا کار ډیر مشکل وي" والله الموفق"

## وَالتَّشَبُّثُ بِاَسْتَارِ الْكَعْبَةِ سَاعَةً دَاعِيًا بِمَا اَحَبَّ

او لاسونه دې ټینګ کړي پر پردو پوړي د کعبې شریفې یو ګړی او دعاګانې کوي په هغه دعاګانو چې د ده خوښه وي ازاهم سنت دی، که چیري لاس ور رسیدی او که لاس نه ور رسیدی نو لاسونه دې تر سر لوړ ونیسي او د کعبې شریفې پر دیوال دې کښیږدي» قال المصنف رحمه الله:

## وَتَقْبِيْلُ عُتْبَةِ الْبَيْتِ وَدُخُوْلِهٖ بِالْاَدَبِ وَالتَّعْظِيْمِ

او د غه رنګه سنت دی مچول د چارچوب د بیت الله شریفې او بیت الله شریفې ته دی داخلیږي په ادب او تعظیم سره، **پوښتنه**: چې مچول د حجراسود یا تشبث په پردو پوړي د کعبې، او یا ملتزم شریف په ځیګر پوري نیول یا دخول وخولی ته د کعبې شریفې ټول سنن او آداب دی، نو که حاجي ته د غه کارونه ممکن سوه بیله ازاره د خلګو او بیله کښلولو او پړي وهلو د خلګو خو ډیر اعلیٰ او د ثواب کارونه دي، او که بې ازاره ممکنه نه وه لکه په اوس زمانه د حج کې خو بیا دی حاجي د د غو سنتو تر سر تیر سي، ولې ازار د خلګو خو حرام دی» قال المصنف رحمه الله:

## ثُمَّ لَمْ يَبْقَ عَلَيْهِ اِلَّا اَعْظَمُ الْقُرُبَاتِ وَهُوَ زِيَارَةُ

وروسته چې افعال د حج فرائض، واجبات، سنتونه، مستحبونه وپای ته ورسیده نه دی پاته پر حاجي باندي مګر یو لوی د ثواب





## النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَصْحَابِهٖ فَيَنْوِيْهَا عِنْدَ

کار دی څخه چې هغه زیارت دی د نبي علیه الصلوٰة والسلام او د اصحابو د ده رضی الله عنهم یعنی د قبرو د دوی، نو حاجي دې نیت د زیارت

## خُرُوْجِهٖ مِنْ مَّكَّةَ مِنْ بَابِ سَبِيْكَةَ مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلٰى

کوي په وخت کې د وتو د ده د مکې مکرمې څخه پر دروازه چې په نامه د باب السبیکة یادیږي د کښته غونډۍ

## وَسَنَذْكُرُ لِلزِّيَارَةِ فَصْلًا عَلٰى حِدَةٍ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰى

برلاره، او زر دی چې مونږ به ذکر کړو د زیارت نبوي صلی الله علیه وسلم د پاره مستقل او جلا فصل که خدای خوښه او رضا وه.

**فَائِدَه**: د دې بیان څخه د مصنف رحمه الله دا ښکاریږي چې زیارة النبي صلی الله علیه وسلم به حاجي وروسته تر حج ځي، په اوسنی زمانه کې هغه حاجیان چې په د بحر تیاره کې مکې مکرمې ته ورسیږي هغه حاجیان چونکه تر وخته پوري د حج ډیره زمانه پاتې وي نو نه دا افرادي حج نیت کوي او نه د قران حج بلکه ټول دی نیت د تمتع کوي، نو چونکه څرنګه چې مکې شریفې ته ورغله نو د هر معلم په نامه چې وي هغه په جوازات یعني پاسپورتونه سره جمع کړي، او خپل مطوف ور سره کړي چې په حاجیانو عمره وکړي یعني اووه شوطه طواف او ووه واره سعی د صفا او د مروا، نو حاجیان ځا نو نه د احرام څخه خلاص کړي نو معلم په سمدلاسه په صبا ورځ مثلاً مدینې منورې ته استوي د زیارت نبوي صلی الله علیه وسلم د پاره ثمروشم، تر هغه وخته پوري چې د حج شپې را نژدې کیږي، او حاجیان اته ورځې د ۴۰ لمونځو د پاره په مدینه منوره کې پریږدي، وروسته یې بیرته مکې مکرمې ته را استوي، او د غه حاجیان پر ذو الحلیفه چې پخوا به ئې ابیار علی بلله، چې میقات د اهل مدینه دی او تر ټولو میقاتو ټولیري میقات دی، و مکې شریفې څخه احرام د بلې عمرې تړي چې مکې شریفې ته راسي، عمره اداکوي او ځانونه حلال کړي، او پر د غه میقات آنحضرت صلی الله علیه وسلم هم احرام تړلی دی سره د ډیرو صحابه وو رضی الله عنهم، نو دا حاجیان چې د حج مراسم پوره کړي سمدلاسه یې د مکې شریفې څخه جدې ته استوي، او د جدې څخه خپلو خپلو وطنو ته ځي. نو د د غو حاجیانو څخه که څه هم اصل سنت چې زیارة النبي صلی الله علیه وسلم وروسته تر حج پاته سو

لکن په دې کې گناه نشته، ولې چې دا کار په دوی جبراً د سعودي د حکومت د خوا وشو، ومع هذا بل سنت چې احرام د ذوالحلیفه څخه دې پرځای شو، او هم بوه نری عمره په نصیب شوه، وهاتا او هغه حاجیان چې ډیر وړوسته مکې شریفې ته راځي هغه د افراد او قران نیت هم کولای شي، ولې چې تر وختره د حج لږ شپې پاته وي، نو د غه قسم حاجیان د سعودي حکومت وروسته تر حج و مدینې منورې ته استوي او اصل سنت د دغو حاجیانو پرځای شو، او د غه حاجیان وروسته تر ۸ اته شپو سیده د مدینې منورې څخه جدې ته استوي او بیا د هغه ځای څخه خپلو وطنونو ته ځي "،

**سوال**: د سعودي د حکومت په دې د مخه او وروسته زیارة النبی صلی الله علیه وسلم ته استولو کې څه غرض او حکمت دی، **جواب**: د سعودي دا حکمت دی چې په حرمینو کې بلا ضرورته ازدحام جوړ نه شي، او په نزدې ورځو کې د اختر که څه هم ازدحام عظیم جوړیږي، هغه خو د حج د مراسمو دادا ء ضرورت پیښ شو،

**پوهنه**: چې مصنف چونکه افعال د حج او د عمرې ټوله په متفرقو ځایو کې ذکر کړه چې د هغو ټولو په یاد ساتل و حاجي ته گران وو، نو هم د اوس هغه ټوله مناسك په یوه ځای ذکر کوي ستا چې حاجي ته آسانې شي، نو وایي:

## خبرتیا

د حضرت علامه ابو الفضل مولانا محمد عبید الله ایوبي القندهاري السلیمانخیلي بنگلي تصنیف نکاح قدوري ان شاء الله ډیر ژر د چاپ څخه راووزي او د انتظار هغه ساعتونه به ډیر ژر ختم شي ان شاء الله

ستاسو خیرخواه فضل الحق حقاني
څپل قلم سره





# فَصْلٌ فِي كَيْفِيَّةِ تَرْكِيبِ أَفْعَالِ الْحَجِّ

دا فصل دی په بیان کې د یو ځای کولو کې د افعالو د حج،

## إِذَا أَرَادَ الدُّخُولَ فِي الْحَجِّ أَحْرَمَ مِنَ الْمِيقَاتِ كَرَابِغٍ

هر کله چې یو سړی اراده وکړي چې په حج کې داخل شم، نو دی احرام وتړي د یوه میقات څخه لکه رابغ چې عوام یې رابك بولي، رابغ د یوی شیلی نوم دی د ریاب ته نژدې، **پوهنه**: چې ذکر د رابغ مصنف پر سبیله د مثال کړی دی، ولې چې د مخه تیره شوه چې میقاتونه ډیر دی، او رابغ خاص لازمه نه دی، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## فَيَغْتَسِلُ أَوْ يَتَوَضَّأُ وَالْغُسْلُ وَهُوَ أَحَبُّ لِلتَّنْظِيفِ

نو دی غسل وکړي او یا دی اودس تازه کړي او غسل چې دی تر اودا سه افضل هم دی صرف د بدن د پاکوالی د پاره دی یعنی نه د طهارت د پاره، ورنه بر حائض او نفساء حاجیه باندې به دا غسل نه وای، "فنه. د پاره د تفصیل ده احرام تر لو د پاره ده، د تعقیب د پاره نه ده"، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## فَتَغْتَسِلُ الْمَرْأَةُ الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ إِذَا لَمْ يَضُرَّهَا

نو چونکه دا غسل د تنظیف د پاره دی نو هغه ښځه چې فعلاً په حیض کې وي یا نفساء ښځه چې هنوز هم په نفاس کې وي هم به دا غسل کوي لکن که نفساء ته دا غسل تاوان نه کاوه، "قال

## وَيُسْتَحَبُّ كَمَالُ النَّظَافَةِ بِقَصِّ الظُّفْرِ وَالشَّارِبِ وَنَتْفِ الْإِبْطِ

او مستحب ده کامل پاکې د بدن، حتی په پرې کولو سره د نوکانو، او په پرې کولو سره د بریتو یعنی پر وجه مسنونه باندې، او هم دارنګه د بغل ویښتان دې کاږي

# وَحَلْقِ الْاِبْطِ وَحَلْقِ الْعَانَةِ وَجِمَاعُ الْاَهْلِ وَالدُّهْنِ وَلَوْ مُطَيَّبًا

او که نه وای کناې نودی وَخوری، او ودی خرئ زیر نافـ هم که نروی اوکه ښځه، او د ماینی سره جماع هم دِ وکړي، د جماع سِرِه دادی چی زړه یې مطمئن سي، او بیا په حج کی دَ ماینی سره د جماع سو داتره وړه نه بید انبی. او د حج په دوران کی نامحرم ښځو ته په نظرِ شهوت ونه گوري، او روغن که څه هم خوشبویه وي په سر یوري او په زیره یوري وموږي، قَـالَ المصنفُ:

# وَيَلْبِسُ الرَّجُلُ اِزَارًا اَوْرِدَاءً جَدِيْدَيْنِ اَوْغَسِيْلَيْنِ وَالْجَدِيْدُ

او غوندی دې نر یو لنگ او یو د وپټه که نوی وي، او که پریولی مگر نوی او سپین افضل

# الْاَبْيَضُ اَفْضَلُ وَلَاتَزُرُّهُ وَلَايَعْقِدُهُ وَلَا يُخَلِّلُهُ

دي. او تنې دی نه ټکنی ایږدی، او نه دی لنګ ته غوټه وړکوی، او نه دی په مابین کی د لنګ یا پټو کلپی ستن ځنوي، قَـالَ المصنفُ:

# فَاِنْ فَعَلَ كُرِهَ وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ وَتَطَيَّبَ وَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ

من الدم وغيره

او که دغو کارونو څخه یو کار وکړی مکروه خو دی. لکن شئ نه دی پر لازم، او خوشبوئی دی وَلګوی، لکن پر سر، بدن، او مخ او کالو، لنگ، وغیره دی نه موږی **پوه سه**: چی مصنفؒ تول صیغی دلته د مخاطب پر دَوَل لیکلی دی گویا مخاطب یه حاجی یا عمره کوونکی دی، عینی وائی چی په دغو صیغو کی باعث کول د حاجی یا معتمر پر ده کړو د افعالو د حج او د عمری، او دوه رکعت لمونځ دی وکړی افضل داده چی اقتداء دی په علیه الصلوٰة والسلام ببی وکړی چی دهٔ مبارک علیه السلام په اول رکعت کی د دغه لمانځه بیله الحمدلله څخه قُلْ يٰاَ اَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ. وایه او په دوهم رکعت کی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ. ویله که څه هم هر سورت چی ووائی کافی دی "

اللّٰهمّ اغْفِرْ لِكَاتِبِهِ وَلِمُؤَلِّفِهِ وَلِوَالِدَيْهِمَا اَجْمَعِيْنَ،





# وَقُلْ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُرِيْدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِيْ وَتَقَبَّلْهُ مِنِّيْ

او ووایه ای الله زما اراده د حج ده، نو ته ئې راته اسانه کړی او قبول یې کړی زما څخه. **پوه سه** چی دا د مفرد حج نیت دی، او یا متمتع چی تر عمری وروسته نیت د حج کوی، او متمتع به اول داسی ووائی اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُرِيْدُ الْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهَا لِيْ وَتَقَبَّلْهَا مِنِّيْ، او قارن به داسی وائي اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُرِيْدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهُمَا لِيْ وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّيْ ، قَـالَ المُصنفُ:

# وَلَبِّ دُبُرَصَلٰوتِكَ تَنْوِيْ بِهَا الْحَجَّ وَهِيَ لَبَّيْكَ

او وروسته تر لمانځه دی تلبیه وَوائی چی نیت د حج به په کښی وي، او هغه تلبیه داده چی زه په خدمت درته **پوه سه**: چی دا بیان دافضل دی وړنه حج په مطلق نیت سره روادئ "

# اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَاشَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ اِنَّ الْحَمْدَ

ولاړیم ای خدایه په خدمت درته ولاړیم هیڅ شریك نشته تا لره. په خدمت درته ولاړیم، په تحقیق ټوله تعریفو

# وَالنِّعْمَةَ وَالْمُلْكَ لَكَ لَاشَرِيْكَ لَكَ وَلَاتَنْقُصُ

او ټوله نعمتونه او پاچهی خاص تا لره دی، او تا لره هیڅ شریك نشته ، او تر دغو الفاظو دی څه

# مِنْ هٰذِهِ الْاَلْفَاظِ شَيْئًا وَزِدْ عَلَيْهِ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ

شئ نه کموی، او که څه خو ښه سی نو پر دی تلبیه دی وړ زیاتی کی داالفاظ

# وَالْخَيْرُ كُلُّهُ بِيَدَيْكَ لَبَّيْكَ وَالرُّغْبٰى اِلَيْكَ وَالزِّيَادَةُ

زه ستا طاعت کوم په بار بار، او خیر یعنی د دواړو دنیا و آخرت ستا په قدرت کی دی، او زه عاجزی او سوال تا ته کوم، او دا زیاتوالی هم سنت دی،

**سُنَّةٌ**

د تلبیه مختصره ترجمه: زه ولاړ یم په دروازه کی د عبادت ستا یا الله په بار بار، او ما قبول کړی ستا دعوت نام په بار بار، (ملا علی قاری) هیڅ شریک نشته تا لره لبیك، په تحقیق سره حمد او نعمت او پادشاهی تا لره ده. او سعدیك، زه ستا طاعت کوم په بار بار، او خیر یعنی د دواړو دنیا و اخرت ستا په قدرت کی دی، والرغبی یعنی عاجزی او سوال ستا څخه دی یعنی تا ته عاجزی کوم او ستا څخه سوال کوم.

## فَاِذَا لَبَّيْتَ نَاوِيًا فَقَدْ اَحْرَمْتَ فَاتَّقِ الرَّفَثَ وَهُوَ

نو چی هر کله تا تلبیه ووئیله چی نیت دی هم وو نو ته محرم سوې، یعنی شرعًا چی محرم سوې نو به ځان

## الْجِمَاعُ وَقِيْلَ ذِكْرُهُ بِحَضْرَةِ النِّسَآءِ وَالْكَلَامِ الْفَاحِشِ

ساتی د رفث څخه او رفث جماع ته وائی، او بعض مفسران وائی چی رفث ذکر د جماع و دی په حضور کی د

## وَالْفُسُوْقَ وَالْمَعَاصِیْ وَالْجِدَالَ مَعَ الرُّفَقَاءِ وَالْخَدَمِ

ښځو او ځان وساته د بیبا کو خبرو څخه لکه ښکنځل یا فحش مسخری او د فسق او د گناهو څخه او معاصی وو څخه عطف تفسیری دی، او جنگ دی نه کوی د اندیوالانو سره او خادمانو سره یعنی نه دی قولی جنگ ورسره کوی او نه عملی جنگ، قال الله تعالیٰ: فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِی الْحَجِّ، قال

## وَقَتْلُ صَيْدِ الْبَرِّ وَالْاِشَارَةُ اِلَيْهِ وَالدَّلَالَةُ عَلَيْهِ

او ځان ساته د وژلو څخه د ښکار د وچی لکه هوسی، کوتره، وغیره، په بر کی اشاره ورته ته ده چی صید البحر لکه ماهی وغیره و حاجی ته مباح دی، او ځان ساته د اشاری څخه و صید البر ته، او د لالت و چا ته هم مه ورکوه پر صید البر باندې، د اشارت او دلالت د افرق دی، چی اشارت و حاضر ته ده او دلالت پر غائب باندی ده، کفایه، عن، قال المصنف:

## وَلُبْسَ الْمَخِيْطِ وَالْعِمَامَةِ وَالْخُفَّيْنِ وَتَغْطِيَةَ الرَّأْسِ

او ځان وساته ای حاجی د اغوستلو د روغ کړی جامی لکه قمیص وی که پرتوگ وی او کی د پتو په ما بین کی درز ورکړی وی





## وَالْوَجْهِ وَمَسَّ الطِّيْبِ

او همدا رنگه ځان وساته د تړلو څخه د لنگوټی، او د په پښو کولو څخه د موزو. **پوه سه**: چی د موزو څخه مراد متعارفی موزی یوازی نه دی بلکه هر د پښو شی چی بجلکی په پټیږی مراد دی او مه پټوه سر او مخ.

**مسئله**: د تولی او د لبعض مخ وغیره فرق نشته. حتی که ئې پر سر د روه په دسمال وغیره بدئې نه تړی، او نه به خوله پټوی او نه بارخوا و که لاسونه پرسترگو کښیږدی پروا نه لری، بحر، انیق، او خوشبوئی هم مه مسه کوه، **مسئله**: چونکه حاجیان د حجر په غاړی عطر وسیني چی کوی نو محرم حاجی ته نه ده روا چی یالاسونه د ته ورننباسی، ولی چی دا هم مس الطیب دی.

## وَحَلْقَ الرَّأْسِ وَالشَّعْرِ

او حاجی دی ځان ساتی د خریلو څخه د سر او د ویښتانو دا تعمیم لبعد التخصیص دی، **پوه سه**
چی مراد د حلق الراس څخه هغه عرف خریل مراد نه دی، او د ویښتانو د خریلو څخه هم متعارفه معنا مراد نه ده، بلکه کی مراد ازالة د ویښتانو د بدن د هر ځایه څخه چی وی که په خریلو سره وی که په غچی پری کولو سره وی او که په کښلو سره او که په موی پاک سره وی او که په سوځلو سره وي. کی بچیله دا کار وکی او کی بل سري ورو کی، البته کی په سترگه کی بانروزمات سوی هغه کښلای سی کما ذکره بعض المشائخ، بحر، ودر، عن، قال المصنف:

## وَيَجُوْزُ الْاِغْتِسَالُ وَالْاِسْتِظْلَالُ بِالْمَحْمِلِ وَالْخَيْمَةِ وَغَيْرِهِمَا

او روا ده حاجی ته غسل کول یعنی نه په استعمال د صابون ونحوه. او دغه رنگه روا ده حاجی ته په سایه کی د کجاوی یا د خیمی او یا بل شی لکه سایوان ته کښینستل لکن په شرط د دی چی سر او مخ بی د محمل او خیمی او سایوان څخه نه مښلی او که رسیدی بیا د اغسی کول مکروه دی، **مسئله** که حاجی پر سر تالی یا غاب وغیره واخستی نه کراهت سته او نه جزاء او که کالی پر سر واخستی بیا جزاء پر سته تجرد

## وَشَدَّ الْهِمْيَانِ فِی الْوَسَطِ

او روا ده و حاجی ته تړل د همیانی یا د جیبو والا کمربند پر ملا باندی د پاره د ساتلو د پیسو که څه هم

همیانی یا کمربند خوګنډلی دی، لکن الضرورات تُبیح المحظورات، وَمَا جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَاَكْثِرِ التَّلْبِيَةَ مَتٰى صَلَّيْتَ اَوْعَلَوْتَ شَرَفًا اَوْهَبَطْتَّ**

اوته ډیره وایه تلبیه هر وخت چې دی لمونځ وکړی، اویا لوړځای ته پورته کیدل اویا کښته کیدل

**وَادِيًا اَوْلَقِيْتَ رُكْبَانًا وَبِالْاَسْحَارِ رَافِعًا صَوْتَكَ**

ویاکښته ځای ته شوه کیدلې، اویا نور سپاره په مخه درغله، اوډیره وایه تلبیه په وخت کښې د سحار

**بِلَاجُهْدٍ مُضِرٍّ** پهداسې ډول چې آواز په تلبیه سره بلند کوه، اوپه لوړوالی کښې د آواز به تکلیف پرځان چې تا وان درته کوی مه کوه، اویا ملګرو

آزار وی، در. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**فَاِذَا وَصَلْتَ اِلٰى مَكَّةَ يَسْتَحِبُّ اَنْ تَغْتَسِلَ** اوهر کله چې ته ورسیږی و مکی ته یعنی

ښارته د مکی مکرمې نو مستحب داده چې ته غسل وکړی، **پوهه سه**: چې دا غسل د تعظیم

البلدة الشریفه او د نظافت د پاره دی. نو ددی سببه حائض او نفساء ته هم مسنون دی.

**پوهه سه**: چې دخول و ښارته د مکی که لیلًا وی اوکه نهارًا وی پروانه لري، که څه هم افضله

دخول د ورځی دی. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَتَدْخُلُهَا مِنْ بَابِ الْمُعَلّٰى لِتَكُوْنَ مُسْتَقْبِلًا فِيْ**

اوته داخل سه ښار ته د مکی د دروازی څخه د ښار چې باب المعلیٰ یه بولی چې د مکی مکرمې په

**دُخُوْلِكَ بَابَ الْبَيْتِ الشَّرِيْفِ تَعْظِيْمًا**

شرقی طرف کښې واقع ده، ددی د پاره چې ته په وخت کښې د دخول د ښار و دروازی ته د بیت شریفې مخامخ





سی چې دروازه د بیت الله شریفې هم مشرقی ده او دا د پاره د تعظیم د بیت الله الشریف کیږی.

**وَيَسْتَحِبُّ اَنْ تَكُوْنَ مُلَبِّيًا فِيْ دُخُوْلِكَ حَتّٰى تَاْتِيَ بَابَ السَّلَامِ**

مستحب داده چې ته دی تلبیه ویونکی یې په وخت د دخول و ښارته ترهغو وخته چې ورځې باب السلام ته چې د حرم یوه مشهوره دروازه ده، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**فَتَدْخُلُ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ مِنْهُ مُتَوَاضِعًا خَاشِعًا مُلَبِّيًا**

نوته داخل سه مسجد حرام ته د باب سلام څخه، په داسې حال کښې چې عاجزی د ظاهر به درسره وی او

**مُلَاحِظًا جَلَالَةَ الْمَكَانِ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُصَلِّيًا عَلَى**

خشوع یعنی ویره د باطن به هم همراه وي، او تلبیه ویونکی به یې، او په خیال کښې به دی وي عظمت

**النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَلَطِّفًا بِالْمُزَاحِمِ دَاعِيًا بِمَا اَحْبَبْتَ**

د دغه ځای چې مسجد حرام او بیت الله شریفه ده، او اَللّٰهُ اَكْبَرُ به وایې او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ به وایې

**فَاِنَّهُ مُسْتَجَابٌ عِنْدَ رُؤْيَةِ الْبَيْتِ الْمُكَرَّمِ** او درود ویونکی به یې پر

نبی علیه الصلوٰة والسلام باندی، او دعا کوونکی به یې په هغه دعاء سره چې درته خوښه وي

که د دنیاوی اوکه د اخرت وي، ولې چې دعا په نیزد لیدلو د بیت المکرم مستجاب او قبوله ده او د

لطف او نرمۍ څخه به کار واخلې د ازدحام کوونکی سره یعنی د ازدحام کوونکی سره د زوره، او د خشونت

کار مه اخله، **فائده**: په دغه ځای کښې د اقاربو دعاء خصوصًا د مور او پلار دعاء

هم د فهم څخه مه باسه، او هغه کسان چې وتاته یه وصیت د دعاء کړی وي، او تا هم وعده د دعاء ورسره کړې وی، که تفصیلی دعاء یه ډیره وی اجمالاً دعاء ورته وکړه مثلاً وایه

اللهم اغفر لكل مَنْ اوصانی بالدُّعَاءِ.

**یوه مسئله**: چې په حدیث کې دعطاءؒ دادعاء د آنحضرت صلی الله علیه وسلم نه راغلې ده: اعوذ برب البیت من الدین والفقر ومن ضیق الصدر وعذاب القبر» په مناقبو د امام اعظمؒ راغلې دي چې یو سړي چې بیت الله ته تلې وحضرت الامام ته ئې وویل چې زه په نیت د رویت د بیت الله شریفې کمه دعا وکړم امام اعظمؒ ورته وفرمائیل، چې ته دغه دعاء وکړه په وخت د لیدلو د بیت الله شریفې» ای الله ته زما دعاوې قبلوه، نوکه دې دغه دعاء خدائ قبوله کړه نو ته به دا ابد دپاره مستجاب الدعات وګرځې، بحرورائق. انظر ایها الناظر الی غزارة علم ابي حنیفة الامام الاعظم رحمه الله، قال المصنف:

## ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْحَجَرَ الْأَسْوَدَ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا رَافِعًا يَدَيْكَ كَمَا

وروسته ته لیدودبیت الله اودعا ګانو، بیا نومخامخ روان سه د حجر اسود برخوا لاسونه پورته ونیسه

## فِي الصَّلٰوةِ وَضَعْهُمَا عَلَى الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ وَقَبِّلْهُ بِلَا صَوْتٍ

لکه په لمانځه یعنی په افتتاح کې او الله اکبر ووایه اودواړه لاسه کښیږده په حجر اسود باندې او حجر اسود مچ کړه بیله آواز د بچیدو په وخت، قال المُصنفُ:

## فَمَنْ عَجَزَ عَنْ ذَالِكَ اِلَّا بِاِيْذَاءٍ تَرَكَهُ وَمَسَّ الْحَجَرَ

نو څوک چې عاجزه سو د مذکوره ذول د حجر اسود د بچیدو نه لکه چې اغلب په موسم کې دحج داعجز

## بِشَيْءٍ وَقَبَّلَهُ اَوْ اَشَارَ اِلَيْهِ مِنْ بَعِيْدٍ مُكَبِّرًا حَامِدًا مُصَلِّيًا

سته. نودی بريږدی هغه قسم ښکول، ولې چې په هغه ذول بچیدو په سبب د ډېر ازدحام خلک ازاروول راځي اوذخلګو

## عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ازاروول خو حرام دی او د حجر اسود ښکول سنت دي. درویش وائي چې زه ګمان نه کوم چې په موسم کې د حج یا په ورځ کې شپه





څوک حجر اسود بیله پوره ازاره دخلګو څوک مسه کړي، اوعوام کالانعام خو په داسې وجه مسه کوي چې یو پر بل سپریږی، او یو بل سره کشوی نو به مسه کوي او ورته کاږو یقینا حرام دی، او عوام په دی فخر کوي چې نن په طواف کې می په هر شوط کې حجر اسود مسه کړي، فالحذر الحذر،
مصنفؒ وائي، که اوله طریقه بې ازاره نه وه ممکنه نو دی په یو شئ لکه په تهویا لکړه حجر اسود مسه کړي او بیا هغه شی مچ کړي او که هغه سی هم نه وه ممکنه نو ده لري اشاره دی ورته وکړي په لاسونه، په داسې الله اکبر ویونکی به وی، او لا اله الا الله ویونکی به وی، او درود ویونکی به وی پر نبی علیه الصلوة والسلام باندې» درویش وائي چې د ډېر ازدحام په وخت کې د دغو شیانو دوئیلو وقوف او دریده هم و سړی ته نه میسره کیږی کما یدل علیه التجربه، بلکه صرف دی الله اکبر دی واره وئیلو فرصت چې سړي پیدا کړي ډېر خوشحالی به وی. والله الموفق.

## ثُمَّ طُفْ اٰخِذًا عَنْ يَمِيْنِكَ مِمَّا يَلِي الْبَابَ مُضْطَبِعًا

بیا نو طواف شروع کړه چې شروع په راسته اړخ کوې چې دروازې ته د کعبې شریفې څرمه وي. او مضطبع

## وَهُوَ اَنْ تَجْعَلَ الرِّدَاءَ تَحْتَ الْاِبِطِ الْاَيْمَنِ وَتُلْقِيَ طَرْفَيْهِ

به وی، اضطباع دی ته وائي چې پټو د ګرځوه لاندې تر راسته تغل او دواړه طرفه یې پرچپه اوږه

## عَلَى الْاَيْسَرِ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ دَاعِيًا فِيْهَا بِمَا شِئْتَ

واچوی او طواف دی اوه شوطه وکړه په داسې حال کې چې په اوه شوطه کې دعا کوه هغه دعا چې ستا خوښه وي یعنی تعیین د دعاء نشته او طواف

## وَطُفْ وَرَاءَ الْحَطِيْمِ

کوه د حطیم د باندې، **فائده**: حطیم مشتق د حطم نه دی په د قطع دغه تهوبټه ده چې شکل د دال لري د بیتي شریفې نه ده، د جاهلیت په وخت کې قریشو جلا کړې ده، ولې دوی هغه روپی سره جمع کړې وې په هغو روپو

مکمله کعبه پر قواعدو دابراهیمؑ نه جوړیده نود غه توته یې جلا کړو او ټوله حطیم د کعبې شریفې جزء نه دی بلکه په قدر د شپږ وگزو ده، موجود دیوال څخه د کعبې جزء د کعبې دی، په روایت د مسلم د عائشه رضی الله تعالیٰ عنها څخه،،

**پوښتنه**: نو په دې صورت کې حطیم باید مربع وای لکه کعبه شریفه نو پر دغه شکل د دال ولې دی، د رویش وائي چې په غایة البیان کې وائي چې قبرد هاجرؑ او اسمعیل علیهما السلام په حطیم کې دی آه نو زما خیال دادی چې حطیم ته چې دوینه فراخي ور کړیده، او پر شکل مذکور جوړ سوی دی په قدیم الزمان کې د پاره ده مراعات د د دوو قبرو لکن په مرور د زماني هغه دوه قبره محود سوه او د حطیم جزء و گرځېدله، وَاللّٰهُ اعلم بالصواب،،

او په حدیث شریف کې راغلی دی که چا نبرا وکړه په حطیم کې وهغه چاته چې پرده ئې ظلم کړی وو هغه به خدای د هغه ظلم پر وجه تو کړ تو کړ کړي، بجر، در، عزه **فائده**، دا قانون دی چې تجربه د دی قانون شاهد عدل دی چې هره دعا چې سړی یې په معنا پوهیږي پر هغه دعا کې حضور د زړه او هم رقت د زړه او هم عجز او انکسار ډیروی تر هغه دُعا چې سړی یې په معنا نه پوهیږي. او دا هم شرعي مسئله ده چې هیڅ الفاظ ویل بیله فهمه ده معنا ثواب نه لري، بیله الفاظ قرآنیه وو مبارکه وو، نو بناءً علیٰ هذا هر حاجی دی په ټولو شوطو کې د طواف د کعبې شریفې او یا په اشواطو کې د سعی بین الصفا والمروة پخپله مورنی ژبه دعا کوی، ولې چې هر حاجی ته خپل ضروریات او حاجات چې په دربار کې د خدای جل جلاله یو عریضه وی سه معلوم دی او دانه ده معلومه چې په عربي دعا کې به د حاجی ټوله خصوصي حاجات درسره سی او که څرنگه! لهذا مصنفؒ وویل داعیًا فیها بما شئت، او د ټولو کتابو د فقهی شریفې دغه مسئله ده،

## التفریع

بعض مناسك په پښتو او بعض په فارسی یا اردو، چې بعض ملایا نو جوړ کړی دی هغه مسائل د حج او د عمرې او د فرائضو، واجباتو، سننو او جنایاتو وغیرها چې په دغو نږ بولیکلی دی د هغه مونږ ډیره شکریه وایو. او دا یو لوی خدمت بو لو د خپل قوم او هم ژبو د پاره، لکن دوی چې وائي: د شوط اول دا د عا ده، او د شوط ثانی دا د عاده، وهکذا دا کوم لازم شئ دی





خوانده عوام داگمان کوی چې دا شوطونه بیله دغو دعاگانو نه دي صحیح نو ځکه دوی په طواف کې او په سعی کې هغه د مناسکو رسالې وختنه نیولی وي، او طواف یا سعی کوی، او په دوران کې د طواف چونکه د ده سترگې په مناسك کې دی دا حاجی په ډکه ووهی او د بل حاجی پښو ور وخیژي، حتیٰ گاهی بنځه په ډکه ووهی، او د حاجی په سترگې کې نه ور یځ دا وبکو معلومیږي، او نه ئې پر اعضاء ظاهره وو بانذی د عجز او انکسار او خشوع او خضوع علامی معلومیږي۔

**پوښتنه**: مطوفان چې د حاجیا نو د تعلیم د پاره معلما نو مقرر کړي وی هغه ټوله خوبه عربي ژبه دعا کوی **جواب** هغه د دغو دعاگانو په معنا هم پوهیږي. نو که ته ای حاجی د غسی یې چې هم په عربي الفاظو پوهیږي او ویلای ئې هم سې. او هم یې په معنا پوهیږي نو خو ډیر اعلیٰ،، او که صرف الفاظ ویلای سې، نو پخپله مورنی ژبه ټوله حاجات خپل د رب العزت په دربار کې په ټولو شوطو کې د طواف یا سعی عرضوه وبالله التوفیق،

## وَاِنْ اَرَدْتَّ اَنْ تَسْعٰی بَیْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَقَبَ الطَّوَافِ

او که ستا اراده وه چې تر طواف وروسته سعی په مابین کې د صفا او مروه وکړې نو رمل وکړه په دري

## فَارْمُلْ فِی الثَّلَاثَةِ الْاَشْوَاطِ الْاُوَّلِ وَهُوَ الْمَشْیُ

اولو شوطو کې چې اول دی، او رمل څه معنا ده تگ دی په طواف کې چابك، سره د ښور ولو د او بزو

## بِسُرْعَةٍ مَعَ هَزِّ الْكَتِفَیْنِ كَالْمُبَارِزِ یَتَبَخْتَرُ بَیْنَ الصَّفَّیْنِ

لکه یو سړي چې جنگ ته د کافرانو ورځی، نو دی په سینه فخر ایمانی په مابین کې د دوو صفو د مسلمانانو

## فَاِنْ زَحَمَهُ النَّاسُ وَقَفَ فَاِذَا وَجَدَ فُرْجَةً رَمَلَ لَا بُدَّلَهُ

او کافرانو گرځی، او که چیری د خلکو پر ازدحام کې راغلی نو دی ودریږی، هر وخت چې فرجه او لار پیدا

## مِنْهُ فَيَقِفُ حَتّٰى يُقِيْمَهُ عَلَى الْوَجْهِ الْمَسْنُوْنِ بِخِلَافِ

سوه بیا دی رمل شروع کړي اوچاره نسته تالوه د رمل څخه تاچې ته وکړي طواف پر طریقه مسنونه باندی

## اِسْتِلَامِ الْحَجَرِ الْاَسْوَدِ لِاَنَّ لَهُ بَدَلًا وَهُوَ اِسْتِقْبَالُهُ وَ

اوخلاف د مسه کولو د حجر اسود ولی د هغه د استلام د پاره دی نه دریږی، ولی چې مسه د حجر اسود بدل لري چې هغه

مخامخ ورته دریدل دی او مسه کوه ته

## تَسْتَلِمُ الْحَجَرَ كُلَّمَا مَرَرْتَ بِهِ

حجر اسود هر پلا چې ته تیریږی پر ده

یعنی کې د مسې امکان و وبیله ازاره د خلګو، او چونکې رمل بدل نه لري نو خوله مخواه به ورته دریږی

درویش وائي چې نزدې د اختر به ورځوکی به په ډیره مشکله به حاجی پر وجه مسنونه یعنی د رمل سره

به طواف کوی که څه هم ورته ودریږی چې په ساعتو ساعتو به حاجی پر ځایک تګ او نږی سنورولو

به قدرت پیدا کوی، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ: پوهیږه: چې دا رادی په قید نفل طواف خارج سو ولی ترڅو ورڅسته خو حاجی اراده د صفا او مروه د سعی نه لري،

**مسئله**: د رکن یمانی مسه کول ښه کار دی لکن په ظاهر روایت کی سُنت نه دی، او رکن

شامی او عراقی چې د حطیم پرڅوا دی نه دی مسه کوی" ط، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَيَخْتِمُ الطَّوَافَ بِهِ وَبِرَكْعَتَيْنِ فِيْ مَقَامِ اِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِ

او حاجی دی طواف ختم پر مسه کولو د حجر اسود کوی، او په دوه رکعته لمونځ کولو په مقام ابراهیم

## السَّلَامُ اَوْحَيْثُ تَيَسَّرَ مِنَ الْمَسْجِدِ ثُمَّ عَادَ فَاسْتَلَمَ

کی یعنی هغه ته نزدی، او یا هر ځای د مسجد حرام څخه چې د ده ته ممکنه او اسانه وی یعنی که پر مقام ابراهیم

## الْحَجَرَ وَهٰذَا طَوَافُ الْقُدُوْمِ وَهُوَ سُنَّةٌ لِلْاٰفَاقِیِّ

ازدحام وو او بیله دوه رکعته لمانځه دی بیرته راسی حجر اسود ته او مسه دی کړي یعنی پالاسونه





دی ورته پورته کړي که ازدحام وو، او دی طواف ته طواف قدوم وائی، او دا طواف سنت دی هغه چا

ته چې د اطرافو څخه راغلی وی یعنی د مکی سړي ته سنت نه دی **فائده**: مقام ابراهیم

په قول د طحطاوی د هغې ډبرې نوم دی چې ابراهیم علیه السلام به کاهی کاهی د هاجره او د ده

زوی اسمٰعیل علیه السلام وملاقات ته راتی چې ده په امر د ساره چې د ده بله بی بی وه د امور او زوی

په خالی شیله کی د مکی چې هلته نه انسان وو او نه او به وی پری ایښی وو او بیا په هغه ځای کی خدای

د زمزم څا پیدا کړي او نوی خلګ هم دلته اباد سوه نو چې دی پر اوښ سپور راغلی پر دغه ډبرې بی پښه

کښیښوول راتا به سو، او چې سپریدی به هم به ئی پر دغه ډبره پښه ایښووله او سپریدی به"

نو قدرتی د ده مبارک قدمونه په هغه ډبره کی پیدا سوه او اوس هم سته، او بعض فقهاء وائی

چې مقام ابراهیم هغه ډبره ده چې ابراهیم او اسمٰعیل علیهما السلام خدای جل جلاله امر کړه

چې زما د عبادت د پاره هغه ځای ته چې جبرئیل ع و رښوولی وو یوه خونه جوړه کړه، نو دوی

چې په بناء د کعبې مبارکی لاس پوری کړي نو تر هغه وخته پوری چې د دوی لاسونه دیواله ته رسیده

خو ډبری او خښتی به ئی پر ایښوولی، او هرګاه چې دیوالونه لوړ سوه او د دوی لاسونه ور رسیدله

نو خدائ دی امر کړي چې پر دغه ډبره ډبری یا خښتی در سره اخله دا ډبره په قدرت د خدائ

پورته کیږی تر څو چې ته هغه ډبری او خښتی پر دیواله د کعبې شریفې ایږدی او بیرته به کرار کرار

راکښته کیږی وهکذا څو چې دیوالونه د کعبې شریفې پوره کیږی نو په د غه ډبره کی پردی تقدیر

هم نښانه د قدمونو د ابراهیم پیدا سوه او اوس هم سته،

**فائده**: بیت الله شریفه د ادم علیه السلام تر نزول مخکی ته د مخه ملائکه وو

جوړه کړې وه، قَالَ اللّٰهُ: اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِيْ بِبَكَّةَ" الآيه: بیا په طوفان

نوح علیه السلام کی خرابه سوه او تر خاورو لاندی سوه، او بعض وائی چې اسما نو ته نقل سوه

خو په هر صورت په نوی بناء سره د بیت الله شریفی خدای پاک ابراهیم او د دوی زوی اسمٰعیل

علیهما السلام مامور کړه هغه چې بیت الله از سرنو تعمیر سوه **فائده**: د تواریخو

اسلامیه وو په کتابو کی وائی چې د کعبه شریفې موجوده بناء چې حجاج بن یوسف کړیده،

۱۵ ځلمه بناء ده،

**فَـائِدَه** مقام ابراهیم په قدیمه زمانه کې په کعبه شریفه پورې متصل پروت وو د دروازې وراسته طرفته: قَالَ اللهُ تَعَالىٰ: وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى، نوځه وخت چې طائفین ډیریدل اومصلین اودوی ته سره ځائیدل نو بیه مقام ابراهیم د طواف د ځای څخه یواندازه گوښه دهندا روپه ښیښه کې کیښنو. ددرو لیش داولو څجوپه وخت کې هم مقام ابراهیم ترمطاف دباندی وو» نوچا چې به طواف وکړی نو د مقام ابراهیم سره به ئې دوه رکعته د طواف ادا کړه رفته رفته چې حاجیان ډیریدل اومطاف تنگیدی نومقام په مطاف گډ کړی، حتی چې هم اوس مقام ابراهیم تخمینا په مابین کې د مطاف دی»

## جاہل عوام:

چې دایه اوریدلی دی چې دوه رکعته د طواف د مقام ابراهیم سره اداکیږی، نو په عین مطاف کې پرلوڅخو ولاړوی چې طائفین یه ترښا اومخ نیریږی، اوگاهی چې دوی پرسجده پراته وی د طائف فکرته وی پرسرئې پښه ورکښیږدی، اوگاهی خوک سره ملگړی وی اوترلا سونې سره نیولی وی پرلوڅخو کونکو پیره کوی اود طائفانو څخه یه ساتی، داددوی ناپوهی ده، ولې دوه رکعته لمونځ د طواف په ټول حرم شریف کې روادی، دادعوامو پر موجوده نقشه د غسی لمونځ مکروه دی، بلکه په بحر رائق کې وائی چې په حرم شریف کې صرف دغه لمونځ افضل دی کی پرا طاق کې وکړی هم روادی ترهغو چې په بل طواف د شروع اراده نه لری اوکې بل طواف ته اراده وه نو داول طواف لمونځ علی الفور لازم دی، اوکه بل طواف به نه کاوه چې وطن ته ولاړیهی هم دغه دوه رکعته کولای شی ولې چې داواجب علی التراخی دی،

**فَـائِـدَه**: د غه اول طواف ته ځکه چې طواف قدوم وائی طواف التحیه اوطواف اللقاء او طواف اول العهد یه هم بولی کذافی العنایه **فَـائِـدَه**: وروسته تردوه رکعته د طواف هغه دعاء چې آدم علی نبینا وعلیه الصلوٰة والسلام څخه منقوله ده ډیره زیبا اوجامع اوپه زړه پورې دعاده، اوهغه داده، اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ تَعْلَمُ سِرِّيْ وَعَلَانِيَتِيْ فَاقْبَلْ مَعْذِرَتِيْ» خدایه ته خبرئې زما په پټ حال اوپه ښکاره حال ته قبول کې زما عذر یعنې چې دگناهو په باره کې سوال د مغفرت دی، وَتَعْلَمُ حَاجَتِيْ فَاعْطِنِيْ» اوته خبریې زما په حاجت نوته زما حاجت راپوره کې





چې خیر د دنیا اواخرت دی، اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ اِيْمَانًا يُّبَاشِرُ قَلْبِيْ» خدایه زه ستا څخه سوال کوم د داسی ایمان چې گډ وی د زړه سره زما یعنې نوع د نفاق نوی پکښی، وَيَقِيْنًا صَادِقًا حَتّٰى اَعْلَمُ اَنَّهٗ لَا يُصِيْبُنِيْ اِلَّا مَا كَتَبْتَ عَلَيَّ، اوزه ستا څخه غواړم د رشتیا گونقین ستا پرکار و چې هغه نو دادی حتی چې زه پوه شم پر دی سره چې ماته نه رسیږی یعنې د مصائبو څخه مگر هغه څه چې تا په ازلی قلم پرما لیکلی وی، یعنی د هغو څخه د خلاصون لاره نشته په هیڅ حیله، وَالرِّضَاءُ بِمَا قَسَمْتَ قَدْ غَفَرْتُ لَكَ» اوخدایه زه د تا څخه رضا غواړم په هغه څه چې تا زما په قسمت کې لیکلی وی، په حدیث شریف کې راغلی دی چې خدای پاك آدم علیه السلام ته وحی راواستوله: ماوبخښلی عمومی بخښه می کړیده وتا ته، اوهیڅ خوك ستا داولادی څخه به ماته دا رخواست ونه کړی په مثل ستا د درخواست مگرنه زه به بخښم گناهونه د ده هغه، او به دستی ورکوم هغه شی چې د دستی چار وڅخه وی، اوداچې دنیا به وده ته داسی کړم چې دد ده به سپیره وی لیعنی، مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ، چې دده به گمان نه وی، که څه هم دده اراده وهغه دنیا ئې شی ته نه وی، عن. در، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## ثُمَّ تَخْرُجُ اِلَى الصَّفَا فَتَقْعُدُ وَتَقُوْمُ عَلَيْهَا حَتّٰى تَرَى الْبَيْتَ

بیابه نوته ووځی د حرم شریف څخه د صفا وغره ته یعنی پر باب الصفا باندی اووځی، پورته به سی اووه

## فَتَسْتَقْبِلُهٗ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا دَاعِيًا وَتَرْفَعُ

به دریږی پر صفا ترڅو چې ته وینی بیت الله نو به مخامخ ودریږی وهغی ته په داسی حال کې چې الله اکبر به وائی، اولا اله الا الله به وائی او تلبیه به وائی

**يَدَيْكَ مَبْسُوْطَتَيْنِ** اودرود به وائی اودعا به کوی یعنی هرڅه چې دی خوښه وی، اولاسونه به هم دواړه پورته کوی سره خلاص، **پُـوه سه** چې ما په بار بار ویلی دی چې دُعَاء پخپل مورنی ژبه کول ډیرحضور د زړه راولی خو بیا هم زیلعی په شرح کې د کنز داجامع عربی دعار اوړی ده: لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِيْ

وَيُمِيْتُ وَهُوَحَيٌّ لَا يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَعَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَانَعْبُدُ اِلَّا اِيَّاهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنُ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ» درېم واره درويش وائي چې دغه كلمات كه څه پرې بنو كلمات دي، لكن عبارت د مصنف ډېر جامع دى ولې چې مصنف اَللّٰهُ اَكْبَرُ ووايه اوده تلبيه ويل او درود ويل، او بيا د حاجت خپل غوښتنه هم زياته كړېده، نو كه د دغو كلماتو سره د مصنف د عبارت هم مراعات وسي ډېره به ښه وي لكن دا زدحام په وخت كې دونه اوږدى ولاړې ته او دعا وو ته به خلګ سرى نه پرېږدي، كما يدل عليه التجربة فى هذا الزمان

## ثُمَّ يَهْبِطُ نَحْوَ الْمَرْوَةِ عَلٰى هِيْنَةٍ فَاِذَا وَصَلَ بَطْنَ الْوَادِيْ

بيا له صفا نه حاجي دى د دغه غره نه كښته سي و طرفته د مروه د غره، په سكون او اطمنان

## سَعٰى بَيْنَ الْمِيْلَيْنِ الْاَخْضَرَيْنِ سَعْيًا حَثِيْثًا فَاِذَا تَجَاوَزَ

سره نو چې دى ور سيرى نس دهغه شيلى ته بيا دي ځغلي په ما بين كې دهغو دوو ميلانو چې په

## بَطْنَ الْوَادِيْ مَشٰى عَلٰى هِيْنَةٍ

رنګ زرغونه دى سعيًا يعنى تګ چابك حتى تر هغه شيلى چې تېر سي نو بيا دى معتاد تګ په سكون او اطمنان سره كوي» درويش وائي چې په اولو كلوكې چې مونږ چه تللو تيا په دغه ځاى كې د دغو دوو ميلانو تر ما بين شيله وه چې په هغې كې به شګې وي او ډېره كښته وه. او اوس خو نه شيله سته او نه شګى او نه ځوړ والى صرف د غه دوه ميله پر دواړو طرفو يه په زرغونه رنګ وهلى دي چې حاجيان هلته چابك چابك ځي و بس، قال المصنف:

## حَتّٰى يَاْتِيَ الْمَرْوَةَ فَيَصْعَدُ عَلَيْهَا وَيَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ عَلٰى

حتى چې ورځي د مروة غره ته نو پر هغه دى ور پورته سي او هوري دى هم هغه كارونه وكړي

## الصَّفَا يَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا

لكه پر صفا چې كړي وه مخامخ و بيت الله شريفى ته دى ودرېږي، اللّٰه اكبر دى ووائي





لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دى ووائي تلبيه دى ووائي درود دى ووائي د مادى كوي لاسونه دى خلاص نيولي وي و طرف ته د اسمان او دا نو يو شوط سو، **فَائِدَه**: مصنف چې دغه عبارت اول ووايه و يَفْعَلُ آه نو دغه وروسته ء. بيرته ته يَسْتَقْبِلُ آه ضرورت نه وو خو تهوله په صفاء كى تېر سوه اَللّٰهُمَّ الاان يقال اوردها لمزيد التوضيح وللمبالغة فى بيان افعال الحج»

**دَقِيقَه**، مصنف د صفا په وقوف كى داسى وويله حتى تَرَى البيت آه او د مروه په وقوف كى هغه عبارت نه راوړى صرف دايه وويله: يستقبل البيت ولې چې د مروه څخه بيت الله شريف نه معلومېږى، چې په ما بين كى بناوې دى نو صرف وجهت ته د كعبى دى مخامخ سي كى څه هم نه وينى، **مَسْئَلَه** پر دى مسئلى كى چې د صفا څخه تر مروه پورى يو شوط دى دا زمونږ د ټولو حنيفيانو مذهب دى مګر فقيه ابو جعفر الطحاويؒ وائي چې د مروه څخه چې بيرته صفا ته راسى نو يو شوط دى، نو ۱۴ څوارلس واره سعى غواړى د فقيه مذكور دليل او د هغه جواب په بحر الرائق او عنايه كى مطالعه كړي، قال المصنف:

## ثُمَّ يَعُوْدُ قَاصِدًا الصَّفَا فَاِذَا وَصَلَ اِلَى الْمِيْلَيْنِ الْاَخْضَرَيْنِ

او بيا دى راوګرځى د مروه څخه په قصد د صفا او هر وخت چې ور سيرى ميلينو اخضرينو ته نو دى

## سَعٰى ثُمَّ مَشٰى عَلٰى هِيْنَةٍ حَتّٰى يَاْتِيَ الصَّفَا وَيَفْعَلُ

بيا دى چابك سي، چې تر هغو تېر سى، بيا دى نو د معادى تګ كوي، حتى چې صفا ته ور سيدى

## كَمَا فَعَلَ اَوَّلًا وَهٰذَا شَوْطٌ ثَانٍ فَيَطُوْفُ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ

بيا دى نو پر صفا هغه كارونه وكړي چې اول واريه كړي وه، او دا دوهم شوط سو، يعنى خلافًا لابي جعفر الطحاويؒ ولې چې هغه وائي چې صفاته چې بيرته راځلى نو يو شوط پوره سو كما مر انفا

## يَبْدَأُ بِالصَّفَا وَيَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ وَيَسْعٰى فِيْ بَطْنِ الْوَادِيْ

نو اوه شوطه ته پر دغه ډول پوره كړي،

**فِي كُلِّ شَوْطٍ مِنْهَا** حتیٰ چې شروع د طواف د صفا څخه کیږي اوختم يې پر مروه کیږي، اوچابک تګ به کوي په ټولو کې د شپږو په هرشوط کې، په بحر الرائق کې وائي چې چابک والی په شپږو کې په هرشوط کې سنت خودی لکن په ترک سره یې شی لیعنی دم یا صدقه نه لازمیږي آه قـال المصنفؒ :

**ثُمَّ يُقِيمُ بِمَكَّةَ مُحْرِمًا وَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ كُلَّمَا بَدَا لَهُ وَهُوَ**

بیا دی نواوسیږي چې حاجي وي په مکه مکرمه کی احرام بنده اوطواف د بیت الله دی کوي هروخت

**أَفْضَلُ مِنَ الصَّلٰوةِ نَفْلًا لِلْآفَاقِي** چې دده خوښه وي اوطواف نفلی افضل دی تر نفلی لمانځه اطراف سړي لره، ولې چې نفلی لمونځونه خودی په وطن کی هم کولای سی چې زړه يې غواړي هغونه قدر او د طواف خو اخو محدودی شپې اوورځې دي، قـال المصنفؒ :

**فَإِذَا صَلَّى الْفَجْرَ بِمَكَّةَ ثَامِنَ ذِي الْحِجَّةِ تَأَهَّبَ لِلْخُرُوجِ**

نوبيا چې ده لمونځ وکړي د سحار د اتمې ورځې دلوی اختر د میاشتی نوځان دی اراسته کړي ووتو ته

**إِلَى مِنًى فَيَخْرُجُ مِنْهَا بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَيُسْتَحَبُّ**

د منیٰ نودی ووزی د مکی څخه لپاره اختلود لمر، اومستحبه داده چې د ماپښین لمونځ دی په منیٰ

**أَنْ يُصَلِّيَ الظُّهْرَ بِمِنًى وَلَا يَتْرُكُ التَّلْبِيَةَ فِي أَحْوَالِهِ**

کی وکړي. او تلبیه دی نه پریږدی په هیڅ وخت دوختوکی مګر نه په طواف کی بوه سه

**كُلِّهَا إِلَّا فِي الطَّوَافِ** چې منیٰ په پخوا زمانه کی دیوی قریې نوم وو چې د ری کوڅې په کښې وي، او په اوسنی زمانه کی بند بناشته بنارډی اومنیٰ په حرم کی داخله ده، بحر د ر،





قـال المصنفؒ **وَيَمْكُثُ بِمِنًى إِلَى أَنْ يُصَلِّيَ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ وَيَنْزِلُ**

او حاجي دی دړنګ کوي په منیٰ کی ترهغو چې د نهم د ورځې د سحار لمونځ دی په تاریکه کی وکړي او

**بِقُرْبِ مَسْجِدِ الْخَيْفِ** دده نزول باید قریب و مسجد خیف ته وي چې هغه په اوسنی زمانه کی ډیر یو بناشته مسجد دئ، او په پخوا زمانه کی زما پیاد دی صرف د قبلی پرخوا خوب رنډی وی اوپه نور میدان کی د مسجد نښکی اواري وي، وبس، قـال المصنفؒ :

**ثُمَّ بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ يَذْهَبُ إِلَى عَرَفَاتٍ فَيُقِيمُ بِهَا**

نوروسته تر راختود لمر لیعنی د نهمی ورځی ولاړسی د عرفات پرخوا چې هلته ورسیدی نودی اوری (هلته) اوسیږي، عرفات ته عرفه هم وائی چې نوم دی د ډیر فراخه مبارك میدان چې په اوسنی زمانه کی چې تعداد د حاجیانو ګاهي و شل (۲)، لکه نه ورسیږي داټول حاجیان بې ازدحامه پر هغه مبارك میدان ځائیږی، قـال المصنفؒ :

**فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ يَأْتِي مَسْجِدَ نَمِرَةَ** نوچې لمر زوال وکړي نودی حاجی ورسی ومسجد نمره ته چې پر عرفات دیو مسجد نوم دی، **فـائده**: چونکه په اوسنی زمانه کی حاجیان په لکودی اوپه مسجد نمره کی یې امکان د ځائیدو نشته، نوکه څوك په خیموکی لمونځونه وکړي کوم حرج نه وي ان شاء الله تعالیٰ:

**فَيُصَلِّي مَعَ الْإِمَامِ الْأَعْظَمِ أَوْ نَائِبِهِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ**

نوچې مسجد نمری ته ورغلی نودی لمونځ دی وکړي سره دلوی امامه چې د بیت الله شریفی امام دی یا د نائب

**بَعْدَ مَا يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا وَيُصَلِّي الْفَرْضَيْنِ**

سره د هغه حتیٰ چې شروع د طواف د صفا څخه کیږي اوختم يې پر مروه کیږي، اوچابک تګ به کوي

دماپښین لمونځ او دماز دیګر لمونځ یعنی په وخت کی دماپښین پسله دی چی امام دوی خطبی ووائې چی په مابین کی جلسه هم وکړي، یعنی لکه دجمعې د لمانځه په یو اذان دوه اقامته سره،
**فائده** په بحرالرائق کی وائې چی مصنفؒ چی دماز دیګر لمونځ ذکر کړی پس دماپښین د لمانځه څخه اشاره په ودی وکړه چی ۲ دوه رکعته سنت چی دماپښین تر لمانځه وروسته دی هغه دی په مابین کی نه کوی او کول ئې مکروه دي، نو نفل خو په طریق اولیٰ مکروه دی کما سیأتی ه

**سنهانه فائده** چونکه امام د حرم شریف په مذهب وهابی دی او دوی په نزد تر عرفاتہ هم مسافر نه ګڼل کیږي، نو ځکه دی دماپښین دوه رکعته سفریانه کوی او دماز دیګر لمونځ هم دوه رکعته، او زمونږ د حنفیانو په نیز سړی هلته مسافر بلل کیږي چی درې ۳ ورځو او شپو دپاره د کور ووزی، نو په دی سبب زمونږ اقتداء په دغه ئې نده صحیح، ولی چی د امام لمونځ زمونږ په عقیده فاسد دی، ولی چی مونږ دی مقیم بولو او دی دوه رکعته کوی، **پوښتنه** بعض خلک بلکه بعض ملایان وائې چی د سعودی حکومت دپاره د مراعات د نورو مذهبو امام مکه په ورځ د عرفات د سحار طائف ته بوزی چی د مسافت د سفر عند الکل ده، او د هغی خوا څخه په عرفات ته راولي، چی دی مسافر وګرځی او لمونځ په دوه رکعته بالاتفاق وګرځي، نو بیا ولی زمونږ لمونځ نه دی ئې روا! **جواب** وهابیان خپل مذهب بولی او په مراعات کی د مذهبو هم پرځیږي دی نو ګمان نه کوم چی دوی به داسی کوی، او چا د حکومت د خوا څخه هم داسی ګواهی بالمشافهه نه ده ورکړی، نو بیا به داوی چی زمونږ حاجیان دی دماپښین لمونځ سره د سنتو په جماعت د ماپښین په خپل وخت کی اداء کړی او بیا دی دماز دیګر لمونځ دماز دیګر په وخت کی وکړی، قال المصنفؒ

**وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا اِلَّا بِشَرْطَيْنِ اَلْاِحْرَامُ وَالْاِمَامُ الْاَعْظَمُ**

او جمع نده روا په مابین کی د دغو دوو لمونځو مګر په دوه شرطه سره یو به سړی محرم وی او

**فَلَا يَفْصِلُ بَيْنَ الصَّلوتَيْنِ** بل به ئې لمونځ په امام اعظم پسې وی نو بې احرام سړي جمع د لمونځو نه سی کولای





او که په امام اعظم پسې نه وو ولاړ کړځه لمونځ په جماعت کوی مثلاً په خیمو کی هغه ته هم جمع نه ده روا، او جلا والی دی نه کوی په مابین کی د دغو دوو لمونځو په نفلو سره.
**پوښتنه**: چی مراد د نفلو څخه زائد تر فرضو دی چی معنا عامه د نفلو ده نو راتبه سنت بعدی دماپښین دی هم نه کوی کما مر" در، قال المصنفؒ:

**وَاِنْ لَّمْ يُدْرِكِ الْاِمَامُ الْاَعْظَمُ صَلّٰى كُلَّ وَاحِدٍ فِيْ وَقْتِهَا الْمُعْتَادِ** او که سړی ونه رسیدی و امام اعظم ته یا سهواً یا قصداً، نو دی هغه سړی اداء کړی هر یو د دغو دوو لمونځو څخه په معتاد وخت د ماپښین او ماز دیګر کی یعنی کی یوائې کاوه او کی په جماعت کاوه، قال المصنفؒ:

**فَاِذَا صَلّٰى مَعَ الْاِمَامِ يَتَوَجَّهُ اِلَى الْمَوْقِفِ وَعَرَفَاتٌ**

نو چی سړی لمونځ وکړی سره د امام نو منځ دی کی د موقف خواته، او عرفات ټول ځای د دریدو دی

**كُلُّهَا مَوْقِفٌ اِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ** مګر نس د عرنه شیلی، **پوښتنه** چی عرنه وغربي طرفته د مسجد نمره ده حتی چی هم دا اوس عرنه و جانب غربي ته د مسجد نمره ور ضم سوی دی، **فائده**: باجی دابن حبیب څخه روایت کوی چی عرفات ټول د حل محکه ده، مګر عرنه په حرم کی داخله ده والله اعلم

قال المصنفؒ **وَيَغْتَسِلُ بَعْدَ الزَّوَالِ فِيْ عَرَفَاتٍ لِلْوُقُوْفِ**

او غسل دی وکړی وروسته تر زوال په عرفات کی دپاره د وقوف د عرفات

**وَيَقِفُ بِقُرْبِ جَبَلِ الرَّحْمَةِ مُسْتَقْبِلًا مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا مُلَبِّيًا**

او ودی دریږي قریب و جبل رحمت ته مخامخ و قبلی ته په داسی حال کی چی الله اکبر به وائې

**دَاعِيًا مَادًّا يَدَيْهِ** او لا اله الا الله به وائې او تلبیه به وائې او دعا به کوی دواړه لاسونه به ئې اوږده نیولی وي،

**پوه سه**: چې جبل رحمت د يوه کښتنی غره نوم دی په مابين کې دعرفات، قال المصنفؒ

## كَالْمُسْتَطِيعِ وَيَجْتَهِدُ فِى الدُّعَاءِ لِنَفْسِهِ وَوَالِدَيْهِ وَ

لکه بوسرېچې دَچاڅخه څه وي غوارې اوکوشش دې کوي په دعاکی دپاره دځان يعنې که اخروي شې غواړي

## اِخْوَانِهِ وَيَجْتَهِدُ عَلٰى اَنْ يَخْرُجَ مِنْ عَيْنَيْهِ قَطَرَاتٌ

اوکه دنيوي شې غواړي، اودغه رنگه دې دعا کوي دمور اوپلار دپاره يعنې خصوصًا چې دوي مړه وي اودپاره

## مِنَ الدُّمُوعِ فَاِنَّهُ دَلِيلُ الْقُبُولِ

دوروڼو دې هم دعا کوي، يعنې که نسبي وروڼه وي اوکه ديني ورونه وي چې ټيتوله مسلمانان دی، دروښش وائي چې علاوه پرمور اوپلار، تهولو اقربا ؤته اجمالًا يا تفصيلًا دعا کوی اودغه رنگه هغه کسانوته چې په وخت کی د رخصت وحاجی ته به وصيت کړي وی چې ماته پرعرفات دعا وکړه، نوکه تفصيلًا نه وي ممکنه اجمالًا دعا خودې ورته وکړي، اوحاجی دی کوښش کوی چې يوڅاڅکی داوښکو تردواړو سترگونوی کړي، ولی ذغه اوښکي د ليل د قبليدو د دعادی، قـال المصنفؒ:

## وَيُلِحُّ فِى الدُّعَاءِ مَعَ قُوَّةِ رَجَاءِ الْاِجَابَةِ وَلَا يُقَصِّرُ فِىْ

اوډيرې ټينګيږې وعذاتي ته په دعاکی يعنې په بارهاردی درخواست ورته کوی، سره دکلکې عقيدې

## هٰذَا الْيَوْمِ اِذْ لَا يُمْكِنُهُ تَدَارُكُهُ سِيَّمَا اِذَا كَانَ مِنَ الْاٰفَاقِ

د قبليدو، اوحاجی به په دغه ورځ کی کوتاهی نه کوی په دعا گانوکی، ولی چې د دې ورځې پيداکول بيا ممکن نه دی، اوخصوصًا هغه کسان چې داطرافوڅخه د عالمراغلی وي، ولی ډيرافاقيان په ټول عمرکی يوحج نصيبوي ددی سببه چې مرگ نه دی معلوم اودوهم وارحج قدرت هم نه دی معلوم،

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه كتبه احقر فضل الحق حقانی بقلمه ۲۵-۷-۱۴۲۳ھ





## وَالْوُقُوفُ عَلَى الرَّاحِلَةِ اَفْضَلُ وَالْقَائِمُ عَلَى الْاَرْضِ اَفْضَلُ

اودريدل په دغه ځای کی پراوښ وغيره سپور افضل دی، لان رسول الله صلی

## مِنَ الْقَاعِدِ

الله عليه وسلم كان راكبًا على النّاقة في هذا الوقت، اوبيا چې ولاړ وی پرمځکه افضل دی ترناست سړی **پوه سه**: چې په اوسني وخت کی وقوف على الراحلة کالعدم دی کما يدل عليه التجربة که څه هم بعض اعرابو دی ورځې دپاره ډيرښائسته کړي اوښان درولی وي، دپاره داجرت لکن په سبب د ډيروالی داجرت ډيرکسان نه پرسپريږی اوکه پر سپاره هم سی نو د سيل اود ميلی دپاره وی نه دپاره د دعا اوعجز اوانکسار، قـال المصنفؒ:

## فَاِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ اَفَاضَ الْاِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ عَلٰى هِينَتِهِمْ

نوچې لمرولويدی نودی راناسی امام اوخلگ دی ورسره وی په سکون اواطمنان ســره،

**فـائـده**: په اوسني وخت کی حاجيان په لکوپر عرفات جمع وي، نوهغوته دامام حال معلوميږی نوصرف په علامه دلمرلويدو خلگ پوهيږی چې دافاضی وخت دی،، اوداهم يادلره چې که حاجی ترغروب دلمرهلته ولاړوی بيا به ترمزدلفی پوری په مشکله موټرپيداکوي ولې چې دمعلمانو بسان دمازدیگرد لمانځه په وخت کی بيا ډک سی بيا نه په مابين کی اونه پرسرځای پيداکيږی، اودکرائی ټيکسيان ډيراجرت غواړي نوسړي مجبوردی چې پرپښو به مزدلفی ته ځي اودادري ميله لاره ده د ښځو اوسپين ږيرو اودناروغو کسانو دپاره لوی حرج دی، اوبل دا چې دعرفات د ډگرڅخه بيخي ډير سرکان وتلی دی نوناولده حاجی نه پوهيږی چې کوم سړک دمزدلفی دی سرگردان گرځي، **نواسانه کاره ادی** چې حاجی که په امام اعظم ټيپی دواړه لمونځونه يوځای کړي وه خو ډيراعلی اوکی دماپښين لمونځ په خيمه کی وکړي نودهغه لمانځه وروسته دی په وقوف اودعا گانوشروع وکړي، اوبيا وروسته دی دمازدیگر لمونځ دی په اول وخت کی وکړي، اوبيا دی دعا وی، تکبيرونه، کلمه طيبه، تلبيه، ډيره ډيره وائي، اوچې لمرلا نبه لوی ولاړ وي د معلمانو په موټرانوکی چې ددوی دخيمو مخ ته ولاړوي اوحاجيان په کښی

سپریږي دي ډېرې ځای په کښې ونیسي، او هلته په موټر کې دي هم خپلو دعاګانو ته ادامه ورکړي
یوخود مزدلفې د لارې د پښو د تګه او سرګرداني څخه خلاص سو، او بل

## دوې فائدې

افضلیت د وقوف علی الدابة هم لاس ته ورغلی ولې چې موټران
په عصرحاضر کې لکه او ښان د عصر قدیم دي، **سوال**: په دې موټرانو کې چې سرې دوه
وختی سپاره سي نو خوځي د عرفات څخه قبل غروب الشمس و باسي، او خروج قبل الغروب خو مکروه
دی **جواب**: موټران په دغه ورځ پر عرفات په زرګونو دي، او دټولو لارې بنځي مشکله
وي حتی چې دومره وختي هم سپاره سي نو که د ماخستن د وخت تر د اخلیدو پورې د عرفاته ووزي
ډېر به ښه ولاړه وي

**فائده**، دا ټوله ماجرا د ښځو او د سپین ږیرو او ناجوړو او نا ولده خلګو د پاره د روښن
ذکر کړې ورنه چې سرې کوار کرار پر پښو روان وي او د غروب سره د لمرځان د عرفاته و باسي یا شه
وروسته او بیا چونکه ډېر قوي خلګ د مزدلفې پر لار روان دي هم په هغو پسې روان وي که څه هم
ستړي سي خو ثواب به یې ډېر وي، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَاِذَا وَجَدَ فُرْجَةً يُسْرِعُ مِنْ غَيْرِ اَنْ يُّؤْذِيَ اَحَدًا وَ

یا خو چې حاجي کې سپور وي او که پیاده بیدا کړي خلاصه نو دي چابک چابک په کښې روان سي، بیله

## يَحْتَرِزُ عَمَّا يَفْعَلُهُ الْجَهَلَةُ مِنَ الْاِشْتِدَادِ فِي السَّيْرِ

دې چې اړ وړ وي په ډکو وهلو سره و یو ځای ته، او حاجي دې پرهېز کوي د هغه کار څخه چې جاهلان

## وَالْاِزْدِحَامِ وَالْاِيْذَاءِ فَاِنَّهُ حَرَامٌ

ئې کوي چې ډېر سخت ځغلي او د خلګو سره ازدحام کوي او خلګ
پر یو بل وهلو سره او په ډکو وهلو سره آزاروي ولې ورته فعل خو حرام دی، قَالَ المُصَنِّفُ

## حَتّٰى يَاْتِيَ مُزْدَلِفَةَ فَيَنْزِلُ بِقُرْبِ جَبَلِ قُزَحٍ وَيَرْتَفِعُ

او د عرفات دی را روان وي خو چې راشي مزدلفې ته نو دي واړه وي نژدې وغره ته چې





## عَنْ بَطْنِ الْوَادِيْ تَوْسِعَةً لِلْمَارِّيْنَ

چې د قزح په نامه یاد یږي او پورته دې واوړي ترنس د شیلې تا چې فراخي راسي پر خلګو چې په شیله کې تیریږي،
**پوهه سه**: چې د عرفات پای او د مزدلفې سر دی او نا ولده سړي په دې نه پوهیږي چې عرفات
څېري خلاص سوه او مزدلفه د کومه ځای څخه شروع کیږي، لکن د سعودي حکومت یو ډېر
ښه کار کړی دی چې غټې لوحې یې نوشته کړي پر لګولو یې ځړولې دي مثلاً دا سې پرنوشته
وي» منتهى العرفة، و مبدء المزدلفة، وهكذا بين المزدلفة ومنى، وبين الحرم ومنى، نو
حاجي د دغو لوحو څخه زده کړه کوي، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَيُصَلِّيْ بِهَا الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِاَذَانٍ وَاحِدٍ وَاِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ

او اداء دې کې په مزدلفه کې د ماښام او ماخوستن لمونځ په یوه اذان سره او په یوه اقامت سره
یعنی د اول لمانځه د پاره **پوهه سه**: چې دا جمع تاخیر بولي او د ماښام په لمانځه کې به د
قضائي نیت نه کوي ولې چې په دغه شپه کې د ماښام او د ماخستن وخت یو دی، او نه په مابین کې
د دوو دغو لمونځو تطوع وکړه، یعنی که څه هم سنت مؤکده د ماښام وي پر صحیح روایت، او یا په یو بل
کار مشغول سو نو د دوهم لمانځه د پاره دې بل اقامت وکړي ، بحر، قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَلَمْ تَجُزِ الْمَغْرِبُ فِيْ طَرِيْقِ الْمُزْدَلِفَةِ وَعَلَيْهِ اِعَادَتُهَا مَا لَمْ

## يَطْلُعِ الْفَجْرُ

او نه دی روا د ماښام لمونځ په لاره کې د مزدلفې یعنی د مخه تر رسیدو و مزدلفې
ته نو د ماښام لمونځ چې نه دی روا د ماخستن په طریق اولی نه دی روا
که اله هم وخت داخلي وي، ولې چې اول د دغه وخت د ماښام دی، بحر در، او پر ده به اعاده لازمه
ده چې سپیده نوې یې را چاوده لی،

## وَيُسَنُّ الْمَبِيْتُ بِالْمُزْدَلِفَةِ

او سنت دی شپه تیرول په مزدلفه کې **فائده** حاجي باید پوه سي چې په دغه شپه کې شرافت

د زمانې چې لوی اختر شپه ده دوا په سره جمع دي نو باید ټوله شپه په عبادت تیره کړي كذا في البحر قـــــال المصنفُ:

**فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ**

نو کله چې سپيده راوچاودي، نو امام دې خلګو ته دی سهار لمونځ ورکړي په تاریکۍ کې او بیا

**ثُمَّ يَقِفُ وَالنَّاسُ مَعَهُ** دې ودریږي او خلګ به ورسره وي، درویش وائي چې دا په زمانه د مخه داغسې موضوع بره چې حاجیانو به ټولو په امام اعظم پسې لمونځ وکړي او بیا به د امام سره د یاره د دعاء ودریدل اما په اوسني زمانه کې چې حاجیان په لکو دی، نه ورته حاجیانو ته د امام د لمانځه ځای ورمعلوم وي، او نه د ټولو د سره جماعت کول او وقوف ممکن دی. نو خلګ او حاجیان په موجوده زمانه کې په سوو ځایونه یو ملا پیدا کړي، او هغه اذان وکړي او بیا په سوو ځایونه بلکه یو بل ته نژدې ځایوکې جماعتونه د سهار د لمانځه کوي بلکه بعض حاجیان یوا ځې لمونځ وکړي، او ورسته بیا چې په انفرادي یا اجتماعي توګه دعاګانې کوي، کتابونه د فقهي شریفي ټوله مبني بر قدیم اصطلاح دي چې حاجیان په سوو وه حتی چې د درویش په اولو اولو حج د غسې امکانات موجود وه او په اوسني کلو چې درویش حج ته ورلاړی هغه امکانات ټوله د ما بینه تللي وه، قَالَ

**وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ مُحَسِّرٍ** او مزدلفه ټوله ځای د دریدو دی مګر نس د وادي محسر، درویش وائي چې ما په اول کې هغه شیله لیدلې وه، چې د جبل قزح مخ ځي په سرې راکښته سوې ستې وادي محسر وه چې میده ریګ په کښې وو **پوه سه** چې صاحب البحر وائي چې وادي محسر د. فاصل دی د مِنى او مزدلفې تر ما بین ده او په یوه کې د مِنى او مزدلفې حساب نه ده . او ۵۴۰ ګزه ده . *وجه التسمية* چې اصحاب الفيل چې پر مکه شریفه حمله د یمن نه راکوله د مخه تر ولادت د علیه الصلوٰة والسلام هغه فیلان هم په دغه وادي محسرکې د کار ولویده او پر مخ تګ یه نسوای کولای چې قرآني قصه ده،





**وَيَقِفُ مُجْتَهِدًا فِي دُعَائِهِ وَيَدْعُوا اللهَ أَنْ يُتِمَّ مُرَادَهُ**

او ودې دریږي یعنی امام هر حاجي کوښښ کونکې دې وي په دعا کې، او د خدای جل جلاله څخه دې

**وَسُؤَالَهُ فِي هٰذَا الْمَوْقِفِ كَمَا أَتَمَّهَا لِسَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى**

درخواست وکړي چې زما مراد او سوال ا پوره کړه په دې موقف کې د مزدلفې لکه تا چې پوره کړي مراد د علیه الصلوٰة والسلام څخه یعنی په دې موقف کې

**اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** **پوه سه** چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم خدای ته خواست وکې چې زما د امت ګوك چې پر موقف د عرفات و تا ته خواستونه کوي هغه ټول ور پوره کړي که څه هم مظالم د بندګانو وي، خدای جل جلاله د علیه الصلوٰة والسلام دا دعا ومنله مګر نه په حقوقوکې د بندګانو، نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم سبه دعا په موقف کې د مزدلفې بیا مکرره کړه، په ډیر عجز او انکسار سره، نو ارحم الراحمين وعده ورسره وکړه چې دا خواست دې هم قبول سو

## ضَمِيمَه

په صحیح حدیث کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام په عین حال کې د موقف وخندل چا پوښتنه ځندی وکړه چې په دې موقف کې د څه سبب د خندا څرو علیه الصلوٰة والسلام پر جواب کې ورته وویل چې ما د غه خواست هم خدای پاك ومانه، ابلیس علیه اللعنة چې په شیله کې ناست وو پر سر یه خاوری باد کړې د ډیره غمه څخه ما پرهغه وخندل. **فائده** د حقوق العباد بخښه دا ډول کیږي چې په ورځ د اخرت به خدای و مظلوم بنده ته د خپلې خوا عوض ورکوي او ظالم به په بخښي کما تقرر في موضعه. قــــــال المصنفُ

**فَإِذَا اسْفَرَّ جِدًّا أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ**

نو بیا چې سبه رڼا سي چې تخمینًا د دوو رکعتو لمانځه تر لمر ختو پورې پاته وي كذا في المحيط

نوراکښته دی سی امام او خلک د محسر نه اختو د لمر، قال المصنف

## فَيَأْتِيَ اِلٰى مِنٰى وَيَنْزِلُ بِهَا ثُمَّ يَأْتِيْ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ

نو دی ولاړ سی منیٰ ته او هلته دی ورته واوړي، وروسته دی ورسی حاجی هغه ځلی ته چې جمرة

## فَيَرْمِيْهَا مِنَ الْوَادِيْ فَيَرْمِيْهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ مِثْلَ

العقبہ یه بولي چې د مکی شریفی دخوا اول ځلی دی، او د منیٰ دخوا اخیر ځلی دئ، نو هغه دی وولی د ښکتی دخوا څخه یعنی د ښکتی خوا څخه او ودی ولی په اوو ډبرو په مثل د

## حَصَى الْخَذْفِ

ډبرو د خزف، **پوهسه** چې خزف ویشتل دی د خرما د مندکی او یا د کشمش ډبری په مابین کی د دوو د تسبیح د ګوتو چې پر یوه بې کښیږدی پر مابین د ګوتی او په هغه بله ګوته یې ولی، او بعض طالبان چې د خزف ترجمه کشنیا نو نر د خرما په مندکه کوی هغه درواغ دی، مقصود د مصنف دادی چې په غټه ډبره دی نه ولی چې داخلاف السنت دی

**فَائِدَه**: دغه کیفیت د ویشتلو چې ډیرو کتابو د فقه شریفی بیان کړی دی چې ډبره دی پر وسط د سبابی کښیږدی او آبته ګوته دی ولي، پر هغه کیفیت و ویشتل په اوسنی زمانه کی حاجیان چې په لکو دی امکان نه لری، ولی چې ډیر حاجیان وجمره ته په رسیدګی نسی کیدلای، نو اوس هر ډول ویشتل چې ممکن وه هغه ډول دی ولي،

**فَائِدَه**: د شپلی د خوا ویشته زما یاد دی چې حاجیان به لږ وه نو په اندک ازدحام سره به ځان ور رسولای سوا و ویشتل د شپلی د خوا کولای سوای، او س چې حاجیان په لکو سول نو له د شپلی د خوا ولی یو د بل تر پښو لاندی به مری، لکه چې په تجربه په نژدی کلو کی دغه رنګه مرګونه ثابت سوه، د سعودی د حکومت د حاجیانو د ساتلو د پاره د مرګه څخه په رمیو کی د جمراتو عاقلانه موافق الشریعة الغراء اقدام دی، **پوهسه**: چې په دین نبوی کی حرج نسته حتی چې "الضرورات تبیح المحظورات" دائر علی الالسنه دي،

هغه تدبیر دادئ چې حکومت د سعودی د دوو ځلو سرونه پوښلی دی، او بیا پر هر ځلی برابرد





لوری خوا د ویشتلو د ځلی غار جوړ کړی ده چې د لاندی شپلی د خوا هم د ځلی ویشتل کیږی او د لوړی د خوا هم، نو په دی ډول د حاجیانو ازدحام او یو د بل تر پښو لاندی کیدل خصوصًا ښځی او بوډاګان کسان، نو اوس چې څوک قوي وی هغه یه د لاندی د خوا ولی او ښځی او ضعیفان او بوډاګان یه د لوړی خوا ولي، او سعودی داسی کړی دی چې لکه لاندی چې یو آخور مانند ځای دی، او په مابین کی ځلی ولاړی دي، دغه رنګه لوړ په هم آخور غوندی شی جوړ کړی دی او په هغه کی ځلی را ستلی دی، نو لکه ښکته حاجیان چې هغه ځلی په ډبرو ولی، لوړ حاجیان هم هغه ځلی ولي"

**فَائِدَه**: بعض سخت دریزه ملایان وائی چې د لوړی ویشتل د ځلو نه دی روا. ولی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم د شپلی د خوا څخه جمرات ویشتلی دی، او بل دا چې د فقهی شریفی په کتابو کی وائي چې جمرة العقبه دی د غره د خوا څخه ولي. نو د رویش وائي چې دا د واړه خبری صحیح دی لکن چې د مرګ خطر نه وی لکه د علیه الصلوٰة والسلام په زمانه کی چې حاجیان ښځی محدود کسان وه او یا د قدیم فقهاؤ په زمانو کی چې ازدحام به ښځی کم وو بلکه د رویش په اولو کلو کی د هم چې امکانات د ویشتلو پر طریقه مسنونه باندی ممکن وه لکن اوس امکانات بدل سوه او حاجیان په لکهو سوه او خطر د مرګ او تر پښو لاندی کیده په تجربه ثابته سوه نو اوس که د غه ری د لوړی خوا څوک روانه بولي ګویا هغه سړي د حاجیانو ژوند د ښمن دی، که دی ووائی چې بوډا امکان دی بیا ځوانان به ری کی خپل وکیلان وګرځوي او داغه رنګه ښځینه حاجیان دی هم په ری کی د جار و وکیلان وټاکی

**جَوَابُ**: د فقهی شریفی په کتابو کی وائی چې څوک چې په ولاړی لمونځ کولای سی هغه ته نو کیل د رمی د پاره نه دی روا،

**دانصاف خبره**: اصل رمی خو واجب دی او کیفیات یې یا سنت یا مستحب دی نو دا سنت یا مستحب که د مرګ د بیری په سبب پاته سی، ان شاء الله، حرج به نه وي: "وَلَا تُلْقُوا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ" کریمه: او بله خبره دا ده چې حکومت د سعودی پر خپل سر دا کار نه دی کړي بلکه د جید و علماؤ څخه د مذاهبو مختلفه وو بې فتوی حاصله کړی وي،

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِجَمِيْعِ الْمُؤْمِنِيْنَ اٰمِيْن يَا رَبَّ الْعٰلَمِيْن،

## وَيُسْتَحَبُّ اَخْذُ الْجِمَارِ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ اَوْمِنَ الطَّرِيْقِ وَيُكْرَهُ

اومستحب دہ اخستل د ډبرو د مزدلفی څخه او یاد لاری څخه ترمنی پورې، اومکروه ده د هغه ډبرو اخستل چې د ځلی مره وی پرتی، ولی چې

## مِنَ الَّذِیْ عِنْدَ الْجَمْرَةِ

رائق وائی چې په حدیث کی راغلی دی چې ډبری د هغه چا چې حج یې قبول سوی وی هغه ډبری ورکیږی، نو دا یا ته ډبری د هغه چا دی چې حج یې نه وی قبول سوی، قـــال المصنف:

## وَيُكْرَهُ الرَّمْىُ مِنْ اَعْلَى الْعَقَبَةِ لِاِيْذَائِهِ النَّاسَ

اومکروه دی ویشتل د جمرة العقبة د لوړی خوا څخه یعنی د غره د خوا څخه ولی چې هغو ویشتلو کی د خلګو ازار رائحي یعنی هغه ډبری چې د ه لوړی خوا و ویشتل کیږی د لاندی د خوا و ویشتونکو پر سرو سرو

لګیږی **پوه سه** چې بعضی ملایان چې په دغه عبارت د فقهی د کتا بو استدلال کاوه چې د سعودی د لوری خوا څخه یو ویشتل مکروه دی باطل سو، ولی چې مصنف د دی کراهت دلیل ازار خلګو باله او شک نسته چې د سعودی جوړ کړو په لوړه خواو وکی هیڅ چا ته ازار نسته ولی چې د لوړی د خوا و ویشتلو ډبری پر کښتو حاجیانو هیڅ نه لګیږی کما یدل علیه التجربة، قالَ

## وَيَلْتَقِطُهَا الْتِقَاطًا وَلَا يَكْسِرُ حَجَرًا اِجْمَارًا وَيَغْسِلُهَا لِتَيَقُّنِ

او ټولوی دی ډبری د ویشتو د پاره ټولیدو سره او نه دی ماتوی ډبره، یعنی لویه ډبره د کشنی ډبری د پاره

## طَهَارَتِهَا فَاِنَّهَا يُقَامُ بِهَا الْقُرْبَةُ وَلَوْرَمٰى بِنَجَسَةٍ

او دی ینځی ډبری دی پری مینځی تاچې یقینی سی پاکوالی د هغو چې د غو ډبرو د ثواب کار کیږی چې د ځلو ویشتل دی او کی بالفرض په مرداره ډبره ویشتل وکړه کفایت خو کوی

## اَجْزَاهُ وَكُرِهَ

لکن دا کار مکروه دی۔





## وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ مَعَ اَوَّلِ حَصَاةٍ يَرْمِيْهَا وَكَيْفِيَّةُ الرَّمْيِ

او پرېږدی دی تلبیه سره د اول ډبری د جمرة العقبة د ویشتلو یعنی بیا تر آخر پوری د حج تلبیه نسته، البته که دروتر حج عمره کوله نو بیا تلبیه ستر، او کیفیت

## اَنْ يَّاْخُذَ الْحَصٰى بِطَرَفِ اِبْهَامِهِ وَسَبَّابَتِهِ فِى الْاَصَحِّ

د رمی دا دی چې ډبره دی په سر د بټی ګوتی دی و سبابه ګوتی په سرونیسی او ور دی غورځوی، په اصح کی د روایت، ولی دا سی ویشتل اسانه دی او سپکاوی د شیطان ډیر په کښی دی. ډرویش

## لِاَنَّهُ

وائی چې پردغه اصح روایت باندی ویشتل د خلکو په نني زمانه کی معمول دی، وجه آسانی یې تجربه ده، او وجه د ډیرا هانت د شیطان یې داده چې ګویا حاجی په زبان حال شیطان ته وائی چې ته دونه شئ نه ئی چې زه دی په موټه کی نیولی ډبره وولم، او یا دی کښیږدی ډبره پرشاد بټی ګوتی او کومک دی وغواړی په ویشتو کی د سبابی ګوتی څخه، درویش وائی چې دا قسم و ویشتل نسبت وا ولته ګران دی **پوه سه**: چې مقابل دا اصح هغه کیفیت دی چې دوړاندی درویش بیان کړی فتذکر، قالَ

## وَالْمَسْنُوْنُ الرَّمْىُ بِالْيَدِ الْيُمْنٰى وَيَكُوْنُ بَيْنَ الرَّمْيِ

او سنت دی ویشتل په راسته لاس یعنی که عذر نه وی، او وی به په مابین کی د ځای د ویشتونکی او د

## وَمَوْضِعِ السُّقُوْطِ خَمْسَةُ اَذْرُعٍ

لویدو د ډبری کم از کم پنځه ګزه یعنی مثل د ډبری په ځلی لازم نه دی بلکه په مذکوره فاصله سره هم رمی روا دی، او بعض فقهاء وائی که ډبره تر رامی و ځلی ته نژدی ولویده کافی ده، او که تر ځلی و رامی ته نژدی ولویده کافی نه ده، والله اعلم بالصواب، قـــال المصنف

## وَلَوْوَقَعَتْ عَلٰى رَجُلٍ اَوْمَحْمَلٍ وَثَبَتَتْ اَعَادَهَا وَاِنْ

او که چیری ولویدل ډبره د رمی د رامی پر بدنه او یا پر ځین د اوښ او هلته تکیه سوه نو د هغی پر ځای دی

## سَقَطَتْ عَلٰى سَنَنِهَا ذٰلِكَ اَجْزَئَهُ وَكَبَّرَ بِكُلِّ حَصَاةٍ

بلہ ډېره وروغوېږئ، اوکه د ښځې یا ځینو څخه وېښتان اوروان سول کافي ده او تکبیر دې وائي دهري ډېرې سره، قـــال المصنف:

## ثُمَّ يَذْبَحُ الْمُفْرِدُ بِالْحَجِّ اِنْ اَحَبَّهُ

بیا دې یو حیوان ذبح کړي هغه حاجي چي یوازې په حج احرام تړلی وي که خوښه وي، **پوهسه**: چي د غه ذبح پر متمتع او قارن لازم او واجبه ده، او د مفرد دا دده په خوښه سره اړه لري، قـــال المصنف:

## ثُمَّ يَحْلِقُ اَوْيُقَصِّرُ وَالْحَلْقُ اَفْضَلُ وَيَكْفِيْ فِيْهِ رُبُعُ الرَّأْسِ

او وروسته تر ذبح دې سر وخرېئي او یا دې وېښتان د سر لنډ کړي او خرېیل ئې افضل کار دی، لموافقة فعله صلی الله علیه وسلم او بل دا چي علیه الصلوٰة والسّلام درې واره دعاد مغفرت و محلقینو ته کړیده، او څلورمه وار ئې ومقصرینو ته او په خرېیلو کې څلورمه د سر کافي ده **مسئله** که حاجي اقرع وو یعنې پر سر ئې وېښتان نه وه نو صرف دې چاړه پر سر راتېره کې صرف د چړې تېرول دده دپاره حلق دی «هـ، در» قـــال المصنف:

## وَالتَّقْصِيْرُ اَنْ يَّاْخُذَ مِنْ رُؤُسِ شَعْرِهٖ مِقْدَارَ الْاَنْمِلَةِ

او د تقصیر کیفیت دا دی چي د سر د ټولو وېښتانو څخه دې په مقدار د یوه بند د ګوتې پرې کړي

## وَقَدْ حَلَّ لَهٗ كُلُّ شَيْءٍ اِلَّا النِّسَاءَ ثُمَّ يَأْتِيْ مَكَّةَ

او وحاجي ته وروسته تر حلق یا قصر هر شی رواسو یعنې ګنډلې جامې خوشبوئي لګول سر پټول مګر ښځې یعنې جماع د ماینې سره

## مِنْ يَوْمِهٖ ذَالِكَ اَوْمِنَ الْغَدِ اَوْبَعْدَهٗ

نه دي ورته روا او بیا دې ولاړسي مکې مکرمې ته په دغه ورځ چي د اختر ورځ ده او یا دې صبا ولاړسي او یا وروسته تر صبا،





## فَيَطُوْفُ بِهَا طَوَافَ الزِّيَارَةِ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ وَحَلَّتْ لَهُ النِّسَاءُ

او طواف دې وکړي پر مکه شریفه چي طواف زیارة یه بولي او وشوطه او دا طواف فرض دی، او اوس رواسوې ورته ښځې یعنې کې ماینه ورسره وطې یه روادی، **مسئله**: که حاجي تر عرفات د رتلو د مخه طواف قدوم کړی وو، او په کښې ئې ووږې بنور ولي وي چي رمل یه بولي وبیا سعي په مابین د صفا او مروه هم کړې وه، نو په طواف زیارة کې رمل دې نه کوي. او نه دې سعي د صفا او مروه کوي او که د مخه طواف قدوم نه وو کړی، نو په طواف زیارت کې دې هم رمل په درې اولو شوطو کې وکړي او هم وروسته تر طواف دې سعي د صفا و مروه وکړي، قال

## وَاَفْضَلُ هٰذِهِ الْاَيَّامِ اَوَّلُهَا وَاِنْ اَخَّرَهٗ عَنْهَا لَزِمَهٗ شَاةٌ

او په دغو درو ورځو د طواف زیارت دپاره اوله ورځ ده، او که تر درو ورځو

## لِتَاخِيْرِ الْوَاجِبِ

وروسته کړ او نو پسه پر لازم سو ولې چي ده وځنډاوه واجب یعنې فرض چي طواف زیارت وو تر خپل وخت، قـــال المصنف:

## ثُمَّ يَأْتِيْ مِنًى فَيُقِيْمُ بِهَا فَاِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِيْ

او پسله طواف زیارت دې بېرته منیٰ ته ولاړسي او په منیٰ کې دې اوسي بیا چي زوال وکړي لمر د دوهمې

## مِنْ اَيَّامِ النَّحْرِ رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ يَبْدَءُ بِالْجَمْرَةِ الَّتِيْ

ورځې دایام النحر نو دې وولي درې څلې او ابتداء دې د هغه څلي څخه کوي چي مسجد خیف ته ورنږدې

## تَلِيْ مَسْجِدَ الْخَيْفِ فَيَرْمِيْهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ مَاشِيًا يُكَبِّرُ

دی یعنې د منیٰ د خوا اول څلی نودې وولي په درو ډبرو پیاده او تکبیر دې وائي دهري ډبرې سره

## بِكُلِّ حَصَاةٍ ثُمَّ يَقِفُ عِنْدَهَا دَاعِيًا بِمَا اَحَبَّ حَامِدًا

اوبیا دې ودرېږي په نزد د دغې جمرې او دعا کوونکی دې وي په هغه دعا سره چې د ده خوښه وي او حمد ویونکی به وي

**لِلّٰهِ تَعَالٰى وَمُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

د خدای جل جلاله او درود ویونکی به وي پر آنحضرت صلی الله علیه وسلم یعنی حمد او درود دې ووایي

**وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ وَيَسْتَغْفِرُ لِوَالِدَيْهِ وَإِخْوَانِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ**

تر دعا ووائی کما هو الادب فی الدعاء، او دواړه لاسونه دې پورته ونسي په دعا کې کما هو المستحب فی الادعیة، او طلب د بخښنې دې وکړي د مور او پلار د پاره او د مسلمانانو ورونړو د پاره. قَالَ الْمُصَنِّفُ

**ثُمَّ يَرْمِي الثَّانِيَةَ الَّتِيْ تَلِيْهَا مِثْلَ ذٰلِكَ وَيَقِفُ عِنْدَهَا دَاعِيًا**

او بیا دې وولي دوهم خلی چې اول ته څرمه دی په مثل د اول خلی او د هغه خلی نزد دې هم ودرېږي دعا کوونکی یعنی په مثل د اول په تمامو معنا وو کې، **تَنْبِيْه**: دې دوو ځلو ته دې حاجي نزدې نه درېږي، ولې چې ازدحام د خلکو ډېرې دې د دعا وغیره فرصت نه بي پیدا کولای بلکه کافي مسافت لرې دې وروته ودرېږي، تا چې ټول مذکوره شیان پوره کړي. قَالَ الْمُصَنِّفُ

**ثُمَّ يَرْمِي الْجَمْرَةَ الْعَقَبَةَ رَاكِبًا وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا**

او بیا دې وولي جمرة العقبه په حال کې د سپرتیا او هلته دې نه درېږي. **فَائِدَه** په اوس وخت کې راتوب د دابې هیڅ نه دی مُیَسّر نو دا امر مستحب نن صبا پاته دی. قَالَ

**فَإِذَا كَانَ الْيَوْمُ الثَّالِثُ مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ**

او بیا چې دریمه ورځ سوه د ایام النحر بیا دې دری سره ځلی وولي پسله زواله په هغه د اول چې دوهمه

**بَعْدَ الزَّوَالِ كَذٰلِكَ** ورځ په ویشتلو و مثلاً بمثل

کتبه احقر فضل الحق حقانی





**وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَتَعَجَّلَ نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ قَبْلَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ**

او که د سرې تلوار وو نو دی او زی مکې ته د مخه تر لوېدو د لمر او که چیرې تر غروب د لمر په منیٰ

**وَإِنْ أَقَامَ إِلَى الْغُرُوْبِ كُرِهَ وَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ**

کې او بیا وروسته ووتی مکروه دی مګر هیڅ شی پر ده نشته. **پُوهه سه**: چې په وتوکی د منیٰ څخه صرف دا کافي ده چې تر لمر لوېده د مخه د منیٰ د حدود و څخه ځان و باسي که څه هم مکې ته نه وړ سیږي. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَإِنْ طَلَعَ الْفَجْرُ وَهُوَ بِمِنًى فِي الرَّابِعِ لَزِمَهُ الرَّمْيُ وَجَازَ**

او که سپیدې راچاودې او دی په منیٰ کې وو، نو پر ده لازمي سوې رمي د جمارو د څلرمې ورځې، او روا دی

**قَبْلَ الزَّوَالِ وَالْأَفْضَلُ بَعْدَهُ وَكُرِهَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ**

د دغې ورځې رمي د مخه تر زوال او افضله دا ده چې وروسته تر زوال دې په دغه ورځ وولي، او مکروه دی ویشتل د دغې ورځې د مخه تر راختو د لمر. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَكُلُّ رَمْيٍ بَعْدَهُ رَمْيٌ تَرْمِيْهِ مَاشِيًا لِتَدْعُوَ بَعْدَهُ وَإِلَّا**

او هر رمي چې وروسته یې هم رمي وي لکه د اول او د دوهم خلی رمي ولې یې پیاده تا چې ته دعا وکړې

**رَاكِبًا لِتَذْهَبَ عَقِبَهُ بِلَا دُعَاءٍ** وروسته ترهغه رمي، او که چیرې وروسته رمي نه وي لکه رمي د جمرة العقبه سپور ئې ولې تا چې ته ولاړ سې وروسته تر دې بیله دعاء، **پُوهه سه** چې دا سپور او پیاده ویشتل صرف بیان د افضلیت دی، ورنه اصل مقصود خو رمي دی نو څرنګه چې ولې هغه سې روا دی، بجرء

**فَائِدَه:** په تاریخ کی دامام ابویوسفؒ راغلی دی چی غروخت چی دی ناجوړی وو ابن الجراحؒ چی ستر عالم دمناسکو دَ حج وو وَائی چی پوښتنی دَدَه لوی پیشوا وره عَلم اودی مبارك بیهوشه وو، نوچی په هوش کی راغلی ما ترِیٔ ووئیله: ما تقول! ته څه وائی په رمی کی دجمارو چی حاجیان یه وُلی راکبًا بنه دی اوکه ماشیًا، ما ورته وویل ماشیًا دی وُلی، امام مذکور ووئیل خطاوشلی، بیا ما ووئیله چی راکبًا دی وُلی امام مرحوم ووئیل خطا وتَی، نو ما ورته وویل چی ته خروائی فقال کل رمی آه ابن الجَراح وَائی چی زه چی دامام مرحوم دکوره راووتم د بنځوژړای ترغوږ سوه پوښتنه چی وکړه خلګو وویل چی امام ابویوسفؒ وفات سو رضی الله تعالیٰ عنه ورحمه ه ابن الجَراح وَائی چی ما تعجب وکړی وحرصه دَدَغه امام پر تعلیم په مثل کی دَدَغه حَالت یعنی د نزع کندن» دَرویش وَائی چی دا واقعه او امثال دَدَغی واقعی پتوله نتیجه دَعشق او محبّت د علم دین سره تعلمًا و تعلیمًا»

**واقعه** درویش وَائی یو ستر لیکوال او ادیب پُوه وماته په پښتو ژبه یُو اوږ دَ خط لیکلی وو چی خلاصه یه داده چی په دی ډیرو تصنیفا تُو او حواشیو پردرسی کتابو څرنګه نه خواری کیږی او سره ددی دقرار معلوم چی ستا عمره ۸۰ کاله ته رسیدلی څرنګه دَماغ نه ستړی کیږی» نو درویش وهغه ورور ته جوابًا دا یو څو بیته نوشته کړه اود خط جواب می ورکړی هغه بیتونه دادی»

دعشق مقام ډیر عَالی ؛ وهر مطلب ترخولې په عشق رسیږی ؛
زما په زړه کی دښوونی عشق دی ؛ ځکه قلم می پر صفحو چلیږی ؛
زما ټول عمر په دی کار کی تیر سو ؛ یَخ او ګرمی وماته یو معلومیږی ؛

سره درس او تدریس تصنیف ؛ برابر او همیشه کرم کیږی ؛
دا دخدای فضل او مهربانی ده ورورم ؛ چی په دی کار کی می ملال پر زړه نه تیریږی ؛
خلګ حیران دی ودی کار ته زما ؛ لکن قلم دی چی دَعشق پر کاغذه چلیږی ؛
دنیا طلبو ته په غور ګوری ؛ چی په هیڅ ډول په دنیا فانی نه مړیږی ؛
دا دوی عشق کامیابه کړی دی دوی ؛ چی په هیڅ ډول دَطلب څخی نه تیریږی ؛





دمنهومان لا یشبعان حَدیث ؛ همیشه ستا سی ترغوږ وتیریږی ؛
عُبید الله لکه پسترهمیشه ؛ ددی ښوونی پر ډیوه کړیږی ؛
داجمله معترضه وه اوس په شرحه دکتاب بیرته شروع کوم ان شاء الله تعالیٰ، قَالَ المصنفؒ

**وَكُرِهَ الْمَبِيتُ بِغَيْرِ مِنًى لَيَالِيَ الرَّمْيِ ثُمَّ إِذَا رَحَلَ إِلَى**

او مکروه دی شپه تیرول بیله منیٰ په شپو کی د رمی دَ ځلو، او بیا چی حاجی د منیٰ څخه کوچ کوی و مکی ته

**مَكَّةَ نَزَلَ بِالْمُحَصَّبِ سَاعَةً ثُمَّ يَدْخُلُ مَكَّةَ**

نو یو ګړی دی تم سی په محصب کی، پوره دمحصب د نزول تفصیلی بیان مخ تیر سو، او بیا دی داخل سی مکی ته او طواف دی

**وَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ بِلَا رَمَلٍ وَسَعْيٍ إِنْ قَدَّمَهَا**

وکړی پر بیته شریفه باندی اوۀ شوطه» بیله اوږ و ښورولو او بیله سعی د صفا او مروه کی دَ مخه په طواف قدوم کی رمل او سعی یه کړی وه » قَالَ المُصنفؒ

**وَهٰذَا طَوَافُ الْوَدَاعِ وَيُسَمّٰى أَيْضًا طَوَافَ الصَّدَرِ وَ**

او دا طواف وداع بُولی یعنی طواف د رخصت دمکی مکرمی څخه او دغه رنګه په نوم طواف صدر دی

**هٰذَا وَاجِبٌ إِلَّا عَلٰى أَهْلِ مَكَّةَ وَمَنْ أَقَامَ بِهَا**

دصدر معنا رجوع ده مکی څخه وخپل وطن ته، او بعض جاهلان امیان وغیره وَائی چی صدر ځیګر ته وائی یعنی ځګر دی و مکی مکرمی ته کی پر ښا دِ ځندی غلطه خبره ده، په بحر رائق کی وَائی چی دَ صدر معنا رجوع دَه او دا طواف واجب دی مګرنه پر اهل مکه، وَلی دوی خو دَ مکی مکرمی څخه رخصت نه اَخلی، او پر هغه چا هم واجب نه دی چی پسله حج په مکه کی او سیږی که څه هم اصلًا آفاقی وی،،

وَيُصَلِّي بَعْدَهُ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ يَأْتِي زَمْزَمَ فَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا

او پس له طواف دی دوه رکعت نفل وکړي يعنې په هغه ځای کې چې کوي او بيا دی ورشي و زمزم ته

وَيَسْتَخْرِجُ الْمَاءَ مِنْهَا بِنَفْسِهِ إِنْ قَدَرَ وَيَسْتَقْبِلُ

او را دې کاږي د زمزم د څاه نه اوبه په خپله کې قدرت ئې لودي، درويش وائي چې اوس قدرت

الْبَيْتَ وَيَتَضَلَّعُ مِنْهُ وَيَتَنَفَّسُ فِيهِ مِرَارًا وَيَرْفَعُ بَصَرَهُ

پړدې زمانه کې نشته ولې چې د زمزم څاه حکومت پټ کړي دي او په مشين خنډي را کاږي، او مخامخ د قبلې ته دې ودريږي او ډکان دې ډيرې د زمزم په

كُلَّ مَرَّةٍ يَنْظُرُ الْبَيْتَ وَيَصُبُّ عَلَى جَسَدِهِ إِنْ تَيَسَّرَ وَإِلَّا

اوبو او به کړي او څو واره دې په وخت کې د څښلو ساه وکاږي او سره پرې چې او به په وخت د څښلو سترګې دې پورته کړي لو بيت الله شريف ته

يَمْسَحُ بِهِ وَجْهَهُ وَرَأْسَهُ وَيَنْوِي بِشُرْبِهِ مَا شَاءَ

او اوبه دې توی کړي پر خپل بدن که چيرې ورته اسانه وه او که چيرې د بدن تولو پريولو درنه ګران وه نو دی مخ په پرې منځي او
سر دې هم په پرې منځي اذيت دې کوي حاجي په څښلو کې د اوبو د زمزم هغه شي د ده خوښه وي مثلاً صحت وعافيت
او توفيق د خير د کارو او نجات د بدو کارو او نور او نور، درويش وائي چې دا چې حاجي به و مکې شريفې ته
ګوري دا نظر هم نه سي کيدای ولې چې د داخل د احاطه ده د زمزم څخه بيت الله شريف نه معلوميږي

وَكَانَ عَبْدُ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا إِذَا شَرِبَ يَقُولُ

او وو عبد الله بن عباسؓ چې ولې څښلې اوبه د زمزم داسې به ئې ويئله يا الله زه د تا څخه

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَرِزْقًا وَاسِعًا وَشِفَاءً لِكُلِّ دَاءٍ

سوال کوم يعنې په برکت د او بو د زمزم د ګټور او فائده مند علم او د فراخ رزق او د شفاء د هر مرض





وَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاءُ زَمْزَمَ لِمَا شُرِبَ لَهُ

او عليه الصلوة والسلام ويلي دي چې اوبه د زمزم د هغه شي د پاره دي يعنې کافي دي چې د هغه
شي په نيت څښلې وي، قال المصنف

وَيُسْتَحَبُّ بَعْدَ شُرْبِهِ أَنْ يَأْتِيَ بَابَ الْكَعْبَةِ وَيُقَبِّلَ الْعُتْبَةَ

او مستحب ده چې وروسته د زمزم د اوبو د څښلو څخه دې ورشي دروازې ته د کعبې مبارکې او ښکل دې کړي چوب

ثُمَّ يَأْتِي الْمُلْتَزَمَ وَهُوَ مَا بَيْنَ الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ وَالْبَابِ

د هغې د مچ کړي، او بيا دې ورسي ملتزم شريف ته چې هغه په مابين کې د حجر اسود او د دروازې

فَيَضَعُ صَدْرَهُ وَوَجْهَهُ عَلَيْهِ وَيَتَشَبَّثُ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ

د ديوال نو دې ټينګ کړي مخ پر هغه ديواله کښيږدي او لاسونه دي ټينګ کړي په پردو پوري د

سَاعَةً يَتَضَرَّعُ إِلَى اللهِ تَعَالَى بِالدُّعَاءِ بِمَا أَحَبَّ مِنْ

هغې او عجز دې وکړي و خدائ ته په دعاء کې په هغه کار کې چې د ده خوښه وي د شيانو د دنيا او آخرت

أُمُورِ الدَّارَيْنِ

**تَنْبِيهٌ**: درويش وائي چې دا تول کارونه چې مستحب دي حيلة دي چې په دغو کارو کې ويل چا ته ازار ونه رسوي او پرې وهل او رکي نه وي، او زما ګمان دی چې دغه تول کارونه به په وخت کې د ازدحام او ګڼ د حاجيانو بيله ازاره د بل اسان نه وي، البته که يو حاجي بيخي په آخر د حاجيانو کې مکې مکرمې څخه راووزي امکان لري چې دغه مذکوره کارونه دې بې ازاره د چا وکړای سي،

**حَاصِل**: دا چې هر کار د مذکوره کارو څخه چې بيله ازاره د چا ممکن وي هغه دي وکړي او په هر کار کې چې ازار د نورو خلګو وي هغه دې پريږدي، ولې چې ازار چا ته رسول حرام دي نو مستحب

کار مستحب دیاره باید د حرام کار مرتکب نه شي، قال المصنف

## وَيَقُولُ اللّٰهُمَّ اِنَّ هٰذَا بَيْتُكَ الَّذِيْ جَعَلْتَهٗ مُبَارَكًا وَّهُدًى

او په دعا کې دې داسې ووايي یا الله جل جلاله په تحقيق سره دا ستا بیت دی هغه بیت دی چې تا مبارکه

## لِلْعٰلَمِيْنَ اَللّٰهُمَّ كَمَا هَدَيْتَنِيْ لَهٗ فَتَقَبَّلْ مِنِّيْ وَلَا تَجْعَلْهُ

گرځولی دی او هدایت دی گرځولی دی د عالمیانو دپاره یا الله په تحقیق لکه تا چې ماته هدایت وکړی

## هٰذَا اٰخِرَ الْعَهْدِ مِنْ بَيْتِكَ وَارْزُقْنِي الْعَوْدَ اِلَيْهِ حَتّٰى

دې بیتې ستا د راتګ نو زما طرف نه یې قبول کړې یعنې ټول مراسم حج او دعا گاني، او مه گرځوې ای خدایه

## تَرْضٰى عَنِّيْ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِيْنَ

دا وار زما اخیری وخت د ملاقات ستا د بیتې نه

بلکه زما نصیب کې بیا راتګ و دې بیت الله ته حتیٰ چې ته په راضي کیږې د ما نه، بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِيْن

## وَالْمُلْتَزَمُ مِنَ الْاَمَاكِنِ الَّتِيْ يُسْتَجَابُ فِيْهِ الدُّعَاءُ بِمَكَّةَ الْمُشَرَّفَةِ

او ملتزم د هغو ځایونو نه دی چې په کښې قبلیږی دعا په مکه شریفه کې، او هغه ځایونه د قبلیدو

## وَهِيَ خَمْسَةَ عَشَرَ مَوْضِعًا نَقَلَهَا الْكَمَالُ بْنُ الْهُمَامِ عَنِ

د دعاء ۱۵ ځایه لس دی لکه چې نقل کړی کمال بن همام رح د رسالي نه د حسن بصري په دې قول سره

## الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ بِقَوْلِهٖ فِي الطَّوَافِ وَعِنْدَ

د طواف کولو په وخت کال او دوهم د ملتزم شریف سره چې د هغه تفصیل د دعا ای او کیفیت ئې

## الْمُلْتَزَمِ

مخته تیر سو.





## وَتَحْتَ الْمِيْزَابِ وَفِي الْبَيْتِ وَعِنْدَ زَمْزَمَ وَخَلْفَ الْمَقَامِ

او لاندې تر ناوې د رحمت چې په حطیم شریف کې راځي، او د ننه خونه کې د کعبې شریفې، او په نزد د زمزم چې بیان ئې د مخه تیر سو، او په شا کې د مقام ابراهیم علیه السلام، قال المصنف

## وَعَلَى الصَّفَا وَعَلَى الْمَرْوَةِ وَفِي السَّعْيِ وَفِيْ عَرَفَاتٍ

او پر صفا او مروه باندې چې تفصیل ئې مخته تیر سو، او په سعی کې د صفا او مروه چې بیان ئې تیر سو وړاندې، او په عرفات کې چې تفصیل ئې تیر سو،

## وَفِيْ مِنًى وَعِنْدَ الْجَمَرَاتِ

او په منیٰ کې چې بیان ئې تیر سو، او په نیزد د ویشتلو ځلو، چونکه یوه ویشتل ځلو ۴ ځلو، وړځی وو نو ځکه مصنف علامه د، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵ پر لیکلی ده، انتهی ای تر دې ځایه قول ابن الهمام رح

## وَالْجَمَرَاتُ تُرْمٰى فِيْ اَرْبَعَةِ اَيَّامٍ يَوْمُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ بَعْدَهٗ كَمَا تَقَدَّمَ

او ځلی ویشتل کیږی په ځلورو ورځو کې د اختر په ورځ او درې نورې ورځې لکه څرنګه چې

## وَذَكَرْنَا اسْتِجَابَتَهٗ عِنْدَ رُؤْيَةِ الْبَيْتِ الْمُكَرَّمِ

مونږ ذکر کړه، چې دعا په وخت کې د اول رؤیة د بیت الله شریفې هم قبلیږی، او بیان یې هم مونږ د مخه تیر کړی، د عطاء نه روایت دی چې علیه الصلوٰة والسلام به وخت کې د رؤیت د بیت الله شریفې داسې دعا کوله: اَعُوْذُ بِرَبِّ الْبَيْتِ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَمِنْ ضِيْقِ الصَّدْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ، او لاسونه به ئې هم د واړه پورته کړي وي، او د مهمو دعاوو نه دا دی چې په هر ځای کې دا اجابت د دخول د جنت بلاحسابه، فتح، رد، قال المصنف:

## وَيُسْتَحَبُّ دُخُوْلُ الْبَيْتِ الشَّرِيْفِ الْمُبَارَكِ اِنْ لَّمْ يُؤْذِ اَحَدًا

او مستحب دی دخول و بیت الله شریفې ته یعنی د ننه ختل ته د کعبې مبارکې په شرط د دې چې هیڅ ازار

په کښې نه وی، درولش وَائی چې په خوانی کلوکی چې یوه ورځ به دکعبې شریفې دروازه خلاصه سوه په ارام ډیر کوشش سره داخله ممکنه وه، اوهرچه نن صَبادی که دروازه هم خلاصه کړی بیله خوریزی داخله امکان نه لري، قـــــالَ المصنفُ؛

## وَيَنبَغِي اَنْ يَقْصُدَ مُصَلَّى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ قِبَلَ

اوبائی چې سړی دی ئېسله دخوله دبیت الله قصد وکړی وهغه ځای ته چې علیه الصلوٰة والسّلام پر

## وَجْهِهِ وَقَدْ جَعَلَ الْبَابَ قِبَلَ ظَهْرِهِ حَتّٰى يَكُوْنَ

هغه ځای لمونځ کړی دی. اودغه دلمانځه ځای دعلیه الصلوٰة والسلام وطرف ته دمَخ دداخِل دی چې

## بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِدَارِ الَّذِيْ قِبَلَ وَجْهِهِ قُرْبَ ثَلٰثَةِ

دی وګرځوی دروازه دکعبې وطرفته دشاځِل حتیٰ چې دسړی په مابین کی اوده هغه دیواله څخه په مابین

## اَذْرُعٍ يُصَلِّيْ

کی قریب درې ۳ ګزه پاته سی نو هلته دی نفل وکړي،

## فَاِذَا صَلّٰى اِلَى الْجِدَارِ يَضَعُ خَدَّهُ عَلَيْهِ وَيَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَيَحْمَدُهُ

نو چې لمونځ ئې وهغه ته وکی بیادی پرهغه دیواله خپل بارخوکښیږدی او طلب دی د بخښنې دیے دخدائ څخه وکړي اوحمد دی ووائي، ولی چې دایو لوی نعمت دی دده په عمرکی خدای جل شانهٗ ورته پرنصیب کی، قـــالَ المُصنفُ؛

## ثُمَّ يَاْتِى الْاَرْكَانَ فَيَحْمَدُ وَيُهَلِّلُ وَيُسَبِّحُ وَيُكَبِّرُ وَيَسْاَلُ

اوبیادی ورسی ونورو دیوالو ته دکعبې شریفې، نوحمد دخدای جل جلالہٗ دی ووائے اوکلمه طیبه دی ووائے اوتکبیردی ووائے اوسوال دی وکي.





## اللّٰهُ مَا شَآءَ وَيَلْزِمُ الْاَدَبَ مَا اسْتَطَاعَ بِظَاهِرِهٖ وَبَاطِنِهٖ

دخدای څخه دهغه څه چې ده خوښه وی، او ټینګ دی ساتی ادب دخدای دستی په ظاهر سره خپل اوپه باطن سره چې خشوع اوخضوع ورته وائی، قـــــالَ المُصنفُ؛

## وَلَيْسَتِ الْبَلَاطَةُ الْخَضْرَاءُ الَّتِيْ بَيْنَ الْعَمُوْدَيْنِ مِنْ مُصَلَّى

اونه ده هغه شنو یره ډبره چې په رنګ شنه ده، اوپه مابین کی ددوو ستنو ده، دلمانځه ځای دعلیه

## النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

الصلوٰة والسلام یعنی لکه بعض کسان چې ګمان کوی

## وَمَا تَقُوْلُهُ الْعَامَّةُ مِنْ اَنَّ الْعُرْوَةَ الْوُثْقٰى هُوَ مَوْضِعٌ عَالٍ

اوهغه چې وائی عوام خلګ چې عروة الوثقیٰ چې په قرآن کریم کی په هم ذکر راغلی دی هغه ده هغه لوړ

## فِيْ جِدَارِ الْكَعْبَةِ بِدْعَةٌ بَاطِلَةٌ لَا اَصْلَ لَهَا

ځای نوم دی چې په دیواله کی دکعبې شریفې موجود دی یعنی په شکل دیوی الفی، هغه بدعة باطلة دی اوهیڅ اصل هم نه لری

## يُوْ سُه

: چې مراد دبدعت څخه بدعت دعقیدی دی یعنی دغه عقیده دشریعت څخه خارجه ده،

## وَالْمِسْمَارُ الَّذِيْ فِيْ وَسَطِ الْبَيْتِ يُسَمُّوْنَهُ الْعَامَّةُ

اوهغه میخ چې په مابین کی دخولي دکعبې شریفې دی، اوعوام الناس هغه ته ددنیا نوم وائی، اودوی

## سُرَّةَ الدُّنْيَا يَكْشِفُ اَحَدُهُمْ عَوْرَتَهٗ وَسُرَّتَهٗ وَيَضَعُهَا

خپل عورت لڅ کی اونوهم لڅ کی اوپرهغه مسمار باندی ایږدی دا کار دهغه چا دی چې هیڅ عقل نه لری، فضل تر دی چې دی دے علم ولری لکه چې وئیلی دی کمالؒ یعنی ابن الهمامؒ صاحب فتح القدیر

عَلَيْهِ فِعْلُ مَنْ لَا عَقْلَ لَهُ فَضْلًا مِّنْ عِلْمٍ كَمَا قَالَهُ الْكَمَالُ

وَاِذَا اَرَادَ الْعَوْدَ اِلٰى اَهْلِهٖ يَنْبَغِىْ اَنْ يَّنْصَرِفَ بَعْدَ طَوَافِهٖ

او چې حاجي اراده وکړي د تللو خپل اهل ته یعني وطن ته، نو بنا ئې یعني مندوبه ده چې دی د بېرته له

لِلْوَدَاعِ وَهُوَ يَمْشِىْ اِلٰى وَرَائِهٖ وَوَجْهُهٗ اِلَى الْبَيْتِ

طوافه د وداع په داسې حال کې د شا پر خوا ځي او مخ به ئې وکعبه شریفې ته وي. یا به

بَاكِيًا اَوْ مُتَبَاكِيًا مُتَحَسِّرًا عَلٰى فِرَاقِ الْبَيْتِ حَتّٰى يَخْرُجَ

واقعوتلي او یا دی ژړا کوونکی هیئت پر ځان طاري کړي، او اظهار د غم دی کوي پر جلا والی د بیت الله

مِنَ الْمَسْجِدِ وَيَخْرُجُ مِنْ مَّكَّةَ مِنْ بَابِ بَنِىْ شَيْبَةَ

شریف تر هغو چې د مسجد الحرام څخه ووځي، او حاجي چې د مکې څخه وزي پر دروازه د بني شیبه دی وزي د کښتی

مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلٰى غونډۍ د لارې. **پوه سه:** دروازه بني شیبه ومعلومه دروازه چې پر نوشته هم دی شرق طرفته د کعبې

**پوښتنه:** تا وېلي دي وَوَئیل چې بعض جاهلان امیان آه نو د مصنفؒ د دې متن سره

ستا قول متناقض نه دی **جواب** هیڅ تناقض نشته ځکه چې د جاهلانو حکم کړی وی پر

هغو کسانو کړي وو چې والي د صدر معنا ئې گرځي او ما وَئیلی وه په حواله د بحر، چې د صدر معنا

دلته رجوع ده. وَلیس. داچې نه دي وَئیلي دا فعل چې مصنفؒ دلته بیان کړی یعني وَهُوَ يَمْشِىْ آه،

دا فعل د جاهلانو دی. وبينهما بون بعيد، البته ملایان د مکې مکرمې د دغسې فعل څخه سخت بدوري

او د حاجي شا په زړه کعبې ته گرځوي کې قدرت وو **مسئله** پوه سه. چې که دا حاجي دا خیال

وو چې زه به صبا وطن ته ځم، نو طواف الوداع دی په ترتیب مذکور وکړي. لکن کار به نه سو بیا به





یعني خو ورځې پاتې سو، نو دی بیا داسې نه کوي چې ما خو د کعبې شریفې څخه رخصت اخستی دی

باید زه نو لمونځونه په اطاق کې کوم، بلکه حرم شریف ته دی لمونځو ته ورځي هر وخت چې یې بیا

خیال سو چې زه به وطن ته ځم بیا دی بل طواف وداع پر هغه طریقه چې بیان یې تیر سو وکړي. ثم

وَالْمَرْاَةُ فِىْ جَمِيْعِ اَفْعَالِ الْحَجِّ كَالرَّجُلِ غَيْرَ اَنْ لَّا تَكْشِفُ

او ښځه په ټولو افعالو کې د حج لکه نر داسې ده، بیله دې چې ښځه به سر نه لڅوي نکړي او دا پر مخ

رَأْسَهَا وَتُسْدِلُ عَلٰى وَجْهِهَا شَيْئًا تَحْتَهٗ عِيْدَانٌ كَالْقُبَّةِ

پوټکړ او ځړوي چې لاندې تر ټکره یعني پر تندي باندې د نري لرگو یو شی وي لکه قبه چې منع کړي

هغه عیدان مسه کیده د دې مخ د غطا سره،

تَمْنَعُ مَسَّهٗ بِالْغِطَاءِ وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ وَلَا تَرْمُلُ

او نه دی پورته کوي آواز خپل په تلبیه ویلو کې بلکه صرف په ځان به ئې اوري، او اوږې به نه ښوروي

په طواف کې **فائده:** نو ښځې ته اضطباع هم نشته، ولې چې هغه د رمل د پاره غواړي

وَلَا تُهَرْوِلُ فِى السَّعْىِ بَيْنَ الْمِيْلَيْنِ الْاَخْضَرَيْنِ بَلْ تَمْشِىْ

او ښځه نه ځغلي نه چې سعي کوي په مابین کې د دوو شنو میلانو لکه نر. بلکه ښځه به په ارام سره تګ

عَلٰى هَيْئَتِهَا فِىْ جَمِيْعِ السَّعْىِ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ

په ټولو سعیو کې د صفا او مروه **فائده:** د دې مسائلو سبب صرف د دې ستر دی» قال

وَلَا تَحْلِقُ وَتُقَصِّرُ وَتَلْبَسُ الْمَخِيْطَ او ښځه چې د احرامه څخه ځان خلاص کړي سر به نه خرئي

بلکه قصر د ویښتانو دی وکړي په قدر د یوه بند د گوتې **فائده:** د ښځې سر خریل مثلت

دی یعني بد خوندی ده لکه نر چې بیره وخروي». او دا به رنځ کړي چې حاجي اغوندي»، او بحر

راتوکي واي چې موزي هم په پښو کولای سي او دستکلو هم په لاس کولای سي، قال المصنف:

**وَلَا تَزَاحِمُ الرِّجَالَ فِي إِسْتِلَامِ الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ** او ښځې به په مسحه کولو

کې د حجر اسود د نورو سړو ازدحام نه کوي **فائده**: ښځه بې میړه یا بې محرمه حج نسي کولای

و نرلی کولای سي. لکن چونکه دا مسئله په حج پوري تخصیص نه لري بلکه ښځه هیڅ سفر بې

له محرمه نسي کولای، نو ځکه مصنف ذکر نه کړه، او ښځې څخه طواف صدر په سبب د حیض

ساقط دی قاله الزیلعي شارح الکنز، قال المصنف:

## هَذَا تَمَامُ حَجِّ الْمُفْرِدِ وَهُوَ دُونَ التَّمَتُّعِ فِي الْفَضْلِ وَ

دا و و پوره بیان د حج مفرد، او حج افراد کم دی تر تمتع په ثواب کې او قران افضل تر تمتع

**اَلْقِرَانُ أَفْضَلُ مِنَ التَّمَتُّعِ** دی، پوه سه: چې دا زموږ مذهب دی او امام شافعيؒ حج افراد افضل بولي، او

امام مالکؒ تمتع افضل بولي والدلائل في الکتب المبسوطة من الشروح والفتاوی.

# تفسیر الولي

دیر ژر به ان شاء الله ستاسو لاسو ته ورسیږي

(۲)

## (۱۰) جلده

## نکاح قدوري

"د خوار حقاني فضل الحق په قلم یادګار شو"





# فَصْلُ الْقِرَانُ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ إِحْرَامِ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ

دا فصل دی د قران دا دی چې حاجي جمع وکړي په مابین کې د احرام د حج او د

**فَيَقُولُ اللَّهُمَّ بَعْدَ صَلٰوةِ رَكْعَتَيِ الْإِحْرَامِ اللَّهُمَّ إِنِّيْ**

عمرې نو داسې دې ووایي ای الله زه اراده لرم د عمرې او حج پس له دوه رکعته لمانځه د احرام نو ته

**أُرِيدُ الْعُمْرَةَ وَالْحَجَّ فَيَسِّرْهُمَا لِيْ وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّيْ ثُمَّ يُلَبِّيْ**

دواړه را ته آسانه کې او ته ئې را څخه قبول کړې بیا دې تلبیه ووایي **فائده**: په خوله

ویل مستحب دی ورنه صرف نیت قلبي هم کافي دی **فائده**: په عنوان کې د فصل په

حج د مخه کړې په سبب د افضلیت او په نیت کې ئې عمره د مخه کړه ولې! فقهاء وائي چې په نیت

کې دې عمره د مخه کوي تا چې ترتیب ذکري د ترتیب عملي سره برابر سي، او هغه خبره چې مولانا

اعزاز علیؒ د بحر څخه نقل کړې ده چې واو د پاره د ترتیب دی آه "هغه د نورو کتابو څخه

د اصول الفقه مخالفه ده، او دغه رنګه د دې آیت څخه هم مخالفه ده، فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ

وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ" كما لا يخفى، هو کې داسې

وئیلی وای چې ترتیب ذکري کله پر ترتیب عملي دلالت کوي کما في قوله تعالى: إِنَّ الصَّفَا وَ

الْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ" الآية: نو صحیح به وای"

**فائده** مذکوره صورت ته قران حقیقي وائي او قران حکمي دا دی چې د میقات څخه

اول د عمرې نیت وکړي او مخه تر دې چې د عمرې څلور شوطه طواف کوي نیت د حج هم پسې

وکړي او بیا دې د عمرې شوطونه او نور کارونه پسې پوره کړي، او یا د میقات څخه د حج احرام

وتړي او د مخه تر څلور شوطه ده طواف د حج د عمرې نیت وکړي لکن بحر وائي چې په صورت

ثاني کې ګناه ګار دی، **فائده**: د مصنفؒ د عنوان الفصل عبارت دواړو ته شامل

دی یعنې قوله ان یجمع آه، ولې چې مطلق جمع عامه ده که حقیقي وي او که حکمي وي، که څه هم د نیت

عبارت به یواځې دقرآن حقیقي د پاره دي . قـال المصنف رحمه الله

## فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ بَدَءَ بِطَوَافِ الْعُمْرَةِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ

بیا چې داخل شي د مکې ښار ته او حرم شریف ته نو شروع دې وکړي په طواف دعمرې اووه واره

## يَرْمُلُ فِي الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ فَقَطْ ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ

چې اوږې دې ښوروي په اولو دریو شوطو کې فقط او بیا تر طواف وروسته دې دوه رکعته واجب د طواف لمونځ وکړي . قـال المصنف رحمه الله :

## ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا وَيَقُومُ عَلَيْهِ دَاعِيًا مُكَبِّرًا مُهَلِّلًا

او بیا تر طواف وروسته دې ووزي و صفا ته او ودریږي دې ودې تکبیر وایونکې کلمه طیبه وایونکې او

## مُلَبِّيًا مُصَلِّيًا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَهْبِطُ نَحْوَ

درود وایونکې پر نبي علیه الصلوٰة والسلام باندې، او بیا دې د صفا نه کښته شي د مروه و خواته

## الْمَرْوَةِ وَيَسْعَىٰ بَيْنَ الْمِيلَيْنِ فَيُتِمُّ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ وَهٰذِهِ

او په مابین کې د میلین دې چابک تیر شي، او پوره دې کړي په دغه ډول اووه شوطه او دا هم افعال

## أَفْعَالُ الْعُمْرَةِ وَالْعُمْرَةُ سُنَّةٌ

دعمرې وه . او عمره په ګرده عمر کې یو وار سنت ده او بعض امامان یې واجب بولي. **پوهه سه**، چې وروسته تر پوره کولو دا افعالو دې ځان د احرام نه باسي ولې خو دی قارن دی،

## ثُمَّ يَطُوفُ طَوَافَ الْقُدُومِ لِلْحَجِّ ثُمَّ يُتِمُّ أَفْعَالَ الْحَجِّ

او وروسته دې طواف قدوم وکړي دحج دپاره، او بیا دې پسې پوره کې افعال دحج لکـه چې





## كَمَا تَقَدَّمَ فَإِذَا رَمَىٰ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ يَوْمَ النَّحْرِ وَجَبَ

د مخه تیره سوه نو هر کله چې ئې وویشتې جمرة العقبه په ورځ داختر، نو واجب سوه پر ده باندې

## عَلَيْهِ ذَبْحُ شَاةٍ أَوْ سُبُعُ بَدَنَةٍ

ذبح د پسه او یا اووم حصه د شراکت داوښ **پوهه سه**

چې بدنه که څه هم په عرف عام کې اوښ یا اوښې ته وائي لکن دلته مراد معنائي لغوي ده یعنې لوی حیوان نو غوا او غویې ته هم شامل سوه، قـال المصنف رحمه الله :

## فَإِذَا لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ قَبْلَ مَجِيْءِ يَوْمِ النَّحْرِ مِنْ

او که نه کې پیدا پسه وغیره یعنې قدرت یې نه وو پر ذبح د شاة وغیره د مالي سببه، نو دې دری ورځې

## أَشْهُرِ الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْحَجِّ وَلَوْ بِمَكَّةَ

روژې ونسي د مخه تر راتګ دلوی اختر د ورځې، ولې ده اختر په ورځ روژه مکروه ده، او دا

## بَعْدَ مُضِيِّ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ وَلَوْ فَرَّقَهَا جَازَ

دری ورځې به د اختر میاشتو څخه دحج وي

او اوه ورځې دې روژه ونسي بعد الفراغ دحج د افعالو څخه که څه هم په مکه کې نیسي یعنې کې په وطن کې نسي هم روادی، لکن پسـله دې چې ورځې د تشریق تیرې سي ولې چې په هغو کې هم روژه نیول مکروه ده، او کې متفرق ونسي هم روادی، قـال المصنف رحمه الله :

# وفصل التمتع هو ان يحرم بالعمرة فقط من الميقات

دا افضل دی د تمتع، تمتع دا دی چې سړی احرام وتړی په عمره سره یواځې د میقات څخه **پوهه:** چې په قید د میقات سره مکی والا وایستله. ولې چې هغوته نه قران روا دی او نه تمتع او هغه سړی نه دی خارج چې ذکور شو څخه تر میقات وړاندې احرام وتړی هغه روا دی. قال المصنف:

## فيقول بعد صلوة ركعتى الاحرام اللهم انى اريد

نو بیا دی ووائی په سله د کولو څخه دوو رکعتو د احرام، یا الله زه اراده د عمرې لرم نو ته ئې راته

## العمرة فيسرها لى وتقبلها منى ثم يلبى حتى يدخل

آسانه کړې او ته ئې را څخه قبوله کړې. او بیا دی تلبیه ووائې. نو چې داخل سی و مکې شریفې

## مكة فيطوف لها ويقطع التلبية باول طوافه و

ته نو دی طواف وکړي د پاره د عمرې او پرې دی نو دی تلبیه په اول طواف سره او رمل دی وکړي

## يرمل فيه ثم يصلى ركعتى الطواف ثم يسعى بين

په طواف کې یعنی په درې اولو شوطو کې، او بیا دی لمونځ وکړي دوه رکعته د طواف، او بیا دی

## الصفا والمروة بعد الوقوف على الصفا كما تقدم سبعة اشواط

سعی وکړي په مابین کې د صفا او مروه په سله د دریدو څخه پر صفا باندې لکه د مخه چې تیره سوه او وه شوطه دی پوره کړي.

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولجميع المؤمنين آمين





# ثم يحلق رأسه او يقصر اذا لم يسق الهدى

او بیا دی وخروی او یا دی قصر وکړي کې هدیه د مکې نه وو ورسره یعنی یا اوبن یا غویی یا ... دی قید فائده دا ده چې که چیرې هدیه ورسره وي هغه نه حلق او قصر نه دی روا حتی کې مرو خرایه د مر پر لاز هر دی ولې چې هدیه مانع د تحلل ده شرعًا. **مسئله:** پر متمتع خواه لازمه نه ده چې ځان به د احرام باسی په حلق یا قصر سره بلکه دی اختیار لری که حلق وغیره کوی او که دی پر احرام باندې دوام کوی تر احرامه د حج، بحر ودر. قال المصنف:

## وحل له كل شئ من الجماع وغيره ويستمر حلالا وان

او حلال سول ورته هر شی چې په احرام کې ځنی منع وو که جماع د مایی سره کوی او نور. که

## ساق الهدى لا يتحلل من عمرته

ګنډلی جامې اغوستل یا خوشبوئي لګول او نور ورته کارونه.

**پوهه:** چې په دوران کې د حلال والی د عمرې څخه طوافونه دی ډیر کوي، ولې چې طواف تر نفلی لمانځه افضل دی افاقی سړی لره کما مرّ، او نوری نفلی عمرې دی کوی خصوصًا عمره د جعرانه څخه چې هغه آنحضرت صلی الله علیه وسلم کړې ده، او د تنعیم څخه چې دوسه په یوه وی هغوی عمرې دی کوی، او هغه ملا چې په تنعیم کی ناست دی او خلکو ته وائی چې دا پیری عمرې کول بدعت دی دلیل دا وائی چې علیه الصلوٰة والسلام دحج په وخت کی یوه عمره کړې ده، نو دی ملا ته چې منع کوونکی دی د معروف فی الشرع څخه چې عمره ده تاسی دا ورته ووایاست چې نبی اکرم صلی الله علیه وسلم خو په سله هجرت څخه صرف یو حج کړی دی او قبل الهجرت د حجود رک په نه دی معلوم نو اهل مکه والمدینه ولې په لس ګونی حجونه کوی باید هغه بدعت وي.

**فائده ۵:** د هر عمل اصل چې په شرع شریف کی ثابته وی هغه نه بدعت ویل ګمراهی ده، مثلًا تسبیح متعارف الیوم خو آنحضرت صلی الله علیه وسلم لیدلی هم نه دی لکن چونکه اصل لری نو بدعت نه دی او که بدعت وي نو د سعودی حکومت ولې دا اسباب د بدعت یعنی تسبیح په

خپل وطن کی بیع وشراء ته پریږدی، قـــال المصنفؒ:

**فَإِذَا جَاءَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ مِنَ الْحَرَمِ وَ**

نوچې داتمه ورځ راسی نودی متمتع احرام دحج وتړی دحرم شریف نه اودمنیٰ پرخوادی روان سی کما

**يَخْرُجُ إِلَى مِنًى فَإِذَا رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ يَوْمَ النَّحْرِ لَزِمَهُ**

تفمیله پس چی ویولی جمره عقبه په ورځ دلوی اخترکی نوپرده واجب سو پـه ذبح کول او یـا

**ذَبْحُ شَاةٍ أَوْ سُبُعُ بُدْنَةٍ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ**

ووومه حصه داوښ یادغوائی، اوکی طاقت نه درلودی نودی درې ورځی روژی ونیسی مخه تر

**قَبْلَ مَجِيءِ يَوْمِ النَّحْرِ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعَ كَالْقَارِنِ**

راتلو دورځی داختراواوه ورځی چی دحج نخه رجوع کوی لکه دقـارن چی حکم یې عنقریب تیرسو

**فَإِنْ لَمْ يَصُمِ الثَّلَاثَةَ حَتَّى جَاءَ يَوْمُ النَّحْرِ تَعَيَّنَ عَلَيْهِ**

او کی دغه درې روژی نه وینولی حتی چی ده اختر ورځ پراغله نوبیامتعین سو پرده باندی

**ذَبْحُ شَاةٍ وَلَا يُجْزِئُهُ صَوْمٌ وَلَا صَدَقَةٌ** ذبح دشاة یعنې په دمرۍ خواچی کوی

او کافی نه گڼل ده ته روژی که هرڅو ونیسی او همدارنگه بله صدقه اوخیرات "

خوشخبری







# فَصْلٌ اَلْعُمْرَةُ سُنَّةٌ فِي جَمِيعِ السَّنَةِ

دا فصل دی دعمری، عمره سنت ده اووخت یې په ټوله کال کی دی،

**مسئله:** چی یوه عمره سړی وکړی یوائی هروخت چی وی سنت یه پرځای سو مگر عمره په روژه کی تر ټولو افضل ده، لکن دقران عمره په ځای کی دسنت نه درېږی کذا قال شامی فی رد المحتار، قـــال المصنفؒ:

**وَتُكْرَهُ يَوْمَ عَرَفَةَ وَيَوْمَ النَّحْرِ وَأَيَّامَ التَّشْرِيقِ**

ومکروه ده دعمری احرام تړل په ورځ دعرفات او پـه ورځ داختر او پـه ورځو کی دتشریق چی درې دي، حتیٰ کی په مذکوره ورځو کی احرام دعمري وتاړ دم پرلازم دی کی خـدم بیرته پرین دی

**فـــائـــده:** کی احرام دعمری تردغو ورځو مخکی تړلی وو مگراداء دافعال یې په دغو ورځو کی وکړه بیا هیڅ کراهت نسته اوبه دم پرلازم دی، قـــال المصنفؒ

**وَكَيْفِيَّتُهَا اَنْ يُّحْرِمَ لَهَا مِنْ مَّكَّةَ مِنَ الْحِلِّ بِخِلَافِ إِحْرَامِهِ**

الکیفیت دعمری یعنی مکی والوله دادی چی احرام دی دحدودو نخه دمکی وتړی لکن دامین

**لِلْحَجِّ فَإِنَّهُ مِنَ الْحَرَمِ وَأَمَّا الْآفَاقِيُّ الَّذِي**

حل نخه بخلاف دهغه چی حاجی متمتع وی احرام دحج دپاره تړی ولی هغه به دحرم شریف نخه

**لَمْ يَدْخُلْ مَكَّةَ فَيُحْرِمُ إِذَا قَصَدَهَا مِنَ الْمِيقَاتِ**

تړی کما مر، او هغه چې اطراف سړی دی چی هنوز مکی ته وی داخل سوی نودی احرام تړی دعمری دپاره کی قصد د دخول دمکی وو دمیقات نخه، حاصل دکلام دادی که دسړي دخول د مکی مکري قصد وو په وخت د رسیدو ومیقات ته، نوپرهغه سړي واجبه ده چی احرام دعمري به د میقات

شو لازم نه دی، حتی که دغه سړی ترخپل کاره د دخول مکی قصد وکړی دخول د مکی ودې ته
بیله احرام روا دی، عن در، قـــــال المصنفـ:

# ثُمَّ يَطُوفُ وَيَسْعٰى لَهَا ثُمَّ يَحْلِقُ وَقَدْ حَلَّ مِنْهَا كَمَا بَيَّنَّا

او بیا دی طواف او سعی وکړی د پاره د عمری او بیا دی سر وخریږی او په تحقیق دی خلاص سو د عمری
شخه لکه چی مونږ په د مخه بیان کړی وو په حمد د خدای جل جلاله

# بِحَمْدِ اللّٰهِ

یعنی په توفیق د خدای جل جلاله، قـــــال المصنفـ

# تَنْبِيْهٌ وَاَفْضَلُ الْاَيَّامِ يَوْمُ عَرَفَةَ اِذَا وَافَقَ يَوْمَ

آګاهی: او افضل د ورځو د عرفات ورځ ده چی برابره سی د جمعی د ورځی سره او دغه حج افضل

# الْجُمُعَةِ وَهُوَ اَفْضَلُ مِنْ سَبْعَةٍ مِنْ حَجَّةٍ فِيْ غَيْرِ جُمُعَةٍ

دی تر اویا حجو چی د عرفات ورځ یې په غیر کی د جمعی وی، د دی خبری روایت کړی دی مصنف د

# رَوَاهُ صَاحِبُ مِعْرَاجِ الدِّرَايَةِ بِقَوْلِهِ

معراج الدرایه په دی قول سره
خپل دا قول د مصنف د معراج الدرایه دی

# وَقَدْ صَحَّ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اَفْضَلُ

چی په تحقیق صحیح ثبوت ته رسیدلی دی دا خبره د رسول الله صلی الله علیه وسلم شخه چی ده مبارک وویل چی

# الْاَيَّامِ يَوْمُ عَرَفَةَ اِذَا وَافَقَ جُمُعَةً وَهُوَ اَفْضَلُ مِنْ

بهترینه د ورځو د عرفات ورځ ده، چی برابره سی د جمعی د ورځی سره او دغه حج افضل دی تر اویا حجه

# سَبْعِيْنَ حَجَّةً ذَكَرَهُ فِيْ تَجْرِيْدِ الصِّحَاحِ بِعَلَامَةِ الْمُوَطَّا

دا حدیث ذکر کړی دی صاحب تجرید الصحاح چی د حدیثو کتاب دی چی د مصنف په دا خیال دی چی په دی





# وَكَذَا قَالَهُ الزَّيْلَعِيُّ شَارِحُ الْكَنْزِ

چی په دی کتاب کی خالص صحاح حدیث ذکر سوی دی، او صاحب
تجرید وړی حدیث ته علامه د موطا یعنی د امام مالک وړکړی ده، او همدا رنګه خبره زیلعی چی
شارح د کنز دی کړیده،

**تحقیق** دا حدیث چی مصنف ذکر کړی، مناوی د بعض حفاظو شخه نقل کړی دی چی دا حدیث
باطل دی اصل نه لری، هو! امام غزالی په احیاء العلوم کی ذکر کړی، د خبره چی
چی بعض سلف وائی چی برابره سی ورځ د عرفات د ورځی سره د جمعی بخښنه کیږی ټولو عرفات
خلکو ته، او دا هغه شریفه ورځ ده په دنیا کی او د علیه الصلوٰة والسلام حجة الوداع هم په دغه ورځ
کی وو، او علیه الصلوٰة والسلام په عرفات ولاړ وو چی دا ایت پر نازل سو. اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ
دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ، الایة: نو اهل کتابو یعنی یهودیانو حضرت عمرؓ ته وویل چی
دا ایت زمونږ په کتاب کی نازل سوی وای مونږ به ئی ورځ د نزول اختر ګرځولی وای،
حضرت عمرؓ وخوته وویل چی زه شاهدی ورکوم په دی سره چی دا ایت په ورځ کی د دوو اخترو
نازل سوی پر علیه الصلوٰة والسلام باندی چی هم ورځ د عرفات وه او هم ورځ د جمعی وه. او علیه
الصلوٰة والسلام پر عرفات ولاړ وو، انتهی قول الغزالی فی الاحیاء. درویش وائی چی په افضلیت
د دغه ورځی هیڅ څوک د امت محمدیؐ شخه مخالف نه دی، او په دی کی شک نسته چی ایت مذکور
هم په دغه ورځ کی او په دغه وخت کی نازل سوی دی، او محاوره د عمر رضی الله تعالی عنه او د یهودیانو
هم د روسته ده، لکن د حدیث فوق الذکر په صحت کی اختلاف دی هغه د حفاظو د حدیثو
کار دی یعنی د دوی وکتابو ته دی رجوع وکړل سی، زه په دی باره کی ډیر عاجز یم، او خبره
دالله اعلم بالصواب غوره کوم، او حافظ ابن حجرؒ په شرح کی د بخاری د دی حدیث په باره کی وائی
هو حدیث لا اعرفه، ولی راوی صحابی ئی نه دی ذکر سوی او نه ئی هغه څوک ذکر سوی دی چی دا حدیث
ئی را اخستی وی، درویش وائی چی مزید تحقیق د دی خبری په شرحه کی د بخاری د ابن حجرؒ
مطالعه کړه سی او شامی دی هم په غور سره مطالعه سی،

## وَ الْمُجَاوَرَةُ بِمَكَّةَ مَكْرُوْهَةٌ عِنْدَ اَبِیْ حَنِیْفَةَ رَحِمَهُ

او اوسیدل په مکه مکرمه کی مکروه دی په نیزد امام اعظمؒ، ولی چی خوك همیشه توب نشی کولای

## اللّٰهُ تَعَالٰی لِعَدَمِ الْقِیَامِ بِحُقُوْقِ الْبَیْتِ وَالْحَرَمِ

په حقوقو یعنی د آدابو د بیت الله شریف او د حرم منیف، او نفی کړی دی کراهت د مجاورت مذکوره

## وَنَفَی الْكَرَاهَةَ صَاحِبَاهُ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ تَعَالٰی

د امام اعظمؒ دوو شاگردانو یعنی امام ابو یوسفؒ او امام محمدؒ، او طحطاوی وائی چی د مجاورت د مدینی منوری هم دغه حکم دی آه، په احیاء العلوم کی وائی چی په قول د امام اعظمؒ عمل کوی هغه علماء چی ډیر احتیاط کوی او د خدائ څخه ډیر بیریږی، تفصیل د دی مسئلی په رد محتار کی مطالعه کړه۔







# بَابُ الْجِنَایَاتِ

دا باب ثابت دی په بیان کی د جنایاتو، یعنی د حج او عمری او قران او تمتع په باره کی، درویش وائی چی زړه کړه ددی باب حاجی ته ډیره مهمه خبره ده، تا چی د فساده د حج یا د یوه د مبا دوو د مودتا وان څخه خلاص سی چی بیان به ئې په دی باب کی راسی، قال المصنفؒ

## وَهِیَ عَلٰی قِسْمَیْنِ جِنَایَةٌ عَلَی الْاِحْرَامِ وَجِنَایَةٌ عَلَی الْحَرَمِ

یعنی مطلق جنایت یعنی تجاوز تر شرعی حد پر دوه قسمه دی یو جنایت پر احرام دی او بل جنایت پر حرم او

## وَالثَّانِیَةُ لَا یَخْتَصُّ بِالْمُحْرِمِ وَجِنَایَةُ الْمُحْرِمِ عَلٰی اَقْسَامٍ

او دوهم قسم جنایت پر حرم تخصیص په محرم پوری نه لری بلکه حلال سړی ته هم ناروا دی او جنایت د محرم څو قسمه دی، یو قسم په دا دی چی دم واجبوی۔

## مِنْهَا مَا یُوْجِبُ دَمًا

یوه سه چی دم چی مطلق ذکر سی مراد څخه ئې یوه پسه دی، نو یوه سه په ټولو ځایو کی مراد دی مگر نه په دوه ځایه کی، یو دا دی چی جماع وکړی د مانبی سره پسله وقوف څخه د عرفات د مخه تر حلق ده سر، او دوهم دا دی چی طواف زیارت به جنابت سره وکړی او یا په حال د حیض او نفاس یه وکړی، ولی چی واجب په دی دوه ځایه کی اوښ دی، قال المصنفؒ:

## وَمِنْهَا مَا یُوْجِبُ صَدَقَةً وَهِیَ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ وَمِنْهَا

او بعض په صدقه واجبوی چی هغه نیمه کاسه د غنمو او بعض یه کمه تر نصف صاع واجبوی، لکه لکه چی شپږه مږه کړی یا ملخ یا کیکه وامثالها، ولی دا

## مَا یُوْجِبُ دُوْنَ ذٰلِكَ

صدقه د سړی په اختیار پوری اړه لری هر څه چی وکړ

قال امیر المؤمنین عمر بن الخطاب حین سُئل عن قتل المحرم الجراد، التمرة خیر من جرادہ،

## وَمِنْهَا مَا يُوجِبُ الْقِيمَةَ وَهِيَ جَزَاءُ الصَّيْدِ وَيَتَعَدَّدُ

او بعض هغه دي چې قیمت دشي واجبوي چې هغه نو جزاء د ښکار ده، او جزاء د ښکار په تعدد د قاتلانو محرمانو متعدده ګرځي، مثلاً که دوه

## الْجَزَاءُ بِتَعَدُّدِ الْقَاتِلِينَ الْمُجْرِمِينَ

کسه یو ښکار مړ کړي پر هر یو مستقله جزاء ده، دوئی جزاوې په دې سته چې دوه قتله پیدا سوه، او که چیرې دوه حلال کسان د حرم ښکار وکړي یوه جزاء ده ولې د هغو جزاء خو په بحرمتي د حرم ده حرم خو یو دی. طحطاوي، بحر

## فَالَّتِي يُوجِبُ دَمًا هِيَ مَا لَوْ طَيَّبَ مُحْرِمٌ بَالِغٌ عُضْوًا

نو هغه جنایت چې واجبوي دم یو مثل په دا دي چې خوشبویه کړي محرم بالغ، په قید د بالغ کښتی نابالغ خارج سو ولې چې پر هغه شی نشته، **پوښتنه**: چې خوشبوئي لګول عام دي که په هیره سره وي او یا په حکم شرعي ناخبره وي او یا په زوره څوک په ولګوي، او عضو عام ده حتی خولې ته هم شامل ده، عز، بحر

## اَوْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِحِنَّاءٍ

او یا سر رنګ کړي په نکریزو **پوښتنه** حناء خو هم طیب او خوشبوئي ده لقوله علیه الصلوٰة والسلام، الحناء طیب، نو پس لږ ذکر د طیب د حناء ذکر ته څه ضرورت وو **جواب** د حناء په طیب والي کې په احادیثو کې اختلاف دی نو په څکه حناء ذکر کړه **مسئله** که د حناء اوبه نرۍ وي خو په حناء سره یو دم لازمیږي او که کلکې نکریزې پر سر واچولې چې سر یې په پټ کړي نو بیا دوه دمه لازمیږي یو د طیب لګولو د سببه وبل د سر د پټولو له کبله لکن د تغطیة الرأس د مرحلته لازمیږي چې شپا نه روز دا نکریزې د ده پر سر پرتې وي، او بل دا چې یا بتوله سر یې نیولی وي او یا ربع د سر او که زمانه تر شپانه [illegible] نکریزې پرتې ربع د راس پر لږ ځای باندې ایښې وي، نو د وهم دم نشته، بحر ... بزې په حناء سر نګولم داغه حکم دی، او په مبسوط چې دا سی عبارت





واقع دی، رَأْسَهُ وَلِحْيَتَهُ بِحِنَّاءٍ، هغو او په معناده اوري **مسئله** که د دواء وغیره د پاره ماسوا د حناء نخر لکه خطمي یا کنډري پر سر یې احرام کې وتړلې چې سر یې په پټ کړي بیا م یو دم د تغطیة الرأس پر لازم دی بالشرطین المذکورین کذا فی البحر وغیره، قال المصنف

## اَوِ ادَّهَنَ بِزَيْتٍ وَنَحْوِهِ

او یا ځان غوړ کړي یعنی یا سر یا مخ او یا بل ځای، په غوړو د زیتون د درختی که څه هم خوشبویه نه وي، او یا ځان غوړ کړي په مثل د روغن زیتون لکه غوړي د کنجیتو یا غوړي د باداموي یا غوړي د کوفري وغیره الخ، والضابط فیه، هر هغه غوړي او تیل چې په عادت کې سر یا مخ یا بل ځای خلک په غوړ وي نو د هغو په غوړ یدو سره دم لازمیږي او که په عادت چا سر و مخ وغیره په هغو غوړ و نه غوړول لکه دواړ ګو غوړي یا د لګه غوړي نو په هغو غوړو که حاجي چاودي د پښو یا لاسو په غوړ کړي دم نه لازمیږي. **مسئله**: د غو تو لو غوړو او تیلو په خوړلو کې دم نه لازمیږي، وهذا حاصل ما في البحر، قال المصنف

## اَوْ لَبِسَ مَخِيطًا

یا وا غوندي رغ سوي یعنی ګنډلی جامه هره جامه چې وي، **فائده** مراد د لبس نخر لبس معتاد دی نو که حاجي پر توګ یا اوږه واچوه یا قمیص په لنګ کړي یا په صدري په غیر کې نیولی وه په دې شي نه لازمیږي کذا في البحر، قال المصنف

## اَوْ سَتَرَ رَأْسَهُ يَوْمًا كَامِلًا اَوْ حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهِ

او یا په پټ کړي سر چې هر یو د مه لبس مخیط او د ستر الرأس یوه ورځ کامله وي، او یا یه وخروي سر په چاړه وي او که په موي پاک وي، حتی کې د ږیرې و ویښتان په نسبی وکښه، حاصل دا دی چې مراد د حلق نخر لیرې کول دی د ویښتانو د سر یا د ږیرې وغیره په هر توګه چې وي، ولو که ږیره په او لګیت وسوځي، قال

## اَوْ مَحْجَمَهُ اَوْ اَحَدَ اِبْطَيْهِ اَوْ عَانَتَهُ اَوْ رَقَبَتَهُ

او یا په ځای د وینو کښلو وخرایه او یا یه یو د تخرګو نخر (بغلو) وخرایه، او یا یه زیرناف وخرایه او یا یه څټ وخرایه،

## اَوْقَصَّ اَظْفَارَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ بِمَجْلِسٍ وَاحِدٍ اَوْيَدًا اَوْرِجْلًا

او یا یې پرې کړه نوکان د دواړو لاسو اود دواړو پښو په یوه مجلس کې، او یا د یوه لاس یا د یوې پښې نوکان ئې پرې کړه، نو په دغو صورتو کې یو دم پر لازم دی، او کې د یوه لاس نوکان په یوه مجلس کې پرې کړه او د بل لاس نوکان یې په بل مجلس کې پرې کړه دوه دمه پر لازمیږی، او کې د یوې پښې نوکان بیا په بل مجلس کې پرې کړه درې دم پر لازمیږی او کې د بلې پښې نوکان هم په ورته ډول پرې کړه څلور دم پر لازمیږی ولذا قید المنصف بمجلس واحد، قـــــــال المُصنف رحمه الله

## اَوْتَرَكَ وَاجِبًا مِمَّا تَقَدَّمَ بَيَانُهُ وَفِيْ اَخْذِ شَارِبِهِ حُكُوْمَةٌ

او یا یې پرېږدی یو واجب چې بیان یې د مخه تیر سو او په پریکولو کې د بریتو محکمه کیده د بزیری، د دی حکومت بیان دا دی چې سړی دی فکر وکړی چې دغه وهلی ویښتان د بږیری د ربع څومره حصه جوړه وی حتی که په دغه ویښتان د بریتو په اندازه د اتمی حصی وه نو ربع الدم پر لازمیږی. قـــــال

## وَالَّتِىْ تُوْجِبُ الصَّدَقَةَ بِنِصْفِ صَاعٍ مِّنْ بُرٍّ اَوْ قِيْمَتُهٗ

او هغه شیان چې صدقه واجبوی په نیمی کاسه د غنمو یا په قیمت د نیمی کاسی هغه دا دی، لکه چې حاجی

## هِىَ مَا لَوْطَيَّبَ اَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ اَوْلَبِسَ مُخِيْطًا اَوْغَطّٰى

خوشبویه کړی کم تر یوه اندامه، او یا یې رغ کړی جامه واغوندی، او یا سر پټ کړی کم تر یوی ورځی

## رَأْسَهٗ اَقَلَّ مِنْ يَوْمٍ اَوْحَلَقَ اَقَلَّ مِنْ رُبُعِ رَأْسِهٖ اَوْ

او یا وخرئی کم تر څلورمی د سر او یا پرې کړی یو نوک، او د غه رنګه د هر نوک په پرې کولو کې نیمه کاسه

## قَصَّ ظُفْرًا وَكَذَا لِكُلِّ ظُفْرٍ نِصْفُ صَاعٍ اِلَّا اَنْ يَّبْلُغَ الْمَجْمُوْعُ

د، مـــګر هغـــه وخت کـ مجموعه او یـــو له پرې کړه نو ودم تـه ورسیده،





## دَمًا فَيَنْقُصُ مَا شَاءَ مِنْهُ كَخَمْسَةٍ مُّنْفَرِدَةٍ

نو بیا دی کم کړی چې د ده خوښه وی ذ دمه څخه لکه چې یو سړی چې پرې کړی پنځه نوکان جلا جلا. **پوه سه**: چې پنځه نوکان چې سره متصل وی خو بیا دی لازم وه کم او س چې ده پنځه نوکان متفرق پرې کړه په اندازه بخوتر خو ورسیده، نو که دم ذبح کې خوښه کاردی، او که د نوکانو په حساب پنځه نیمی کاسی ورکوی چې تر دم کمیږی، هم د ده خوښه ده، قــــــال المُصنف رحمه الله:

## اَوْطَافَ لِلْقُدُوْمِ اَوْ لِلصَّدَرِ مُحْدِثًا وَتَجِبُ شَاةٌ لَوْ طَافَ جُنُبًا

او دغه رنګ صدقه د نصف صاع واجبه ده کې طواف وکړی د قدوم د پاره یا د صدر د پاره، په بې اودسیا او واجب دی شاة کې طواف په جنابت کې وکړی، قال

## اَوْتَرَكَ شَوْطًا مِّنْ طَوَافِ الصَّدَرِ وَكَذَا لِكُلِّ شَوْطٍ مِّنْ اَقَلِّهٖ

او یا پرېږدی یو شوط د طواف صدر یعنی صدقه د نصف صاع پر لازمه ده او دغه رنګه نصف صاع پر لازمه ده هر شوط د پاره د اقل وارو څخه یعنی چې دری دی، او کې اکثر پرېښول بیا دم پر لازم دی. قــــــال المُصنف رحمه الله:

## اَوْحَصَاةٍ مِّنْ اِحْدَى الْجِمَارِ وَكَذَا لِكُلِّ حَصَاةٍ مَّا لَمْ يَبْلُغْ رَمْىَ يَوْمٍ

او دغه رنګه صدقه پر لازمه ده کې پرېښول ویشتل د یوې ډبرې په یوه کې د جمارو، او دغه رنګه صدقه لازمه وه د هرې ډبرې د پاره تر هغو چې هغه متروکه ډبرې وه رمی ته د یوې ورځی نه وی رسیدلی چې اوه دانې دی امام طحطاوی وایې که چیرې ورمی ته د یوې ورځې ورسیدی یا اکثری حصی ته د یوې ورځې نو بیا ده شاة لازم دی، قــــــال المُصنف رحمه الله:

## اِلَّا اَنْ تَبْلُغَ شَاةً فَيَنْقُصُ مَا شَاءَ

مګر هغه وخت که مجموع د هغی چې متفرق وی پر ده واجب صدقات وه قیمت د شاة ورسیدلی یعنی که ذبح وکړی خوښه کاردی او صدقات په اندازه د هغو ورکړی چې تر شاة کمی وی هم کولای سی،

نودی کمولای سی دَقیمت څخه دَشاة هَغه چې دده خوښه وي» قَـــالَ المُصَنِّفُ

اَوْحَلَقَ رَأسَ غَيْرِهِ اَوْقَصَّ اَظْفَارَهٗ
اودغه رنګه صَدقه دې چې محرم وخروی

سرد بل چا که هغه بل محرم وی که حلال، اویا محرم دبل چا نوکان ورپری کړي، پوه سه

چې محرم کله دبل محرم سر وخروی چې د محرم حالق او محلوق دافعال دحج نه بیله طواف زیارته او رمی

دجمراتِ ثلثه وو نوله پوره وی یعنی جمره عقبه یه ویشتلی وي او پسه د تمتع یر ذبح کړی وي، اود

دواړو وقت د احلال راورسید لی وي، نونه پر حالق اونه پر محلوق شی سته، ط وانی که محرم دبل

سړي عضوه ورخوشبویه کړي اویا یه ګنډلی کالي پرواغوستی پر دغه محرم هیڅ شی نسته په اجماع سره

قَالَ المصنف
وَاِنْ تَطَيَّبَ اَوْلَبِسَ اَوْحَلَقَ بِعُذْرٍ تَخَيَّرَ بَيْنَ الذَّبْحِ

اوکه چیری محرم خوشبوئی ولګوله اویا یه کالی واغوستل اویا یه سر وخرایه داټوله د عذر د سببه نودی

اَوِالتَّصَدُّقِ بِثَلَاثَةِ اَصُوْعٍ عَلٰى سِتَّةِ مَسَاكِيْنَ اَوْ

مختاره دی که پسه ذبح کوی اوکه دری کاسی غنم وشپږ ومسکینا نوته ورکوی، اودری ورځې

صِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ
روژی نسی،
وَالَّتِىْ تُوْجِبُ اَقَلَّ مِنْ نِصْفِ

او هغه شی چې واجبوی کم تر نیمی کاسی هغه لکه حاجي چې مړه

صَاعٍ فَهِىَ مَا لَوْقَتَلَ قَمْلَةً
کړی سپږه او یا مړ کړي ملخ، درویش وایې
چې، دغه رنګه دی حکم د کیکی اود میږی اونور
اوغیره
فَائده: دغه شیان په هره نوع کی کم تردی بالاوه بیا صدقه د نصف صاع پر لازم ده» قَالَ

وَالَّتِىْ تُوْجِبُ الْقِيْمَةَ فَهِىَ مَا لَوْقَتَلَ صَيْدًا فَيُقَوِّمُهٗ عَدْلَانِ

او هغه جنایات چې قیمت واجبوی لکه محرم چې ووژنی ښکاری شئ لکه کوتره، اوسئی، دغره پسه وغیره،





فِىْ مَقْتَلِهٖ اَوْقَرِيْبٍ مِّنْهُ فَاِنْ بَلَغَتْ هَدْيًا فَلَهُ الْخِيَارُ

نو هغه ښکار ته به قیمت ایږدی دوه عادلان کسان په هغه ځای کی دقتل یعنی که هلته کلی اوخلک وه، اویا نژدی وه

اِنْ شَآءَ اِشْتَرَاهُ وَذَبَحَهٗ اَوِاشْتَرٰى طَعَامًا وَتَصَدَّقَ

هغه ځای دقتل که چیری هلته خلګ وه، نوکی قیمت د هدیه اندازی ته ورسیدی یعنی پسه په رانیول کیدی نوده لره اختیار دی کی خوښه سی پسه دی

بِهٖ لِكُلِّ فَقِيْرٍ نِصْفُ صَاعٍ اَوْصَامَ عَنْ طَعَامِ كُلِّ

پر رانسی او ذبح دی کی او په مسکینا نو د حرم دی ودوشی یعنی ده ته پسه خورک نارو دی، او یا دی رانسی د قیمت په روپو غنم او خیرات دی کړي

مِسْكِيْنٍ يَوْمًا وَلَوْفَضَلَ اَقَلَّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ تَصَدَّقَ

وهر فقیرته دی نیمه کاسه ورکوی اویادی روژی ونسی لیعنی که غم متفرقي روژی نیسی، دطعام د هر مسکین

بِهٖ اَوْصَامَ يَوْمًا
چې نیمه کاسه وه په ځای کی یوه روژه اوکه زیات وو قیمت تر نیمه کاسه
کم نودی هغه خیرات کړي اویادی کورته روژه ونسي، قَالَ المُصَنِّفُ

وَيَجِبُ قِيْمَةُ مَا نَقَصَ وَبِنَتْفِ شَعْرِهِ الَّذِىْ لَايَطِيْرُ

او واجب دی قیمت د نقصان، لیعنی صید یه ټپی کړي چې سره د هغه ټپه صید ځان ساتلی سوای،

بِهٖ وَشَعْرِهٖ وَقَطْعِ عُضْوٍ لَايَمْنَعُهُ الْاِمْتِنَاعَ بِهٖ

نودا صید دی یو وار سالم قیمت کړی مثلاً قیمت یه دوئ روپۍ وو، اویا دی ټپی قیمت کړي مثلاً قیمت

یه یوه روپۍ سوه، نو ما بین القیمتین چې یوه روپۍ واجبه ده، اودغه رنګه قیمت د نقصان دی ور

کوی په کښلو یعنی شکولو د هغه بڼرکو دمرغه چې په هغو بڼرکو د پرواز نه کاوه، لکه د نس بڼرکي

یادشا بڼرکی، اودغه رنګه په کښلو دوېښتا نو د وسی مثلاً او یا په پری کولو د داسی اندام چې صید به

نه منع کاوه د ځان ساتنې څخه د ښکار، لکه مثلًا غوږ یې ور پرې کړي یا لکی، نو بیا یې د غوټولو صورتو کې قیمت د نقصان پر محرم لازم دی، په هغه معنا چې تیره سوه، یعنې یو وار دې سالم د دغو عیبو څخه چې د محرم د خوا ور رسید لی دی قیمت کړي، او بیا دې د دغو عیبو سره قیمت کړي، نو پر محرم با ندې ما بین القیمتین واجب دی، قــــال المُصنفؒ:

## وَيَجِبُ الْقِيمَةُ بِقَطْعِ بَعْضِ قَوَائِمِهٖ وَنَتْفِ رِيْشِهٖ

او واجب دی پوره قیمت د ښکار په پرې کولو سره د بعض پښو یعنې لکه وُوسی د اسې ښکار ور چې د پښو په خُغاسته بې د ښکاری څخه ځان خلاصوه او د غه رنګه پوره قیمت لازم دی په

**وَكَسْرِ بَيْضِهٖ** کښلو سره د هگیو بـــنرکو د مرغه، **درویش وائی** یا یه هغه بنرکی ګندی و کا بزی چې مرغه پرواز په کوي، لکه دوزر بنرکی، او د غه رنګه پوره قیمت واجب دی په ماتولو سره د اګی د مرغه، قــــال المُصنفؒ

## وَلَا يُجَاوِزُ عَنْ شَاةٍ بِقَتْلِ السَّبُعِ وَإِنْ صَالَ لَا شَيْءَ بِقَتْلِهٖ

او نه تیریږي نه کیږي تر یوه پسه یعنې کې څه هم قیمت یې تر یوه پسه بالا وي، په وژلو سره د درنده حیوان چې غوښې ئې نه خوړل کیږي، لکه لیوه، پړانګ، فیل، سرکوزی، وغیره او که هغه درنده پر محرم حمله وکړه او ده مړ کی هیڅ شی نسته په قتل کی، قــــال المُصنفؒ:

## وَلَا يُجْزِئُ الصَّوْمُ بِقَتْلِ الْحَلَالِ صَيْدَ الْحَرَمِ

او کفایت نه کولای روژه په وژلو کې د حلال سړي صید د حرم بلکه حتمًا به قیمت ورکوي بخلاف المحرم کما مرّ،

## وَلَا يَقْطَعُ حَشِيْشَ الْحَرَمِ وَشَجَرَةَ النَّابِتِ بِنَفْسِهٖ

## وَلَيْسَ مِمَّا يُنْبِتُهُ النَّاسُ بَلِ الْمُقِيْمَةُ

او نه کفایت کوي روژه په قطع کولو کې د وبنو د حرم او په قطع کې د هغې درختې چې شنه سوی وي بخپله یعنې چا نه وي شنه کړې، او نه وي د غه درخته د جنسه څخه د هغو درختو چې خلګ





شنې کوي بلکه لازم دی قیمت،

**پوښتــه**: چې درختې د حرم شریف څلور قسمه دي،

## دحرم درختې پر څلور قسمه دی

د دریو قسمو درختو په قطعه کولو او نفع په اخستلو کې هیڅ جزاء نسته او نه د هغه قطع جنایت دی

۱ هغه درخته ده چې خلګ یې شنه کړي او دا درخته هم د جنسه څخه د هغو درختو وي چې خلګ یې شنې کوي، لکه د انارو، انګورو، توت وغیرها،

۲ هغه درخته ده چې خلګو خوشنه کړي وي مګر دا درخته د جنسه د هغو درختو نه وي چې خلګ ئې شنې کوي لکه د غرو بعض درختې،

۳ هغه درخته ده چې شنه بخپله سي یعنې چا نه وي شنه کړي لکن د هغو درختو د جنسو څخه وي چې خلګ یې شنې کوي لکه د غرو انځر یا د غرو انګور یا د غرو زیتون وغیره،

۴ هغه قسم درخته ده چې په قطع کولو کې جزاء سته یعنې قیمت، هغه هغه درخته ده چې شنه سوي بخپله وي یعنې په قدرت تو ګه، او نه وي د جنسه څخه د هغو درختو چې خلګ ئې شنې کوي،

**فـــائده**: څلورم قسم درخته عامه ده که د سړي په مملوکه ځمکه کې شنه سوي وي، او یا په غرو او شاړو ځمکو کې شنه سوي وي؛ فقهاءؒ وائي چې که د سړي په ځمکه کې د کیکرو درخته بخپله شنه سوي وه، بل سړي قطع کړه پر قاطع باندې دوه قیمته لازم دی یو د جهته د شرع او بل به تاوان و مالک ته د ځمکې ورکوي،

**مســـئله**: چې قاطع تاوان و مالك ته هم ورکی مګر دی په هغه درخته سره یعنې په لرګی سره ئې نفع نه سي اخستلای مثلًا چې د خونې بناء پر وکړي، هذا حاصل ما فی الکفایة شرح الهدایة، قالَ

## وَحُرِّمَ رَعْيُ حَشِيْشِ الْحَرَمِ وَقَطْعِهٖ إِلَّا الْإِذْخِرَ وَالْكَمَائَةَ

او حرام دی پوول په ښویا په اوښا نو د وښو د حرم او رېبل یې مګر سرکړې او پوڅکې چې د هغو قطعه روا ده کما جاء فی الحدیث النبویؐ، پوښتــه چې وا ښه هغو بنا تا تو نه وائي چې په قدرتي توګه

شنه سوی وی، نو که سرې ځپله محکه کی ښکار یا غوښ ئل وغیره کړلی وه د هغو قطع روا ده کما مر فی الاشجار آنفا، قال المصنف:

## فصل ولا بأس بقتل غراب وحدأة، وعقرب،

او د نه دی نسته یعنی شی نه لازمیږی یعنی نه په حرم کی او نه په احرام کی فتح القدیر، په وژلو

## وفأرة، وحيّة، وكلب عقور، وبعوض، ونمل، وبرغوث،

سره د کارګه او په وژلو سره د ټپوس او د لړم او د موږک، او د مار او د خوږی سپی او د غوماشې، او د میږی او د

## وقراد، وسلحفات، وما ليس بصيد

کیکی او د منګور یاد سپی د مچ او د کشف چې په فارسی په سنګ پشت بولی، او بعض اهل لغت یې ترجمه په بابنه کوي چې یو مرغه دی، او د غه رنګه شی نشته په وژلو کی د هغه شی چې د ښکار د قسمه نه وی لکه ځغال، لیوه، وغیره، قال المصنف:

## فصل الهدى أدناه شاة وهو من الإبل والبقر و

هدیو کی د مکی مکرمی ته کمه درجه د هدیو پسه دی چې یو کال پرتیر سوی وی، او هدیه د افضل دی په

## الغنم وما جاز في الضحايا جاز في الهدايا

د اوښ په جنس سره روا ده بلکه دا یې اعلی قسم دی مګر چې ښځو کلوته رسیدلی وی، او د غوایی په جنس کی هم کیدای سی دا یې اوسط وی چې د وه کاله عمر یې پوره کړی وي، او د پسه په جنس کی هم کیدای سی چې دا یې ادنی درجه د هدیه ده، او هغه حیوان چې په اختریانو کی روا وی هغه حیوان په هدیو کی هم روا دی، یعنی په اعتبار د عمر او عیبونه د ړلو ولو کما هو مذکور مفصلاً فی باب الاضحیة فی جمیع کتب الفقه، قال المصنف:





## والشاة تجوز في كل شئ إلا في طواف الركن جنبا

او پسه روا دی په هر هغه ځای کی چې په هغه کی ذمړ ذکر سوی دی مګر نه کی چې یې طواف رکن په جنابت سره وکړی او د غه رنګه حکم دی چې طواف رکن د حیض او نفاس په وخت کی وکړی. ولی سبب د تغلیظ د جنایت په د ړو سره ووکی یودی، قال المصنف:

## ووطوء بعد الوقوف قبل الحلق ففي كل واحد منهما بدنة

او بل وطی دی پر عرفات ولی که قبل الوقوف وطی وکړی حج یې فاسد سو قضا یې او پر لازم او د غه یې سر حجر یې لیسی پوره وی. او پسه کافی دی په هر جنایت کی مګر نه چې طواف رکن یعنی طواف زیارت یې په جنابت سره وکړی، او یا یې جماع وکړی پسله وقوف د عرفات لکن د مخه تر سر خریلو، ولی چې په دواړو کی پر حاجی اوښ لازم دی، ولی چې جنایت یې لوی دی نو جبیره یې هم باید لوی وي، قال المصنف:

## وخص هدى المتعة والقران بيوم النحر فقط وخص

او خاص کړه سوي ده هدیه د تمتع او قران په ورځ پوری د اختر فقط د اتخصیص دی په زمانه پوری، او

## ذبح كل هدي بالحرم إلا أن يكون تطوعا وتعيب

خاص کړه سوی ده ذبح د هر هدیه په حرم پوری قال ط ولا یشترط منی آه، مګر هغه وخت که هدیه د تطوع وه او

## في الطريق فينحر في محله ولا يأكله غني وفقير

په لار کی عیب جن سو یعنی تر حرم نه وه رسیدلې، نو په هغه ځای کی د عیب دی ذبح کړی او خوړلی دی

## الحرم وغيره سواء

نه ځندی کوی غنی سړی، او فقیر د حرم او د غیر حرم سره برابر دی په خوړلو د هغی هدۍ، قال ط لکن فقیر الحرم افضل،

**پوه سه** چې نورې هدایا وی تخصیص په مکان پوری نه لری، نو تطوع هدیه چې حرم

شنه سوی وی، نوکه سرې ښکېله محکه کې ښښتې یا غوټل وغیره کړلی وه د هغو قطع روا ده کما مر في الانجار آنفا. قـــــال المصنفؒ:

## فَصْلٌ وَلَا بَأْسَ بِقَتْلِ غُرَابٍ وَحِدَأَةٍ وَعَقْرَبٍ

وژلو دغو څه نسته یعنی شی نه لازمیږی یعنی نه په حرم کې او نه په احرام کې فتح القدیر په وژلو

## وَفَارَةٍ وَحَيَّةٍ وَكَلْبٍ عَقُورٍ وَبَعُوضٍ وَنَمْلٍ وَبَرْغُوثٍ

سوډ کاږګه او په وژلو سره د ټپوس او د لړم او د موږک او د مار او د خوړونکي سپي او د غوماشې او د میږي او د

## وَقُرَادٍ وَسُلَحْفَاتٍ وَمَا لَيْسَ بِصَيْدٍ

کیکې او د منګور یا د سپې د مچ او د کشف چې په فارسي په سنګ پشت بولي، او بعض اهل لغت یه ترجمه په بابنه کوی چې یو مرغه دی، او د غه رنګه شی نشته په وژلو کې د هغه شی چې د ښکار د قسمه نه وی لکه چغال، لیوه، وغیره. قـــــال المصنفؒ:

## فَصْلٌ اَلْهَدْيُ اَدْنَاهُ شَاةٌ وَهُوَ مِنَ الْاِبِلِ وَالْبَقَرِ وَ

هدیو کې د مکې مکرمې، کمه درجه د هدیو پسه دی چې یو کال پرتیر سوی وی، او هدیه د افضل دی په

## اَلْغَنَمِ وَمَا جَازَ فِي الضَّحَايَا جَازَ فِي الْهَدَايَا

د اوښ په جنس سره روا ده بلکه دا یه اعلی قسم دی مګر چې پنځو کلونو ته رسیدلی وی، او د غوا په جنس کې هم کیدای سی دا به اوسط وی چې دوه کاله عمر یه پوره کړی وی، او د پسه په جنس کې هم کیدای سی چې دا یه ادنی درجه د هدیه ده، او هغه حیوان چې په اضحیه کې روا وی هغه حیوان په هدیو کې هم روا دی، یعنی په اعتبار د عمر او عیبونه د لوولو کما هو مذکور مفصلاً في باب الاضحیة في جمیع کتب الفقه. قـــــال المصنفؒ:





## وَالشَّاةُ تَجُوزُ فِي كُلِّ شَيْءٍ اِلَّا فِي طَوَافِ الرُّكْنِ جُنُبًا

او پسه روا دی په هر هغه ځای کې چې په هغه کې د مذکر سوی دی مګر نه کله چې طواف رکن په جنابت سره وکړی او د غه رنګه حکم دی چې طواف رکن د حیض او نفاس په وخت کې وکړي. ولې سبب د تغلیظ د جنایت په د ۳ رو سره و وکی یودی. قـــــال المصنفؒ:

## وَوَطْءٌ بَعْدَ الْوُقُوفِ قَبْلَ الْحَلْقِ فَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَدَنَةٌ

او بل وطی دی پر عرفات ولې که قبل الوقوف وطی وکړی حج یه فاسد سو قضا یې او بل کال او د غه فاسد حج یه پسی پوره کړي. او پسه کافی دی په هر جنایت کې مګر نه چې طواف رکن یعنی طواف زیارت یې په جنابت سره وکړی، او یا یه جماع وکړی پسله وقوف د عرفات لکن د مخه تر سر خرېلو، ولې چې په دواړو کې پر حاجی اوښ لازم دی، ولې چې جنایت یه لوی دی نو جبیره یه هم باید لوی وي. قـــــال المصنفؒ:

## وَخُصَّ هَدْيُ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ بِيَوْمِ النَّحْرِ فَقَطْ وَخُصَّ

او خاص کړه سوی ده هدیه د تمتع او قران په ورځ د اختر فقط د اختصیص دی په زمانه پوری، او

## ذَبْحُ كُلِّ هَدْيٍ بِالْحَرَمِ اِلَّا اَنْ يَكُوْنَ تَطَوُّعًا وَتَعَيَّبَ

خاص کړه سویده ذبح د هر هدیه په حرم پوری قال ط ولا یشترط منی آه، مګر هغه وخت که هدیه د تطوع وه او

## فِي الطَّرِيْقِ فَيُنْحَرُ فِي مَحَلِّهِ وَلَا يَاْكُلُهُ غَنِيٌّ وَفَقِيْرٌ

پلار کې عیب جن سو یعنی تر حرم نه وه رسیده، نو په هغه ځای کې د عیب دی ذبح کړي او خوړل دی نه څخه دی کوی غنی سړي، او فقیر د حرم او د غیر حرم سره برابر

## الْحَرَمِ وَغَيْرِهِ سَوَاءٌ

دی په خوړلو د هغی هدۍ، قال ط لکن فقیر الحرم افضل.

پوه سه چې نوري هدایا وی تخصیص په مکان پوری نه لری، نو تطوع هدیه چې حرم

ته ورسیده بیانو تخصیص په یوم النحر پورې نه لري، وهو الصحیح نعم الذبح یوم النحر افضل « بحر

## وَتُقَلَّدُ بُدْنَةُ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ فَقَطْ

او به غاړه کې یوه غاړګې غوندې شی ور واچوی داوښ د تطوع اود تمتع اودقران فقط قـال ط وهذا انـد بافقط آه قـال المصنف:

## وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهِ وَخِطَامِهِ وَلَا يُعْطِي أَجْرَ الْجَزَّارِ مِنْهُ

اوخیرات دې کړي جُلان د هدایاوو اومهارونه، د هغو، اونه ورکړه کیږي مزدورې د قصاب د هدایاوو د غوښو څخه، هوکې علاوه په مزدورې د خیرات په توګه غوښې ورکړي پروانه لري « قـال اونه دې سپرېږي هدیه والا پر اوښ د هدي بېله

## وَلَا يَرْكَبُهُ بِلَا ضَرُورَةٍ

ضرورته، لکه چې هدایا والا ناجوړې وي یا ضعیفه سپین ږیرې وي، قـال فی البحر ولا یحمل علیها ایضاء یعني بار دې هم نه پرباندې کوي. اوکه سرې بې ضرورته پرسپور سي، اویا بار پرباندی کې هدیه ته لږ تاوان ورسیږي د نقصان ضمان به ورکوي « بحر قـال المصنف:

## وَلَا يَحْلِبُ لَبَنَهُ إِلَّا بَعُدَ الْمَحِلِّ فَيَتَصَدَّقُ بِهِ وَيَنْضَحُ

اونه لوشل کیږي شیدې داوښې د هدیه مګر هغه وخت لوشل کیږي چې ځای د ذبح لیرې وي

## ضَرْعَهُ إِنْ قَرُبَ الْمَحِلُّ بِالنُّقَاخِ

یعني بیر ږیرې کې ونه لوشي غولانځه بې خرابه سي، او هغه شیدې دې هم خیرات کې، او اودې پاشي پر غولانځ د لنګې وښې که ځای د ذبح پر نږدې وو په یخوا اوبو تاچې شیدې وچې سي اود لوشنګ ضرورت دفع سي»

خدایه وبخښې مؤلف اوهم کاتب ؛ ته قبوله کړې دعا د هر غایب »





## وَلَوْ نَذَرَ حَجًّا مَاشِيًا لَزِمَهُ وَلَا يَرْكَبُ حَتَّى يَطُوفَ

او که یو چا پر ځان نذر کړی حج پر پښو پاندې، نو دا نذر پر ده لازم دی، خو لکه والۍ چې احرام یې وتاړه نو پر پیاده روانیږي، فقهاء وائي چې د کور

## لِلرُّكْنِ فَإِنْ رَكِبَ أَرَاقَ دَمًا

څخه پیاده روانیږي قـال ط وهو الاصح او نه به سپرېږي د طواف رکن ترکولو پورې، او که سپور سو، نو پر ده لازم دی دم د هغه وینې دې وبهوي

قـال المصنف

## وَفَضْلُ الْمَشْيِ عَلَى الرُّكُوبِ لِلْقَادِرِ عَلَيْهِ وَفَّقَنَا اللّٰهُ

او تفضیل ورکړه سوی دی پیاده تګ و حج ته تر سپرتیا وحج ته هغه چا ته چې قادر وي پر پیاده تګ، او

## تَعَالَىٰ بِفَضْلِهِ وَمَنَّ عَلَيْنَا بِالْعَوْدِ عَلَىٰ أَحْسَنِ حَالٍ إِلَيْهِ

خدای تعالیٰ دې توفیق راکړي مونږ ته په خپل فضل او احسان سره په بیا ورتلو سره پر ښه حال باندې و حج ته مشرف سوو

## بِجَاهِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

یعني په صحت اوعافیت او محبت او اخلاص سره، په عزت د سیدنا محمد صلی الله علیه وسلم، او درویش وائي چې ای الله جل جلالک، لکه چې تا په خپل فضل وکرم ما عاصي ته په سنه ۱۴۲۳ هق، په عمر کې د ۸۵ کالو تخمینًا کې توفیق د عود و حج ته راکړی، او په صحت او عافیت او خوشحالۍ سره دیوه زړی خپل خپل مې حج وکړي، نو اوس بیا په ډېر عجز او احترام تا ته عرض کوم چې په راتلونکو کلو مې بیا حج نصیب وکړې سره د بله زویه » وَمَا ذَالِكَ عَلَيْكَ بِعَزِيزٍ » بحرمة الحرمين الشريفين امين »

د کتاب نوم: جلد دریم پښتو نور الایضاح »
د مصنف نوم: حضرت مولانا محمد عُبَیْدُ الله ایوبي السلیما نخیلی مدظله
د لیکونکی نوم: قاري محمد فضل الحق حقاني : مکتبة القراءة والتجوید »

# فَصْلٌ فِيْ زِيَارَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دا فصل دی په بیان کی د زیارة د نبی علیه الصلوٰة والسّلام:

درویش وائي: چې د دی فصل زده کړه او عمل په کول د اهل السنة والجماعة پر طریقه چې په کتابونو د احادیث وو مبارکه وو او په کتابونو د تفاسیرو د علماؤ دین، او په کتابونو د فقهاؤ و محققینو لازم دی پر مسلمانانو. **نو واوره!** چې په فتاوی شامیه او په طحطاوي او په فتح القدیر وغیرها کی وائي چې خوك چې زیارة ته قبر انور د علیه الصلوٰة والسلام ځي او سفر کوي خالصًا په نیت د زیارة د قبر انور دی د اسنه کوي، او بعض فقهاؤ وائي چې نیت دی د زیارة د مسجد نبوي ﷺ هم ورسره وکړي، لکن وهابیان وائي که څوك سفر وکړي ومدینې مُنورې ته په نیت د زیارت د قبر انور نبوي ﷺ. انفرادًا او اشتراکًا فهو مُشرك: ابن الهمامؒ صاحب د فتح القدیر وائي چې اولی پر نیزد عبد ضعیف داده چې دی دې په سفر کی د مدینې مُنورې خاص الخاص نیت د زیارة د قبر انور نبوي ﷺ کوي، ولې چې دی قبر ته د نبی علیه الصلوٰة والسلام په ورتګ سره: يَحْصُلُ لَهُ، وده ته حاصلیږی نعمت د زیارة د مسجد نبوي ﷺ نو مغه نیت دی هلته وکړي، ابن الهمامؒ وائي چې په محض نیت کولو د زیارت د قبر مقدس ډیر تعظیم او اجلال دی. د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لکن درویش وائي چې د بیده مرغه مخالفین تعظیم د غیر الله شرك بولي» العیاذ بالله عن مثل هذه العقول، وهذا القول، ابن الهمامؒ وائي «ويُوافِقُهُ ظاهِرًا قَوله صلى الله عَلَيه وَسَلم مَن جَاءَنِي زَائِرًا لا تَعمَلُه حَاجَة الا زيارتي كان حقًا عَلَيَّ ان اكونَ لَهُ شَفِيعًا يَومَ القيامَة» او رحمتی د عارف حقانی المولی الجامیؒ داسی نقل کړی دی» چې ده به زیارة د قبر انور په علیحده سفر بیله سفره د حج هم کاهی کاوه، تاچې ده لره به هغه سفر کی بیله زیارة د قبر انور بل شی نه وي، درویش وائي چې عاشقان د ذات پاك د نبی علیه الصلوٰة والسّلام هم دغسی کوي چې معشوق ته دده د زیارت د پاره ډیر ډیر مشاق او تکلیفونه برګمان وړي د عشق کار حلاؤ.

او د عاشق صادق الملا حسنؒ تلوکانی هغه خلګ نقل کوي چې دی په هغه وخت کی چې سفر د حج به په قافلو کی کیدی د قند هار د خپل وطن تلوکان څخه حج ته تللی وو او زیارت د قبر انور یې هم کړی وو





چې بیله بیره کاله د سفره د حج خپل وطن تلوکان ته راور سیدی مخلصان او مریدانو یې په پرجوش او خروش سره استقبال کړی وو (واهل بیت دده هم ډیر ده و لیدلو ته تری وه، راوی وائي چې څه وخت چې د خپل سرای ور وازی ته ور سیدی ناڅاه د عشق محمدی صلی الله علیه وسلم لمبه او اور یې په زړه کی بل شو نو مخلصانو ته یې وویل چې که زما محبوب صلی الله علیه وسلم زما څخه ګیله وکړه چې ته خو زما قبر ته تبعًا للحج راغلی وی قصدًا و بالذات نه وی راغلی نو زه به څه جواب ورکوم،

هغه وو چې دایه وو یل مخلصانو ته یې وویل چې زه بیرته څم عربستان ته پرېږدو د پاره د زیارت د قبر انور نبوي ﷺ مخلصانو چې هر څو اصرار پر وکړی چې څو ورځی ارام وکړه بیا به ولاړ سې، لکن په او رد عشق سوی زړه د حسنؒ دا خبرو ونه منل هغه وو چې د اهل خانه سره یې په دروازه کی ملاقات وکړی او د مخلصانو څخه یې رخصت واخستی او د مدینة الرسول صلی الله علیه وسلم پر خوا روان سو، او بیله بوه کاله په مقصد کی کامیابه وطن ته راستون سو، فرحمه الله تعالی فهذا هو حال العشاق.. حافظؒ

*نګوئی این سخن کفر است اګر ګوئی شوی کافر: برو ای مدعی نادان چه دانی حال مستان را.*

درویش وائي چې په حدیث شریف کی متفق علیه د بخاريؒ او مسلمؒ دی. داسی راغلی دی: لَا تُشَدُّوا الرِّحَالِ اِلاَّ لِثَلاثَةِ مَسَاجِدَ مَسْجِدِ الحَرَامِ، وَمَسْجِدِيْ هَذَا، وَالْمَسْجِدِ الاقْصٰی، او مخالفان په دغه حدیث سره انکار کوي چې څوك چې په قصد د زیارة د قبر انور مدینې منوری ته سفر کوي هغه سفر حرام بلکه شرك دئ. **جواب:** په دی حدیث شریف کی خو مستثنی منه محذوف ده کما لا یخفی علی من له ادنی المام بعلم النحو، نو معنی د مخالف څخه پوښتنه کوو چې هغه مستثنی منه لفظ د مکان دی، یعنی تاسی سفر هیڅ ځای ته مه کوی مګر و دغو دریو مسجدو ته، نو باید سفر د پاره د تجارت یا سفر د پاره د طلب العلم هم حرام وی: مع ان المخالف لا یقول به»

نو دا معلومه سوه چې معنا د حدیث مذکور هغه ده چې حضرت الامام الغزالیؒ په احیاء العلوم کی بیان کړیده یعنی لا تشدوا الرحال الی مسجد من المساجد الا لهذه الثلاثة، نو حاصل د حدیث دا دی چې تاسی سفر مه کوی په نیت د ثواب د لمانځه وغیره من العبادات مګر دغه دری مسجدو ته، ولې په دغو دریو مسجدو کی ثوابونه د عباداتو مضاعف کیږی او نورو مسجدو نه سره برابر دی په ثواب کی،،

درویش وائی دغسی معنا دحدیث مذکور علامه شامیؒ اوفقیه ابوجعفر الطحاویؒ اوابن الهمامؒ اونورو ډیرو فقهاوؤ اومحدثینوؤ هم کړیده، لکن دافسوس ځای دادی چی مخالفین نه د فقه کتاب منی اونه د مجتهدینو خبره منی، اود شارحانوؤ دحدیثو مبارکه وو چی ددوی د رایځ څخه مخالفه وی هم ئې نه منی، والی الله المشتکیٰ»

**فائده:** ډیر خلک وائی چی علماء دیوبندؒ دسفر څخه ومدینې منورې ته په نیت د زیارت دقبر انور نبوی منکردی، اود عصر حاضر وهابیان د دوی په انکار سره استدلال وائی لکن مولوی محمد اعزاز علی الدیوبندیؒ په حاشیه کی دنور الایضاح ص۱۸۷ کی داسی وائی، ومن ههنا ظهر بطلان ما اختلق علی مشائخنا الدیوبندیة انهم منعوا زیارة قبره علیه الصلوٰة والسلام یعنی السفر الیه . کیف لا وقد صرّحوا قولًا وعملًا انها من افضل التجربات انتهی » قال المصنفؒ:

اوزیارت دنبی

## عَلٰی وَجْهِ الْاِخْتِصَارِ تَبَعًا لِمَا قَالَ فِی الْاِخْتِیَارِ

علیه الصلوٰة والسلام زه ذکر کوم پر طریقه دلنډ ذکر په متابعت دهغه چی ویلی دی په اختیار کی، چی کتاب دنوموړی درویش وائی چی چونکه بیان دزیارة النبی علیه الصلوٰة والسلام پر وجه دتمام اوکمال بیخی ډیر وو حتیٰ چی علماء حضراتو په دی باب کی غټ غټ کتابونه تصنیف کړی دی، نوهغه ټوله بیان دزیارة النبی علیه الصلوٰة والسلام په دی مختصر کتاب کی گنجایش نه وو نوځکه یه وویله پر وجه داختصار، لانهم قالوا: مالا یدرک کله لایترک کله، قال المصنفؒ:

## لَمَّا کَانَتْ زِیَارَةُ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَفْضَلِ

جونکه وه زیارة دنبی علیه الصلوٰة والسلام دافضله څخه د ثواب دکارو اود ښو مستحبو کارو څخه بل تقرب

## الْقُرَبِ وَاَحْسَنُ الْمُسْتَحَبَّاتِ بَلْ تَقْرُبُ مِنْ دَرَجَةِ مَا

## لَزِمَ مِنَ الْوَاجِبَاتِ

یعنی نژدې دی ودرجی ته دهغه کارو چی د واجبو کارو څخه دی، قربۃ جمع دقربة ده یعنی د ثواب کاره





## فَاِنَّهٗ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حَرَّضَ عَلَیْهَا وَبَالَغَ فِی

ولی چی علیه الصلوٰة والسلام ډیر باعث والی کړی دی پر زیارت خپل او ډیر مبالغه ئې کړیده په ترغیب لو

## النَّدْبِ اِلَیْهَا فَقَالَ مَنْ وَجَدَ سَعَةً وَلَمْ یَزُرْنِیْ فَقَدْ

دامتیانو ودی زیارت ته، نو علیه الصلوٰة والسلام وویله که چا فراخی دقدرت مالی درلوده او زما زیارت

## جَفَانِیْ، وَقَالَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ زَارَ قَبْرِیْ

یې ونه کړی، نو زما سره ئې جفا اوبې وفائی یه وکړه، اووی ویل علیه الصلوٰة والسلام که زیارت وکړی زما دقبر

## وَجَبَتْ لَهٗ شَفَاعَتِیْ

واجب اوثابت دی هغه له زما شفاعت، درویش وائی چی په دغه حدیث کی رد بلیغ دی پر مخالفینو باندی، ولی آنحضرت صلی الله علیه وسلم وویله مَنْ زَارَ قَبْرِیْ، اوداسی نه وویل مَنْ زَارَ مَسْجِدِیْ، قال المصنفؒ:

## وَقَالَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ زَارَنِیْ بَعْدَ مَمَاتِیْ فَکَاَنَّمَا

اووویل علیه الصلوٰة والسلام که څوک زیارت وکړی زما پس له مرگه زما دامیی دی گویا ده زیارت وکړی

## زَارَنِیْ فِیْ حَیَاتِیْ اِلٰی غَیْرِ ذٰلِکَ مِنَ الْاَحَادِیْثِ

زما په وخت کی د ژوند زما، اوما سوا د دغو حدیثونو هم احادیث نبویه موجود دی یعنی په سبب د طول دهغو اود وضع دکتاب پر اختصار ټول نه سوه ذکر، ډیر کسان په زړه کی دا ورگرځی چی په حال کی د حیات چی چا نبی علیه الصلوٰة والسلام لیدلی دی هغه صحابی بلل کیږی، نو په مقتضیٰ د دغه حدیث باید زیارت کوونکی دقبر شریف هم صحابی وبلل سی ولم یقل به احدٌ **جواب** په علم بدیع د تلخیص وائی چی تشبیه دشی په شی سره عموم نه غواړی کمافی قولنا: زَیْدٌ کَالْاَسَدِ، بلکه مشارکت دمشبه اومشبه به غواړی په یو وجه کی، دشبهی کمافی المثال المذکور چی اشتراک دزید اود اسد صرف اوصرف په شجاعت کی

مراددی دَ تشبیه نه، نو بناءً علیٰ هذا حدیث مذکور معنا داوه چې په ثواب او اجر کې زائرُ الحیات والزائر بعد الممات سره شریکان دي، ولوکان المشبه به اعظم اجرۃً تامل، قـــــال المصنفؒ

# وَمِمَّا هُوَ الْمُقَرَّرُ عِنْدَ الْمُحَقِّقِيْنَ اِنَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او دَ هغو خبرو نه دي چې ثابت دي په نیزد محققانو د فقهاؤ او صوفیه نه او هغه دا دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم

# حَيٌّ يُرْزَقُ بِجَمِيْعِ الْمَلَاذِ وَالْعِبَادَاتِ غَيْرَ اَنَّهُ حُجِبَ

ژوندی دی یعنی په حیات برزخی سره، چې ده ته رزق ورکول کیږي او دی مبارک فائده اخستونکی دی په

# عَنْ اَبْصَارِ الْقَاصِرِيْنَ عَنْ شَرِيْفِ الْمَقَامَاتِ

ټولو لذتونو شیانو سره او په عباداتو سره لکن دی مبارک محجوب شوی دی یعنی مستور دی د سترګو بلکه د عقولو

نه د هغو کسانو چې هغه کوتاه نظره دي، د لویو مقاماتو نه د علیه الصلوٰۃ والسلام سره اشخص عن مرکز الضرر واحسان عنه وان لم يجد ضعفه فالمریں. د رویش وائي چې هغه کسان چې په تحقیر د عقل صرف ترلی وي

هغه داخبرې هیڅ نه مني. قـــــال المصنفؒ:

# وَلَمَّا رَأَيْنَا اَكْثَرَ النَّاسِ غَافِلِيْنَ عَنْ اَدَاءِ حَقِّ زِيَارَتِهِ

مصنف وائي هرکله چې مونږ ولیدل ډیرکسان چې غافله وو د اداکولو نه د حق د زیارت النبی ﷺ او غافله وو د هغو

# وَمَا يُسَنُّ لِلزَّائِرِيْنَ مِنَ الْكُلِّيَّاتِ وَالْجُزْئِيَّاتِ اَحْبَبْنَا

شیانو نه چې سنت وی زائرینو له د روضه مقدسه او د قبر انور چې هغه بعض په کلیات دی یعنی شریکي شیان

# اَنْ نَذْكُرَ بَعْدَ الْمَنَاسِكِ وَاَدَائِهَا نُبْذَةً مِّنَ الْاٰدَابِ تَتْمِيْمًا

دی په مابین کې د روضه مطهره او د نورو مساجدو لکه تحیة المسجد او بعض د هغه خبرو چې جزئي دی یعنی خاص په زیارت د رقیب انور دی لکه داچې قبر انور ته به سرې څرنګه دریږي، نو مونږ دا به وګڼل چې ذکر کړو





پس له مناسکو یعنی دَ حج او دَ اداء دَ حج چې پوره شو بیان کړو دا دا بو څخه د زیارة النبیؐ د پاره د پوره کولو د فائدې د کتاب یعنی نور الایضاح «

# لِفَائِدَةِ الْكِتَابِ»

# فَنَقُوْلُ يَنْبَغِيْ لِمَنْ قَصَدَ زِيَارَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو مونږ وایو چې بنائي هغه چا لره چې قصد وکړي د زیارت ته د نبی علیه الصلوٰۃ والسلام چې دی به ډیروائي

# اَنْ يُكْثِرَ مِنَ الصَّلَوَاتِ عَلَيْهِ فَاِنَّهُ يَسْمَعُهَا وَتُبَلَّغُ اِلَيْهِ

درودونه پرده، ولې چې علیه الصلوٰۃ والسلام یې اوري یعنی که نژدې وي ط او یا په ذریعه د ملکو ورسول

# وَفَضْلُهَا اَشْهَرُ مِنْ اَنْ يُّذْكَرَ فَاِذَا عَايَنَ حِيْطَانَ

کیږي د لیرې وو، کما ثبت فی الاحادیث النبویة «» افضیلت د درودو تیلو ډیر مشهور دی او مستغنی دی د دې نه چې ذکر د هغه کړی شي، نو هرکله

# الْمَدِيْنَةِ الْمُنَوَّرَةِ يُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چې ده ولیده دیوالونه د مدینې منورې نو درود دی ووائي پر نبی علیه الصلوٰۃ والسلام باندې، ط، وائي چې مدینې ته چې منوره وائي په اعتبار د صاحب د هغې چې نبی علیه الصلوٰۃ والسلام دی، او د درود په فضائلو کې باید د احادیثو کتابونه مطالعه سي، قـــــال المصنفؒ:

# ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ هٰذَا حَرَمُ نَبِيِّكَ وَمَهْبِطُ وَحْيِكَ فَامْنُنْ

او بیا دی ووائي یا الله ج دا حرم دی د نبی ستا او ځای دی د نازلیدو د وحې پس احسان وکړې پر ما باندې په

# عَلَيَّ بِالدُّخُوْلِ فِيْهِ وَاجْعَلْهُ وِقَايَةً لِّيْ مِنَ النَّارِ وَاَمَانًا

داخلیدو د دې حرم او وګرځوې داخلیدو د دې حرم ساتنه ماله د اور نه یعنی د دوزخ په ورځ د قیامت کې

**مِنَ الْعَذَابِ وَاجْعَلْنِي مِنَ الْفَائِزِيْنَ بِشَفَاعَةِ الْمُصْطَفٰى**

او امان یه وګرځوې د عذاب نه او وګرځوې ما چې کامیاب شم په شفاعت د مصطفیٰ

**يَوْمَ الْمَآبِ** په ورځ د رجوع کولو، ای خدایه چې ورځ د قیامت ده" قَالَ المُصَنِّفُ:

**وَيَغْتَسِلُ قَبْلَ الدُّخُوْلِ اَوْ بَعْدَهٗ قَبْلَ التَّوَجُّهِ اِلَى الزِّيَارَةِ**

او بیا دی غسل وکړي د مخه تر دخول ورتلو د مدینې یا وروسته تر دخول د مخه تر قصد د زیارة نبوي ته کېدو

**اِنْ اَمْكَنَهٗ وَيَتَطَيَّبُ وَيَلْبَسُ اَحْسَنَ ثِيَابِهٖ تَعْظِيْمًا**

غسل کول وي، ته ممکن وو، درویش وائي چې په زمان حاضر کې چونکه ښار د مدینې منورې په میلومسافت

**لِلْقُدُوْمِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَدْخُلُ**

فراخ شوې دی، او آفاقي حاجیان په موټرانو کې د معلمانو سپاره وي هیڅ موټران نه دریږي ترهغه وخته

**الْمَدِيْنَةَ الْمُنَوَّرَةَ مَاشِيًا اِنْ اَمْكَنَهٗ بِلَا ضَرُوْرَةٍ** پورې چې حاجیان و
خپلو اوطاقونو ته چې په داخل کې د ښار دي ورنه رسوي، نو قبل الدخول و ښار ته غسل کول هیڅ امکان نه لري،
البته بعد الدخول والاستقرار في العمارة غسل ممکن دی، ځکه مصنف: اِنْ اَمْكَنَهٗ، وواي. او دا غسل به
د مخه تر قصد د زیارة نبوي ته کوي، او خوشبوئي دې ولګوي، او دا غوندې هغه به د کالو خپل د پاره
د تعظیم د ورتلو و قبر نبوي ته، او بیا دې داخل شي مدینې منورې ته پیاده که چیرې ممکن وو بیله ضرورة
یعنی بې ضرره، درویش وائي چې مدینه منوره ډېر فراخه شوې ده نو پیاده تګ و حاجیانو ته ډېر مشکل دی خصوصًا
هغه کسانو ته چې د معلمانو په بسانو کې مدینې منورې ته راځي، ولې چې د حاجیانو ټول سامان د بس پر سر
ترلي وي، نو حاجیانو ته سامان پلاس نه ورکوي تر هغې چې خپلې عمارې ته ورنه رسیږي، نو که بالفرض څوک دی پاتې
بیا به نو خپل سامان او عماره څرنګه پیدا کوي! او حاجي دې خوشبوئي ولګوي، او ښه کالي دې واغوندي





د پاره د تعظیم د ورتلو و نبي علیه الصلوٰة والسلام ته یعنی قبر انور ته د ده م، قَالَ المُصَنِّفُ

**بَعْدَ وَضْعِ رِكْبِهٖ وَاطْمِئْنَانِهٖ عَلٰى حَشَمِهٖ اَوْ اَمْتِعَتِهٖ**

پس له ایښودلو د سپرلیانو د ښیانو، او پس له دې چې ده ته اطمنان حاصل شي په عیال او ماینه وغیره که

**مُتَوَاضِعًا بِالسَّكِيْنَةِ وَالْوَقَارِ مُلَاحِظًا جَلَالَةَ الْمَكَانِ**

ورسره وه، او د غر رنګه ده ته اطمنان حاصل شي پر سامان خپل، یعنی چې په کوم اطاق کې د عمارې به
کېږدي، او متواضع دې وي او په آرام او وقار سره یعنی تګ دې شروع کړي و طرفته د روضه مقدس معلی
او په خیال او دماغ کې د ده وي عظمت د مکان یعنی د روضې شریفې، قَالَ المُصَنِّفُ:

**قَائِلًا بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

او په وخت کې د تلو دې دا وائي بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ، یعنی زه په ملت د علیه الصلوٰة والسلام یم

**رَبِّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ**

**وَاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطَانًا نَّصِيْرًا اَللّٰهُمَّ صَلِّ**

**عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ الخ وَاغْفِرْ لِيْ ذُنُوْبِيْ**

**وَافْتَحْ لِيْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَفَضْلِكَ** او دغه مذکوره دعا دې هم وکړي. او بیا
دې په خپله مورنۍ ژبه نوری دعاګانې
د عافیت او مغفرت د خپل ځان او مور

اوپلار او اولادو او نورو دوستانو او قربيانو ته وکړي» قـــــال المُصنف:

## ثُمَّ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ الشَّرِيْفَ فَيُصَلِّيْ تَحِيَّةً عِنْدَ مِنْبَرِهِ رَكْعَتَيْنِ

او بيا دې داخل شي و مسجد شريف ته نو دې لمونځ وکړي تحية المسجد په قرب کې د منبر د رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه رکعته يعنې که چرته خاص ځای خالي وو او که نه وو بيا دې بل ځای وکړي، قـــــال المُصنف:

## وَيَقِفُ بِحَيْثُ يَكُوْنُ عُوْدُ الْمِنْبَرِ الشَّرِيْفِ بِحِذَاءِ مَنْكِبِهِ

او ودې دريږي په داسې شان چې لرګی د منبر شريف دده په راسته اوږه برابرې هم دغه د ځاې موقف

## الْاَيْمَنِ لِمَوْقِفِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د عليه الصلوٰة والسلام وو

## وَمَا بَيْنَ قَبْرِهِ وَمِنْبَرِهِ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّيَاضِ الْجَنَّةِ

او هم ځکه چې واقع ده په ما بين کې د قبر د عليه الصلوٰة والسلام او د منبر د د روضة يعنې باغ د باغونو

## كَمَا اَخْبَرَبِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ مِنْبَرِيْ عَلٰى حَوْضِيْ

د جنت: قَالَ الطحاوی چې دغه ځکه په ورځ د قيامت و جنت ته نقل کيږي او هلته به باغ ځندې جوړيږي، او يا معنا داده چې ثواب د عبادت په دغه ځاې کې په ورځ کې د قيامت وجنت ته نقل کيږي او سړي وجنت ته رسوي، لکه چې خبر ورکړي په دغه سره نبي صلى الله عليه وسلم، او دا يم وئيلي دې چې زما منبر پر حوض زما به وي يعنې پر حوض کوثر باندې دا هم يا پر حقيقت دي يا پر مجاز فافهم، قـــــال المُصنف:

## فَتَسْجُدُ شُكْرًا لَهٗ تَعَالٰى بِاَدَاءِ رَكْعَتَيْنِ غَيْرَ تَحِيَّةِ الْمَسْجِدِ





نو ته لمونځ وکړه د پاره د شکر د خداى پاک دوه رکعته غير د تحية المسجد نځه ددې د پاره چې تا ته ئې توفيق در کړي

## لِمَا وَفَّقَكَ اللهُ تَعَالٰى وَمَنَّ عَلَيْكَ بِالْوُصُوْلِ اِلَيْهِ

او احسان يې وکړي پر تا باندې په رسيد و مسجد نبوي ته او زيارت ته د عليه الصلوٰة والسلام

## ثُمَّ تَدْعُوْا بِمَا شِئْتَ ثُمَّ تَنْهَضُ مُتَوَجِّهًا اِلَى الْقَبْرِ

او يا دعا وکړه په هغه شي سره چې ستا خوښ دي يعنې په خير او سره د دارينو چې ځاى د اجابت دى د دعا، بيا نو ورپاڅه سره يعنې په ادب سره

## الشَّرِيْفِ فَتَقِفُ بِمِقْدَارِ اَرْبَعَةِ اَذْرُعٍ بَعِيْدًا عَنِ

ورځه و قبر شريف ته نو ودرېږه په قدر د څلورو ګزو ليرې د هغه شريفې حجرې نځه چې ذات انور د عليه

## الْمَقْصُوْرَةِ الشَّرِيْفَةِ بِغَايَةِ الْاَدَبِ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ

الصلوٰة والسلام پکښې موجود دى، په نهايت ادب سره، او په داسې حال کې چې شا د قبلې شريفې ته وي

## مُحَاذِيًا لِرَأْسِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ وَوَجْهُهُ

قال ط هو السنة في زيارة الاموات آه، برابر په د سر مبارک سره د نبي صلى الله عليه وسلم او دده مبارک د

## الْاَكْرَمِ مُلَاحِظًا نَظَرُهُ السَّعِيْدَ اِلَيْكَ وَسِمَاعَهٗ كَلَامَكَ

مخ سره وي، او دا به ستا په لحاظ کې وي يعنې په عقيده کې به دې وي چې عليه الصلوٰة والسلام په مبارکو

## وَرَدَّهٗ عَلَيْكَ سَلَامَكَ وَتَاْمِيْنَهٗ عَلٰى دُعَائِكَ

سترګو ما ته ګوري او زما کلام اوري او زما د سلام جواب راکوي او امين وائي زما په دعاګانو بوه سه، چې هم عمارت ويوي غنمي پلازې او بنګلې او کوټې ته ويل کيږي په عرفي ترجمه «مترجم ثاني»

**تنبیه** پوهه چې په وخت کې ددې چې ته سلامونه وعلیه الصلوٰة والسلام ته وایې ډیر عجزی اوزاری مروجه، ولې چې د سعودی پولیس دی فوراً خارجوی بلکه بعض حجاج چې ورته کاروکی بندی کوی ئې اوبل دا چې ته په مواجه شریفه دعا کوی لاسونه مه پورکوه چې د سعودی پولیس دی فوراً مخ د مواجهی نه وبلی خواته اړوی، قـــــال المصنف:

## وَتَقُولُ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَاسَيِّدِىْ يَارَسُوْلَ اللهِ اَلسَّلَامُ

اوته به وایه سلام دی وی پر تا باندی ای زما نبی ای رسوله د خدای، سلام دی وی

## عَلَيْكَ يَانَبِيَّ اللهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَاحَبِيْبَ اللهِ اَلسَّلَامُ

پرتا باندی ای د الله نبی، سلام دی وی پرتا ای د الله دوسته، سلام دی وی

## يَانَبِيَّ الرَّحْمَةِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَاشَفِيْعَ الْاُمَّةِ اَلسَّلَامُ

پرتا باندی ای د رحمت نبی، سلام دی وی پر تا ای د امت شفاعت کوونکی، سلام دی وی

## عَلَيْكَ يَاسَيِّدَ الْمُرْسَلِيْنَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَاخَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ

پرتا باندی ای د رسولانو سرداره، سلام دی پرتا باندی ای د نبیانو ختموونکی

## اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَامُزَّمِّلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَامُدَّثِّرُ

پوهه: چې د مزمل او مدثر معنا پوهه ده، چې نملتک وغیره پړخان اچولی وی د علیه الصلوٰة والسلام سره چې جبرئیل امین په صورت بشری کې په وخت کې د راتلو ده د غار حراء نه ملاقی سوی وو او دی مبارک به په غیر پوری تهنګ نیولی وو او بیا حمدی تللی وو آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې کورته راتلی زړه به ئې رپیدی د تا ثیره نه ده په غیر کې نیولو او کښیکښلو د سببه نو چې کورته راغلی زمونږ مور بی بی خدیجة الکبرٰی رضی الله عنها په یوه ملاقات کې داسی وو ئیله زملونی زملونی





په ما ملنګ واچوه، او پس تردی چې د علیه السلام زړه به قرار سو نو ئې ولې بی بی خدیجة الکبرٰی ته ټول ماجرٰی بیان کړ، او بیا بله پلا چې جبرئیل علیه السلام ورسره ملاقی سو نو نبیا علیه الصلوٰة والسلام به فوق الذکر حالت کې کورته راغلی او خدیجة الکبرٰی رضی الله تعالٰی عنها وویله د ثرونی د ثرونی، بیله هغه جبرئیل علیه السلام کورته پسی راغلی او دا دوه سورته ئې د رب العزت له خوا راوړه او په دی دوو سورتو کې علیه الصلوٰة والسلام امر کړه سوی په تبلیغ د کلمه توحید ومشرکانو ته د قوم والتفصیل فی کتب الاحادیث، قـــــال المصنف:

## اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَعَلٰى اُصُوْلِكَ الطَّيِّبِيْنَ وَاَهْلِ بَيْتِكَ

او سلام دی وی پر تا او ستا پر اصولو چې پاك وی یعنی د شرکه او کفر نه، اصل نر او ښځی د وارو ته وائی مثلا اصولو

## الطَّاهِرِيْنَ الَّذِيْنَ اَذْهَبَ اللهُ عَنْهُمُ الرِّجْسَ وَطَهَّرَهُمْ

نه د علیه الصلوٰة والسلام ابراهیم خلیل الله او اسمٰعیل علیهما السلام وغیرهما دی، او ستا پر اهل بیتو دی سلام وی چې ازواج مطهرات او فاطمه رضی الله تعالٰی عنهم دی هغه اهل بیت چې پاك دی د شرك

**تَطْهِيْرًا** او کفر او معاصی نه، هغه چې خدای لیری کړی دی د دوی نه نجاست یعنی ګناه چې نجاست باطنی دی او دوی یه پاك کړی په پاکولو سره په دی کی اشاره وهغه آیات ته ده چې په شان کی د اهل بیتو نازل سوی دئ، قـــــال المصنف:

## جَزَاكَ اللهُ عَنَّا اَفْضَلَ مَا جَزٰى نَبِيًّا عَنْ قَوْمِهٖ وَرَسُوْلًا

خدای جل جلاله دی ثوابونه درکړی وتا ته زمونږ د امتیانو د خوا نه بهتر د هغه ثوابو چې خدای ئې

## عَنْ اُمَّتِهٖ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ قَدْ بَلَّغْتَ الرِّسَالَةَ

هغه ثوابونه ور کوی یو نبی ته د خپل قوم د خوا نه او یو رسول ته د امتیانو د خوا نه، زه شاهدی ادا کوم یعنی د صمیم قلبه نه چې په تحقیق تا کړی دی حق د رسالت او تا رسولی دی......

وَادَّيْتَ الْاَمَانَةَ وَنَصَحْتَ الْاُمَّةَ وَاَوْضَحْتَ الْحُجَّةَ

امانت چې خدای پاك درکړی وو چې امانت ټولو امورو شرعیه وو ته شامل دی، او تا نصیحت
کړی دی وامت ته، او تا روښانه کړی دی دلیل د دین اسلام د حقیت وټولو خلقو ته،

وَجَاهَدْتَ فِیْ سَبِیْلِ اللهِ حَقَّ جِهَادِهٖ وَاَقَمْتَ الدِّیْنَ

او تا جهاد او غزا کړیده په لاره کی د خدای په محکم جهاد سره او تا اقامت د دین کړی تر هغه وخت پوری

حَتّٰی اَتَاكَ الْیَقِیْنُ صَلَّی اللهُ عَلَیْكَ وَسَلَّمَ وَعَلٰی اَشْرَفِ

چې تا ته راغلی یقین یعنی وفات، او رحمت د خدای دی وی پر تا پاندی او پر هغه مشرف ځای چې مشرف

مَكَانٍ كَشَرَفِ بِحُلُوْلِ جِسْمِكَ الْكَرِیْمِ فِیْهِ صَلٰوةً وَسَلَامًا

سوی دی. په وجود د جسم مبارك ستا په هغه ځای کی چې حجره د عائشه رض ده، او دا صلاة او سلام

دَائِمَیْنِ مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِیْنَ عَدَدَ مَا كَانَ وَعَدَدَ مَا

دی همیشه وی پر تا پاندی د طرفه څخه د رب العالمین، په حساب د هغو شیانو چې وو یا به وی په علم کی

یَكُوْنُ بِعِلْمِ اللهِ صَلٰوةً لَّا اِنْقِضَاءَ لِاَمَدِهَا د خدای جل شانه او دومره حتو
دی وی چې تیریده نه لری او نه وپای ته رسیږي،

یَارَسُوْلَ اللهِ نَحْنُ وَفْدُكَ وَزُوَّارُ حَرَمِكَ تَشَرَّفْنَا

ای د خدای رسوله مونږ راغلو تا ته او مونږ زیارت کوونکی ستا د حرم یو مونږ مشرف سولو
بِالْحُلُوْلِ بَیْنَ یَدَیْكَ په راتلو سره ستا په حضور کی،





قَدْ جِئْنَاكَ مِنْ بِلَادٍ شَاسِعَةٍ وَاَمْكِنَةٍ بَعِیْدَةٍ نَقْطَعُ

او مونږ راغلی یو تا ته د لیرو ښارو څخه او د لیرو ځایو څخه مونږ پری کوله یعنی منزل مو کاوه په نرم

السَّهْلَ وَالْوَعْرَ بِقَصْدِ زِیَارَتِكَ لِنَفُوْزَ بِشَفَاعَتِكَ

ځمکه کی او پر سخته ځمکه کی په قصد د زیارت ستا تا چې مونږ بری پیدا کړو ستا شفاعت سره یعنی

وَالنَّظَرِ اِلٰی مَاٰثِرِكَ وَمَعَاهِدِكَ وَالْقِیَامِ بِقَضَاءِ

په ورځ د قیامت، او د دی د پاره راغلی یو چې مونږ وګورو یعنی په مدینه منوره کی ستا د فخر ځایونه لکه قبر

انور مسجد نبوی الی غیر
بَعْضِ حَقِّكَ وَالْاِسْتِشْفَاعِ بِكَ اِلٰی رَبِّنَا

ذالك "ومعاهدك" عطف تفسیر دی، او مونږ ودریږو و په پوره کولو کی د یو څه حق ستا یعنی پر مونږ
باندی، او طلب د شفاعت د تا څخه وکړو و خدای جل شانه ته یعنی تا و خدای ته شفیع وګرځوو، قال

فَاِنَّ الْخَطَایَا قَدْ قَصَمَتْ ظُهُوْرَنَا وَالْاَوْزَارَ قَدْ اَثْقَلَتْ

قوله فان، تعلیل للاستشفاع: په تحقیق سره خطاوې او ګنهو ماتی کړیدی زمونږ ملاوې، نه اثقلت او د غه ګنهو درانی

كَوَاهِلَنَا وَاَنْتَ الشَّافِعُ الْمُشَفَّعُ الْمَوْعُوْدُ بِالشَّفَاعَةِ

کړي دی زمونږ داوږو ما بینونه، او ته شافع یې یعنی شفاعت کوونکی یې او مقبول الشفاعت یې. په لویه د

کی د خدای چې ستا وعده ورته
الْعُظْمٰی وَالْمَقَامِ الْمَحْمُوْدِ وَالْوَسِیْلَةِ سوی ده یعنی د خدای د خوا

پر لوی شفاعت سره کما ورد تفصیله فی الاحادیث الشریفة، والیها اشیر بقوله تعالٰی: وَلَسَوْفَ یُعْطِیْكَ رَبُّكَ
فَتَرْضٰی، وفسر تبلك الشفاعة العظمٰی، او تا ته درکړه سوی دی مقام محمود چې د هغه څخه مقام د شفاعت

يَسْقِيَنَا بِكَأْسِكَ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى اَلشَّفَاعَةَ

ستا حوض کوثر ته اوموږ اوبه کړې ستا په کټورې یا ګلاس یا کوزه سره، په داسې حال کې چې نه موږ رسوا

اَلشَّفَاعَةَ اَلشَّفَاعَةَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ثَلَاثًا

سو او نه پښیمانه یو، بیا دې درې ځله وايي، زه شفاعت طلبوم زه شفاعت طلبوم زه شفاعت طلبوم درې واره۔ **پوهه**: چې اَلشَّفَاعَةَ منصوب دی په فعل محذوف سره یعنې اُطلب الشفاعة اُطلب الشفاعة اُطلب الشفاعة، دا الفاظ دې مکرر کړي۔ قَالَ المُصَنِّفُ

رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْإِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ

او دا دعا دې هم وکړي ای زموږ ربه موږ ته وبخښې یعنې ګناهونه زموږ او بخښنه وکړې زموږ هغو وروڼو ته

فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

چې تر موږ د مخه په ایمان سره مشرف سوي دي او مه پیدا کوې زموږ په زړونو کې بغض او عداوت او حسد د هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی وي، ای خدایه ته ډیر مهربان یې او ډیر رحم خاوند یې۔

وَتُبَلِّغُهُ سَلَامَ مَنْ اَوْصَاكَ فَتَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ

او وروسته ورسوه سلام د هغه چا چې تا ته يې وصیت کړی وي یعنې په سلام ویلو سره پر علیه الصلوٰة والسلام، نو دا سې ووایه السلام علیك یا رسول الله د طرفه د فلاني چې د فلاني زوی دی، دی تا شفیع

يَا رَسُوْلَ اللهِ مِنْ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ يَتَشَفَّعُ بِكَ اِلٰى

رَبِّكَ فَاشْفَعْ لَهٗ وَلِلْمُسْلِمِيْنَ ثُمَّ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ وَتَدْعُوْبِمَا

ګرځوي وخدائ ته نو ته شفاعت دده وکړه او د ټولو مسلمانانو وروسته بیا ته هم درود ووایه پر علیه الصلوٰة





کبری مراد دی، او تا ته يې وسیله درکړیده، چې د هغې تفسیر په د غوا لفظو کړی دی، هي منزلة في الجنة لاتكون الا له صلى الله عليه وسلم، قَالَ المُصَنِّفُ

وَقَدْ قَالَ اللهُ تَعَالٰى وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ

او خدائ ستا په باره کې د شفاعت داسې ویلي که چیرې دا امتیان هغه وخت چې ظلم وکړي پر ځانونو

جَاءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ

باندې تا ته رسي، نو اول طلب د بخښنې د خدایه څخه وکړي او طلب د بخښنې د دوی وکړي رسول چې ته یې نو به دوی

لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا

پیدا کړي خدای بخښونکی او مهربانه۔ پوهه سه چې طلب د بخښنې د رسول هو الشفاعة لهم۔

فَائِدَه: دا آیت تخصیص په زمانه پوری د حیوة ظاهري د علیه الصلوٰة والسلام نه لري بلکه بیله مرګه دده حکم دا غږدی کما یدل علیه کلام المصنف وقد صرح المفسرون والفقهاء والصوفية ايضاً بذلك

وَقَدْ جِئْنَاكَ ظَالِمِيْنَ لِاَنْفُسِنَا مُسْتَغْفِرِيْنَ لِذُنُوْبِنَا فَاشْفَعْ

او په تحقیق موږ راغلي یو تا ته په داسې حال کې چې موږ ظلم کړی دی پر ځانو یعنې په سبب د ګناهو او موږ طلب د ګناهو د بخښنې

لَنَا اِلٰى رَبِّكَ وَاسْئَلْهُ اَنْ يُّمِيْتَنَا عَلٰى سُنَّتِكَ

د خدای پاک څخه غواړو، نو ته زموږ شفاعت وکړه وخدائ ته یعنې په باره کې د بخښنې د ګناهو زموږ، تا چې مطابق د ایت سره موږ ته خدای بخښنه د ګناهو وکړي، او د خدائ څخه سوال کوو او ته هم سوال وکړه چې موږ مړه کړي ستا په طریقه، قَالَ

وَاَنْ يَّحْشُرَنَا فِيْ زُمْرَتِكَ وَاَنْ يُّوْرِدَنَا حَوْضَكَ وَاَنْ

او دې سوال وکړه د خدایه څخه چې موږ حشر کې ستا په ډله کې، او موږ درولي یعنې په ورځ د قیامت

## شِئْتَ عِنْدَ وَجْهِهِ الْكَرِيْمِ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ

والسلام بیا دعا وکړه هغه دعا چې ستا خوښه وي په نیږدې مخ مبارك د علیه الصلوٰة والسلام او شا خپله دقبلې وخواته وي، **مسئله** فقهاو وائي چې رسول د سلام واجب دی، ولې داد قسم تحمل د اداء د امانت دی ط. **تنبیه** پوهه چې حاجیان چې حج ته ځي په وخت کې د رخصت په سو خلګ ورته وائي چې زما سلامونه پر علیه الصلوٰة والسلام وایه، حاجي صاحب وهرچوته وائي ښه دی، په دی خلګوکې د ډیرو خلګو نومونه د حاجي صاحب نه وي زده او ډیر نومونه خو په لسوکې د ۹ نفرونه وي زده او دی چې مواجه شریفې ته ورسي د سبب دا زد حام د سلامو پوره کولو وخت لا نه وي نو دادونه سلامونه د خلګو به دی څرنګه ورسوي او سره د دی چې د واجب په ترک سره د سړي غاړې بندیږي،

**پوښتنه** د دی ګناه چاره په نوڅه رنګ کولای سی چې حاجي صاحب و خلګوته و وائي چې ستا سلام زه نه سم رسولای د خلګو خوابدیږی او وائي به چې څرنګه بخیل حاجي دی چې زما سلام فقد هم نه سی رسولای، **جواب**: حاجي دی په دغه وخت کې چې خلګ سلامونه پلاس ورکوي د هر یوه د قبول سره دی وائي هُو ان شاء الله تعالی تا چې وعده مابین نه راشي، بیا هلته کې څولك غو بیا د سوه او فرصت وود هغه سلام دی په نامه ور ورسوي او د نورو په باره کې دی داسې ووائي: السلام عَلَیْكَ یارسُول الله من جانب کل مَن اوصانِی بالسلام عَلیك، فحینئذ تفرغ ذمته من معصیة ترك الواجب، د ر، فتـــــال المُصنف:

## ثُمَّ تَتَحَوَّلُ قَدْرَ ذِرَاعٍ حَتّٰی تُحَاذِیَ رَأْسَ الصِّدِّیْقِ

بیا نو وګرځه یعنې تیرسه په قدر دیوه ګزه حتیٰ چې ته برابر سی د سره سره د صدیق ابوبکر خدای دی ترې

## اَبِیْ بَکْرٍ رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ

څخه راضي سي، **فائده** صدیق مبالغه د صادق ده، او دا لقب وده ته اسماني ورکړه سوی دی، نوم د ده عبد الله دی د پلار نوم یې عثمان دی. او پلار یې هم اسلام





راوړی دی، او په صحبت د علیه الصلوٰة والسلام مشرفه سوی دی، او وفات د پلار یې د ابوبکر رضه وروسته واقع سوی دی، او ابوبکر رضه و بُت ته هیڅ وخت سجده نه ده کړې، کذا قال الطحطاوی،

## وَتَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ یَا خَلِیْفَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

او ته ووایه سلام دی وي پر تا باندې ای خلیفه یعنې جای نشینه د علیه الصلوٰة والسلام، او سلام دی

## عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ یَا صَاحِبَ رَسُوْلِ اللّٰهِ

وي پر تا باندې ای ملګریه د علیه الصلوٰة والسلام او د الفت سړیه د ده په غار کې، یعنې په غار د

## وَاَنِیْسَهٗ فِی الْغَارِ وَرَفِیْقَهٗ فِی الْاَسْفَارِ وَاَمِیْنَهٗ عَنِ الْاَسْرَارِ

جبل ثور، په موقع کې د هجرت و مدینې منورې ته، او ملګریه وی د ده په سفرو کې او امینه د علیه السلام وی په پټو خبرو او کارو کې،

## جَزَاكَ اللّٰهُ عَنَّا اَفْضَلَ مَا جَزٰی اِمَامًا عَنْ اُمَّةِ نَبِیِّهٖ

خدای پاك دی ثوابونه و تا ته درکړي ښه تر هغو ثوابو چې خدای ورکړي دی و یوه امام یعنې خلیفه

## فَلَقَدْ خَلَفْتَهٗ بِاَحْسَنِ خَلَفٍ وَسَلَکْتَ طَرِیْقَهٗ وَمِنْهَاجَ

ته د جانبه د امت د نبي خپل، او په تحقیق تا خلافت تر سره کړي د علیه الصلوٰة والسلام په ښه توګه د خلافت او تا تګ وکړي پر لار، د ده په ښه توګه او په ښه سلوك سره

## خَیْرَ مَسْلَكٍ

**پوهه سه**: چې منهاج او طریق په یوه معنا دی او مسلك مصدر میمي دی

## وَقَاتَلْتَ اَهْلَ الرِّدَّةِ وَالْبِدَعِ وَمَهَّدْتَ الْاِسْلَامَ

او تا جنګ وکړي یعنې ودی وژله هغه کسان چې وروسته تر وفات د علیه السلام مرتد سوي وه او د غه رنګ دی کړي دی د مبتدعانو سره او تا د اسلام د دین توضیح وکړه،

وَشَيَّدْتَ اَرْكَانَهٗ فَكُنْتَ خَيْرَ اِمَامٍ وَوَصَلْتَ الْاَرْحَامَ

او تا محکمه کړه ارکان د اسلام، نو ته وې ښه امام یعنی مقتدا د امت مرحومه او تا وسیله رحمي وکړه یعنی د ښې ماندګانو سره د علیه الصلوٰة والسلام یعنی ازواج مطهرات او فاطمه رضی الله تعالیٰ عنهن

**پوه سه:** چې په دې عبارت کې رد دې پر هغو کسانو چې وائي په مابین کې د ابوبکر الصدیق او فاطمه رض لوی عداوت وو، قـــال المصنف:

وَلَمْ تَزَلْ قَائِمًا بِالْحَقِّ نَاصِرًا لِلدِّيْنِ وَلِاَهْلِهٖ حَتّٰى اَتَاكَ

او همیشه ته ولاړ وې د حق پر لاره او کومک کوونکی وې د دین یعنی د اسلام او د اهل اسلام حتی چې

الْيَقِيْنُ سَلِ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ لَنَا دَوَامَ حُبِّكَ وَالْحَشْرَ

راغلی تا ته یقین یعنی مرګ، ته سوال وکړه د خدای سبحانه څخه زمونږ د پاره د همیشه محبت ستا او د حشر په

مَعَ حِزْبِكَ وَقُبُوْلَ زِيَارَتِنَا اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ

ورځ د قیامت سره د ډلې ستا یعنی مسلمانانو او وغواړه وکړه د قبول د زیارت زمونږ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ

اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ د الله تعالیٰ سلامتیا او د الله تعالیٰ رحمت او برکت دې وي پر تا

ثُمَّ تَتَحَوَّلُ مِثْلَ ذٰلِكَ حَتّٰى تُحَاذِيَ رَأْسَ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ

او بیا تیر سه په مثل د هغه یعنی یو ګز حتی چې ته برابر سې د سره سره د امیر المؤمنین عمر بن الخطاب رض

عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ بْنُ الْخَطَّابِ فَتَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ

الله دې د ده څخه راضي سي نو به ورته ووايــــــه ســــلام دې وي پر تــــا





يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُظْهِرَ الْاِسْلَامِ

ای د مؤمنانو امیره، سلام دې وي پر تا ای ښکاره کوونکی د اسلام په ټوله نړۍ کې او

اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُكَسِّرَ الْاَصْنَامِ جَزَاكَ اللّٰهُ عَنَّا

خصوصاً په مکه مکرمه کې چې تا اسلام قبول کړی، سلام دې وي پر تا ای د بتانو ماتوونکی، خدای دې زمونږ څخه ثواب ړ

اَفْضَلَ الْجَزَاءِ لَقَدْ نَصَرْتَ الْاِسْلَامَ وَالْمُسْلِمِيْنَ

درکړي ښه ثواب، په تحقیق سره تا کومک کړی دی د دین سره د اسلام او مسلمانانو سره، او تا فتح

وَفَتَحْتَ مُعْظَمَ الْبِلَادِ بَعْدَ سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ ﷺ

کړي دي ډیر ښارونه د کفارو وروسته تر سید المرسلین صلی الله علیه وسلم، دروېښ وائي

چې تاریخ د اسلام شاهد دی د دې چې دین د اسلام تر شرق او غرب پورې او بیا تر جنوب او شمال پورې

چې خپور سوی دی په برکت د جهاد د ائمه، د امیر المؤمنین عمر بن الخطاب رض تاریخ مطالعه کړه»

وَكَفَلْتَ الْاَيْتَامَ وَوَصَلْتَ الْاَرْحَامَ وَقَوِيَ بِكَ الْاِسْلَامُ

او ضمانت یعنی د نفقې وغیره اخستی وو د یتیمانو، او تا وصل کړه قرابتونه، او قوت پیدا کړی په تا سره

دین د اسلام، دروېش وائي چې په صحیح حدیث کې راغلی دی چې علیه الصلوٰة والسلام به په

مکه شریفه کې خدای ته خواست کاوه، په بل صحیح حدیث کې راغلی دی چې آنحضرت صلی الله

علیه وسلم به سره د مسلمانانو په پټه په سرای کې د زید بن ارقم رض لمونځ کاوه حتی چې عمر رض مسلمان

سو نو لمونځ یې په حرم کې مکې مکرمې علانیةً وکړی» در» ط» قــــال

وَكَفَلْتَ لِلْمُسْلِمِيْنَ اِمَامًا مَرْضِيًّا وَهَادِيًا مَهْدِيًّا

او ته وې د مسلمانانو د پاره امام چې مسلمانان په تا راضي وه او ته لار ښود وې د مسلمانانو

جَمَعْتَ شَمْلَهُمْ وَاَعَنْتَ فَقِيْرَهُمْ وَجَبَرْتَ كَسِيْرَهُمْ

او پرهدایت وی ته، او تاسو ټول کړی وه هغه تفرق چې په مسلمانانو کی وو، او ناما لی کومک کړی دی

اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُ اللهِ وَبَرَكَاتُهٗ

د فقیرو د مسلمانانو، او تاسو کلکه کړېده د ماتو ځایه د مسلمانانو سلام دی وی پر تا او رحمت او برکت دی وی

ثُمَّ تَرْجِعُ قَدْرَ نِصْفِ ذِرَاعٍ فَتَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمَا

بیا بیرته رجوع وکړه د نیم ذراع په اندازه یعنی تا چې ته په مابین کی د ابوبکرؓ او عمرؓ وګرځې، نو ته داسی ووایه سلام

يَا ضَجِيْعَيْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَفِيْقَيْهِ

دی وی پر تاسی دواړو باندی ای هغو دوو کسانو چې تاسی بیده یاست سره د علیه الصلوٰة والسلام په

وَوَزِيْرَيْهِ وَمُشِيْرَيْهِ وَالْمُعَاوِنَيْنِ لَهٗ عَلَى الْقِيَامِ

بوه ځای کی یعنی په حجره کی د عائشه رض، او د دوو ملګرو د ده، او د دوو وزیرانو د ده، او د دوو مشاورینو

بِالدِّيْنِ وَالْقَائِمَيْنِ بَعْدَهٗ بِمَصَالِحِ الْمُسْلِمِيْنَ جَزَاكُمَا

د ده، او د دوو کومکیانو د ده په ثبات د دین، او هغو دوو کسانو چې تاسی وروسته تر ده
ثابت قدم واست په مصالح کی د مسلمانانو، خدائ دی ثوابونه

اللهُ اَحْسَنَ الْجَزَاءِ

درکړی تاسی ته هغه ښه ثواب، قال

جِئْنَا كُمَا نَتَوَسَّلُ بِكُمَا اِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مونږ راغلی یو تاسو ته چې مونږ واسطه وګرځوو تاسی ورسول الله صلی الله علیه وسلم ته





لِيَشْفَعَ لَنَا وَيَسْاَلُ اللهَ رَبَّنَا اَنْ يَّتَقَبَّلَ سَعْيَنَا وَيُحْيِيَنَا

مونږ راغلی یو تاسو ته چې مونږ واسطه وګرځوو تاسی ورسول الله صلی الله علیه وسلم ته د دی د پاره چې

عَلٰى مِلَّتِهٖ وَيُمِيْتَنَا عَلَيْهَا وَيَحْشُرَنَا فِيْ زُمْرَتِهٖ ثُمَّ

دی مبارک زمونږ شفاعت وکړی یعنی د خدای جل سلطانه په دربار کی، او دی مبارک دی سوال وکړی د رب تعالیٰ

يَدْعُوْا لِنَفْسِهٖ وَلِوَالِدَيْهِ وَلِمَنْ اَوْصَاهُ بِالدُّعَاءِ

زمونږ چې خدائ قبولی وګرځوی زمونږ کوشش او دعاوی، او دی سوال دی وکړی چې مونږ ته دی خدای
جل جلاله ژوندی کړی په ملت د علیه

وَلِجَمِيْعِ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ

الصلوٰة والسلام او مونږ ته دی
مرګ راکړی په هغه ملت او مونږ دی ژوندی کړی په ورځ د قیامت په ډلګی د علیه السلام، او
بیادی زیارت کوونکی دعا وکړی د ځان د پاره او د مور او پلار د پاره او وهغو کسانو ته دی هم
دعا وکړی چې ده ته ئی وصیت د دعا کړی وی، یعنی یا تفصیلاً نوم په نوم که فرصت وو یا اجمالاً یعنی
داسی دی ووائی چې خدایه ته بخښنه وکړې ټولو هغو کسانو ته چې ما ته یه وصیت د دعا کولو کړی
وو، او ټولو مسلمانانو نرا و ښځو ته دعا د مغفرت وکړی، قال المصنف:

ثُمَّ يَقِفُ عِنْدَ رَأْسِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ

او بیادی ودریږی په ځای د ذات د سر د علیه الصلوٰة والسلام لکه اول وار یعنی دری ګزه لیری

كَالْاَوَّلِ وَيَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ قُلْتَ وَقَوْلُكَ الْحَقُّ

او داسی دی ووائی چې یا الله په تحقیق ستا وئیلی دی یعنی په قرآن مجید کی او ستا قول
حق دی،

وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ

که چیرې دوی یعنی ستا امتیان ظلم وکړي پر ځیلو ځانو، یعنی په سبب د کبائرو ګنهو تاته راسي لیعنی یا ستا په ژوند

وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ط

کې او یا بیله وفاته څخه ستا، نو دوی اولاً طلب د بخښنې د خدائ څخه وکړي او طلب د بخښنې وکړي و دوی ته

رسول نو دوی به پیدا کړي خدای تعالیٰ بخښونکی او توبه قبلوونکی او مهربانه "

وَقَدْ جِئْنَاكَ سَامِعِيْنَ قَوْلَكَ طَائِعِيْنَ اَمْرَكَ مُسْتَشْفِعِيْنَ

او مونږ راغلي یو تاته ای الله، او اوریدلی دی مونږ ستا قول یعنی ایت مذکوره، او مونږ فرمان بردار

بِنَبِيِّكَ اِلَيْكَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا يَا رَبَّنَا وَلِاٰبَائِنَا وَاُمَّهَاتِنَا

یو ستا د امر لیعنی هغه امر ضمني چې د مذکوره ایت څخه معلومیږي، او مونږ تاته یا الله ج شفیع ګرځوو

وَاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ

ستا نبیؐ، یا الله ته زمونږ ئې مونږ و بخښې او زمونږ ګنهونه، او زمونږ پلرونه او مندې، او زمونږ وهغه

قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَا اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ

ورونړو ته بخښش وکړې چې زمونږ د مخه په اسلام مشرفه سوي دي، او مه پیدا کوې زمونږ

رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا

په زړو کې حسد او عداوت د هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی، ای زمونږ ربه ته رؤف او رحیم یې

عَذَابَ النَّارِ ای ربه زمونږ مونږ ته راکړې په دنیا کې ښه حالت او په اخرت کې راکړې ښه حالت او مونږ و ساتې د عذاب څخه د اور، لیعنی د جهنم څخه په وسیله د قیا مت کې





درویش وائي چې د حسنه د دنیا او اُخرت ترجمه په ښه حالت سره د دې دپاره موږ وکړه، ولې

چې ښیځي عموم پیدا کوي "

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ وَسَلَامٌ عَلَى

او پاکي ده رب لره ستا، چې لرونکی د ډیر عزت دی، د هغه شیانو څخه چې کفار خدای په هغه سره موصوف

الْمُرْسَلِيْنَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَيَزِيْدُ مَا

بولي لکه شریك، ولد، زوجه، وغیرها من الکفریات، او زیاتوي دې زائر هغه دعاوې چې د ده خوښې وي، او

شَاءَ وَيَدْعُوْ بِمَا حَضَرَهُ وَيُوَفَّقُ لَهٗ بِفَضْلِ اللّٰهِ

دې دې خواستونه کوي په دربار کې د خدائ هغه دعاوې چې ده ته حاضري وي في الوقت، او توفیق یې ورکړه

سي ده ته په فضل د خدائ "

**ښها ښه فائده** درویش وائي چې په اوسنیو کلو کې د حج دا مذکوره اداب د زیارت نبوي ؐ او دده دوو رفیقانو په حجره مبارکه کې او دا ډیر ډیر سلامونه او ډیر

دریدل وقبر انور ته او دا ډیرې دعاګانې په سبب د ازدحام هیڅ امکان نلري، او لیر خلګ به داکوو چې

او بیایې شرط د حرم نبوي ؐ دونه ډیر دریدو او سلامو ته نه پریږدي، نو که څوك غواړي چې زیارت په طریقه

مذکوره مفصلاً د زیارت نبوي ؐ اداب پر ځای کړي، نو په اولو ورځو کې چې د عمري ویزې د حکومت

پاکستان د خوا جاري سي، پاسپورټ دې وکي او د دوو دریو میاشتو ویزه دې پر واخلي، نو به په مکه

مکرمه کې هم لږ ازدحام طوافونه او لوازمه د طوافو به پر ځای کړي، او هم په مدینه منوره کې اداب د زیارة

نبوي ؐ او نور زیارتونه په ښه بیغمي وکړي، او خپل زړه به خنك کړي، او کوم ویزه احتسل د روخري ستر

میاشتي پوري وځندوي په هغه میاشت کې بیا دونه ازدحام وي هم په مکه شریفه کې او هم په مدینه

منوره کې، آکن بعض کسان په روژه کې چې عمري ته ځي د عربو د زکاتو په نیت ځي چې عرب په د غه

میاشت کې ډیر ډیر زکاتونه پر مسکینانو ویشي، نو دې هم په یوه بهانه او په بله بهانه د حرمینو د یوه

تته خه په ذریعه به د غو عربو گرځي، که څه هم دي غني وي او زکوة ورته روانه وي، او دې چې عربستان ته

تي خنگه ته وائي چې زه عمري ته ځم، او داسي وائي چې زه هلته سوال کوم»

بيت سه بزرت: همه پيدا و دردل پا ضنم: اى ببا طل كا فروظ هر مسلمانى چه سود: قال عليه الصلوة والسلام

انما الاعمال بالنيت وانما لامرئٍ مانوى » الحديث»

# ثُمَّ يَأْتِي اُسْتُطوَانَةَ اَبِي لُبَابَةَ اَلَّتِي رَبَطَ بِهَا نَفْسَهُ حَتّٰى

وېړدې ورپې ونښى ته د ابولبابه رضي چې اوس مشهوره په استطوانة التوبه سره ده، او دغه تورې په

# تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَهِيَ بَيْنَ الْقَبْرِ وَالْمِنْبَرِ وَيُصَلِّي مَاشَآءَ

سرکې دغې تنبي نوښته هم دې، چې په دې تنبي پورې ابولبابه خپل ځان تړلی وو په سبب د يوې جرمې چې

# نَفْلًا وَيَتُوْبُ اِلَى اللّٰهِ وَيَأْتِي بِمَا شَآءَ مِنَ الْاَدْعِيَةِ

دده نه صادر سوی وه چې قصه ئې په طول سره د حديثو په کتابو کې ذکر ده، او تر هغه وخته پورې ده ځان تړلی

وو خو توبه به قبوله سوه، او ده قسم کړی وو چې تر څو پورې ما نه خپله آنحضرت صلی الله علیه وسلم خلاص

نه کړي خوله به ما نه خلاصوي، حتی چې اخير رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دی په خپلو مبارکو لاسو دی

خلاص کړي، او دا ستنه په مابين کې د قبر نبوی او د منبر واقع ده، نو هلته دې لمونځ وکړي چې دده خوښه

وي نفل لمونځ او توبه دې د ټولو گناهو څخه وکاږي، **پوه سه** چې د دغه استوانې توبه

وځنگ ته توبه کښل تبرکًا دي په اميد د دې چې لکه د ابولبابه رضي چې هم دلته توبه قبوله سوې وه شايد

زما توبه هم خدای جل سلطانه قبوله کړي او دعاوې وکړي په هغه دعا گانو سره چې دده خوښه وي، قال

# وَيَأْتِي الرَّوْضَةَ فَيُصَلِّي مَاشَآءَ وَيَدْعُو بِمَا اَحَبَّ وَيُكْثِرُ

او ورې دې سي هغه ځای ته د مسجد نبوی چې د روضة الجنة په نامه مشهور دي، هلته دې نفلونه وکړي

چې دده خوښه وي لېږي تعداد معين د رکعتو په نسته، او دعاوې وکړي په هغه شي سره چې دده خوښه وي





# مِنَ التَّسْبِيْحِ وَالتَّهْلِيْلِ وَالثَّنَآءِ وَالْاِسْتِغْفَارِ

او ډېرې دې وائي کلمات د سبحان الله، او د لا اله الا الله او د الحمد لله او د استغفر الله،

# ثُمَّ يَأْتِي الْمِنْبَرَ فَيَضَعُ يَدَهُ عَلَى الرُّمَّانَةِ الَّتِي كَانَتْ بِهِ تَبَرُّكًا

او بيا دې ورو ستنه ورسي منبر نبوی ته او لاس دې کښېږدي پر هغه ځای چې د انار په شکل دی چې په منبر

# بِاَثَرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَكَانَ يَدِهِ

نبوی کې وو په عصر نبوی کې د پاره د تبرک دې لاس پر کښېږدي په اثر د رسول الله صلی الله علیه وسلم

# الشَّرِيْفَةِ اِذَا خَطَبَ لِيَنَالَ بَرَكَتَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او تبرك په هغه ځای سره چې ده مبارك به لاس پر ايښوی چې خطبه به ئې وېيل، تاچې ده ته ورسيږي

برکت د آنحضرت صلی الله علیه وسلم او درود

# وَيُصَلِّي عَلَيْهِ وَيَسْاَلُ مَاشَآءَ

دې ووائي پر عليه الصلوة والسلام باندې

اوسوال دې وکي د خدای څخه هغه شي چې دده خوښه وي، **پوه سه**: چې وهابيان د دغه تبرک کولو

بدعت بلکه شرک په بولي، والله المستعان، ديوه عالم څخه چې روضي مبارکې ته ورغلی وو چې اختيار

تر خوله څخه او بغاره ختلې وه، نو فورًا شرطي (پوليسو) د حرم دې بوتلی او تخمينًا يوه مياشت په بندي

کړی وو»

# ثُمَّ يَأْتِي الْاُسْتُطوَانَةَ الْحَنَّانَةَ وَهِيَ الَّتِي فِيْهَا

او بيا دې ورسي هغه تنبي ته چې په نامه د حنانه شهرت لري، او دغه هغه تنبه ده چې په د غه تنبه

# بَقِيَّةُ الْجِذْعِ الَّذِيْ حَنَّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه لرگی پټ دی چې هغه لرگی ځگيروی وکړي و نبي عليه الصلوة والسلام ته چې د دغه لرگي پر ليښتو او

خطبه په پر منبر شروع کړه»

اوددی لرګی څګیروی تولو حاضرینو واوریدی حتی چی علیه الصلوٰة والسلام مجبور سو دمنبره
څخه ور ته راکښته سو او دا لرګی ئی په غیګ پوری ونیوی. او هغه لرګی کرار کرار ژړا لګ ژولږ»
بخاری وائی لکه کشنی چی سری یمنوی، درویش وائی دا حدیث په طول سره دارمی دا روایت کړی
دی د بریده څخه هغه وائی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم د څخه د منبر ترجوړیدو یو وچ لرګی
د خرماو هغه ته به دریدی او خطبه ئی ویله، وروسته چی منبر دیوی بنځی مزدور چی نجار وو
جوړ کړی، او علیه السلام د جمعی په ورځ پر منبر خطبه شروع کړه، او د بخوانی لرګی څخه جلا سو، نو دی لرګی
داسی بغاری شروع کی، د حدیث توری دادي. کَمَا تَحِنُّ النَّاقَةُ، نو علیه الصلوٰة والسلام بیرته ور ته
راغلی او لاس مبارک ئی پر کښیښو، او ور ته وی ویلَه چی که ستا خوښه وی زه به تا په هغه ځای
کی ښخ کړم او که دی خوښه وی په جنت کی به تا ښخ کړم درخته وګرځوم چی تر به د جنت اوبه څښی،
یعنی بچپلو ریښو سره، او ته به میوه کوی چی اولیاء الله به ستا د میوی څخه خوراک کوی نو علیه السلام
واوریدو د لرګی څخه نَعَم نَعَم، هو هو په جنت کی می درخته وګرځوه بیا د لرګی ژړا ساکته سوه، نو هغه
وخت چی د مسجد نبوی ښنی جوړیدی هغه لرګی په یوه ښنه کی دننه راوستی چی هغی ښنی ته ښنه حنانه
وائی، درویش وائی چی دغه حدیث بخاری مختصر راوړی، او دارمی او طبرانی په طول سره راوړی دی
د عبد الله ابن بریده او هغه د خپل پلار بریده څخه روایت کړی، درویش وائی هم په دغه حدیث کی
مونږ هم اختصار وکړی. قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَيَتَبَرَّكُ بِمَا بَقِيَ مِنَ الْآثَارِ النَّبَوِيَّةِ وَالْأَمَاكِنِ الشَّرِيفَةِ

(وتبرک دی کوی زائر په هغو آثارو سره چی د نبی علیه الصلوٰة والسلام څخه پاته دی په مدینه منوره کی او دغه
رنګه دی تبرک کوی په شریفو ځایو سره، قَالَ الْمُصَنِّفُ:

## وَيَجْتَهِدُ فِي إِحْيَاءِ اللَّيَالِي مُدَّةَ إِقَامَتِهِ

او کوښش دی کوی زائر په ژوندی ساتلو
کی د شپو یعنی په عبادت سره، درویش وائی که مراد د مصنف احیاء د شپو په مسجد نبوی کی
غواړی نو په موجوده وخت کی خو خولاص نه پریږدي، یعنی شرطه (پولیس) چی د شپی په حرم نبوی کی
وی، او که مراد عام وی بیا نو هیڅ اشکال نسته په مده کی د اقامت او اوسیدو د ده په مدینه منوره کی

## وَاغْتِنَامِ مُشَاهَدَةِ الْحَضْرَةِ النَّبَوِيَّةِ وَزِيَارَتِهِ فِي عُمُومِ الْأَوْقَاتِ

او زائر دی غنیمت ګڼرلی لیدل د حضرت نبوی او دده زیارت په عامو وقتو کی

## وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَخْرُجَ إِلَى الْبَقِيعِ فَيَأْتِي الْمَشَاهِدَ وَالْمَزَارَاتِ

او مستحب دا چی ووځی زائر د بقیع خواته نو ورسی دی مشاهدو او مزاراتو ته د دی دوارو مخاوم

## خُصُوصًا قَبْرَ سَيِّدِ الشُّهَدَاءِ حَمْزَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَىٰ عَنْهُ

خصوصًا وقبر ته د سید الشهداء حمزه رض او بیا دی ورسی بلی ادری ته . الله دی د حمزه څخه راضی سی

## ثُمَّ يَأْتِي الْبَقِيعَ الْآخَرَ فَيَزُورُ الْعَبَّاسَ وَالْحَسَنَ

او بیا دی ورسی و بلی هدیری ته چی هغه مشهوره ده په بقیع سره نو هلته دی زیارت وکړی د عباس او د حسن

## ابْنِ عَلِيٍّ وَبَقِيَّةَ آلِ الرَّسُولِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَىٰ عَنْهُمْ

چی د علی زوی دی، او باقی آل الرسول رض الله تعالی دی د دوی څخه راضی سی،

## وَيَزُورُ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ

او زیارت دی وکی د امیر المؤمنین عثمان بن عفان رض، او دغه رنګه دی زیارت وکړی د ابراهیم

## تَعَالَىٰ عَنْهُ وَإِبْرَاهِيمَ بْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

الله تعالی دی د ده څخه راضی سی چی د حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم زوی دی،

## وَاَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَمَّتِهٖ صَفِيَّةَ

او داغسې ګه دې زيارت وکړي دازواجو مطهراتو دنبي عليه الصلوٰة والسلام او د امه د ده چې

## وَالصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمْ

صفيه يې نوم دی، او د نورو صحابه وو او تابعينو الله تعالیٰ دې د دوی ټولو څخه راضي سي"

# لَطِيْفَهٔ سَنِيَّهٔ

خرنګه چې د حضرت ابوبکر الصديق رضي الله تعالیٰ عنه نوم عبد الله دی چې د نامه په سرکې عين
دی او د عمر رض د نامه په سرکې هم عين دی، او د عثمان رض د نامه په سرکې هم عين دی، وهکذا د حضرت
علي رض د نامه په سرکې هم عين دی، او عين په حساب د اَبجد ۷۰ دی۔ او د عليه الصلوٰة والسلام
د نامه په سرکې ميم دی چې په حساب د اَبجد ۴۰ دی، نو ما يو ورځ اعلان وکړی طالبانو ته
چې ما وليدل خلور ګروپه (بلبيان) چې هريو ۷۰ وولسه وو چې زنرايه ډيره تيزه وه آمّا
سره د هغه يو بل بلبي چې ۴۰ وولسه وو پر دوی خلورو سره وو بلبيانو باندې غالبه وو!
حتیٰ چې هغه بلبيان ټول ورته تاريک معلوميده، نو دا خرنګه امکان لري! لکن په سوال کې
ما نوم انو ته د عليه الصلوٰة والسلام او د خلفاء راشدينو اشاره نه وه کړی او نه مې حساب ته د اَبجد
بلکه صرف دومره مې ليکلي وه: چې ما وليده خلور بلبيه چې هريو ۷۰ وولسه وو، او په ماينځ
کې يو بلبي وو چې ۴۰ هغه خلويښت وولسه وو، ومع هذا دغه ۴۰ وولسه والا پر هغه
نورو ټولو غالب وو، ددې خبرې وتوجيه ته طالبان عاجز پاته سوه بيا نو ما بيرته تشريح
ورته وکړه"

ـــ چې نه راغلی پر عالم باندې ريښا شوه ؛ دا عالم وا په هم ستا په روی پيدا شوه ؛
نا نه نيغ جانانه زما شفاعت وکړه ؛ حقانی لره پيدا ستا تمنا شـــوه ؛





## وَتَزُوْرُ شُهَدَاءَ اُحُدٍ وَاِنْ تَيَسَّرَ يَوْمُ الْخَمِيْسِ فَهُوَ

او زيارت ته دې ورسي دا حد د شهيدانو او که ورته اسانه وه نو ورځ د پنجشنبې ډيره ښه ده او

## اَحْسَنُ وَيَقُوْلُ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ

هلته چې ورسي داسې دې ووائي سَلَامٌ عَلَيْكُمْ په سبب د صبر ستاسې يعنې پر تاسو سلام دی، ښه دی جام د شهادت او

## عُقْبَى الدَّارِ وَيَقْرَءُ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ وَالْاِخْلَاصَ اِحْدٰى

ښه دی دار آخرت تاسې لره، او بيا دې آيت الکرسی ووائي يعنې يو وار او بيا دې قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ يوولس

## عَشْرَةَ مَرَّةً وَسُوْرَةَ يٰسٓ اِنْ تَيَسَّرَ وَيُهْدِيْ

واره، او سورة يٰسٓ که ورته آسانه وو، او ودې بخښي د هغو ټولو ثوابونه و ټولو شهدا وو

## ثَوَابَ ذٰلِكَ لِجَمِيْعِ الشُّهَدَاءِ وَمَنْ بِجِوَارِهِمْ مِنَ

ته داحـــد او هغه چا ته چې په همسايه توب کې د دوی وي د مسلمانانو څخه، دارقطني

## الْمُؤْمِنِيْنَ

دارقطني د حضرت علي کرم الله وجهه څخه روايت کړی دی چې که څوک
تيريږي پر هديرو باندې، او دې يوولس واره قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ووائي
او ثواب ئې ومړو ته و بخښي د هغه هديرې الله تعالیٰ به ده ته د هغه هديرې د مړو په تعداد
او مقدار سره ده ته ثوابونه ورکړي،

## وَيُسْتَحَبُّ اَنْ يَّاْتِيَ مَسْجِدَ قُبَاءٍ يَوْمَ السَّبْتِ اَوْ غَيْرِهٖ

او مستحب ده چې زائر دې ورسي مسجد قباء ته په ورځ د شنبې او يا بله ورځ

## وَيُصَلِّيْ فِيْهِ

او په هغه مسجد کې دې خو رکعته لمونځ وکړي" په حديث شريف کې راغلي

دي چې عليه الصلوٰة والسلام هره د شنبې ورځ مسجد قباء ته ورتلی او هلته به ئې نفل کول

**فـائـده**: علماء حضرات په څخوا وائي چې بهترين د مسجدو وروسته تر مسجد الحرام او مسجد نبوي په مدينه منوره کې او تر مسجد اقصیٰ د بيت المقدس هم دغه مسجد قباء دی.

## وَيَقُوْلُ بَعْدَ دُعَائِهٖ بِمَا اَحَبَّ يَا صَرِيْخَ الْمُسْتَصْرِخِيْنَ

او وو دې وائي پسله دعا غوښتنه ډول چې دده خوښه وي، ای مددکوونکی د مدد طلبونکو، او ای

## يَاغِيَاثَ الْمُسْتَغِيْثِيْنَ وَيَامُفَرِّجَ عَنِ الْمَكْرُوْبِيْنَ

فرياد رسيدونکی د کومک غوښتونکو، او ای ليری کوونکی د غمجنو خلکو او ای قبلوونکی

## يَا مُجِيْبَ دَعْوَةِ الْمَكْرُوْبِيْنَ يَا مُجِيْبَ دَعْوَةِ

د دعا د غم پر اخته وو خلکو، او ای قبلوونکی د دعا د مجبورو خلکو، ستا رحم وکړې

## الْمُضْطَرِّيْنَ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاكْشِفْ

پر سيد زمونږ محمد صلی الله عليه وسلم باندې او دده پر آل باندې، او ليرې

## كَرْبِيْ وَحُزْنِيْ كَمَا كَشَفْتَ عَنْ رَّسُوْلِكَ حُزْنَهٗ

کرب او غم لکه چې تا يا الله ليرې کړی د رسول نه خپل حزن او کرب دده په دې ځای کې

## وَكَرْبَهٗ فِيْ هٰذَا الْمَقَامِ يَاحَنَّانُ يَامَنَّانُ يَاكَثِيْرَ الْمَعْرُوْفِ

يعنې په قبا کې، په احاديثو صحيحه وو کې راغلي دي چې آنحضرت صلی الله عليه وسلم چې ۱۳ کاله

## وَالْاِحْسَانِ يَادَائِمَ النِّعَمِ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ





د نبوت په زمانه کې د مشرکينو د مکې د خوا نه د غم او تکليف شپې او ورځې تيرې کړې او په حکم الهي سره د مدينې منورې په هجرت مامور شو. او د هجرت لاره يې قطع کړه، او ثنية الوداع ته مهاجرين چې د مخه لا مدينې منورې ته راغلي وو او انصار د مدينې ټوله په انتظار د راتګ د عليه الصلوٰة والسلام ناست وو نا څاپه چې مرکب د عليه الصلوٰة والسلام را ورسيدی دوی دا بيت په ډير جوش او خروش سره وايه: ؎

طَلَعَ الْبَدْرُ عَلَيْنَا مِنْ ثَنِيَّاتِ الْوَدَاعِ ؛ وَجَبَ الشُّكْرُ عَلَيْنَا مَا دَعَا لِلّٰهِ دَاعٍ ۔

نو پس قدمبوسی د عليه الصلوٰة والسلام چې ته اول چيرې قرارگاه نبي ! آنحضرت صلی الله عليه وسلم ورته وويل چې په قبا کې، په قبا کې بنی النجار آباد وه چې د آنحضرت صلی الله عليه وسلم مور هم د دغه قوم نه وه، نو قبا ته چې راغلی ۱۴ ورځې په قبا کې قيام وکړې او د غو څلورو په دوران کې مسجد قبا په ډېر ساده ډول جوړ کړې، او عليه الصلوٰة والسلام د مشرکانو د مکې نه بيغمه شو. نو مصنف په دغه عبارت کې: كَمَا كَشَفْتَ آه و دغه قصې ته اشاره وکړه، وروسته مصنف زيا ته کړه، يَا حَنَّانُ، يَا مَنَّانُ، يَاكَثِيْرَ الْمَعْرُوْفِ وَالْاِحْسَانِ په عطف تفسيري دی، يا دائم النعم يا ارحم الراحمين»

## وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ

او د الله تعالیٰ رحمتونه دې وي زمونږ پر سردار محمد صلی الله عليه وسلم او دده پر آل

## وَسَلَّمَ تَسْلِيْمًا دَائِمًا اَبَدًا يَارَبَّ الْعٰلَمِيْنَ اٰمِيْنَ

او دده پر صحابه کرامو دې سلامونه وي هميشه هميشه ای د ټول عالم ربه، زمونږ دا دعا قبوله کړه » درويش وائي چې نور الايضاح سره د مفصلې شرحې پر دغه ځای ختم او زه هم وايم چې يا الله جل جلاله و عم نواله» ما او زما اولاد او د اولاد اولاد د دنيا او اخرت د غمونو څخه وساتې، او د مفسدانو او حاسدانو او د شيطانانو د شر او فساد نه او د فتنې نه ئې وساتې او رزق حلال را کړې، د بندګانو د محتاج نه مو وساتې

امين امين امين وصلى الله عليه وسلم تسليما كثيرا واله وصحبه اجمعين امين يـارب العلمين برحمتك يا ارحم الراحمين"

# ربه ته ئې قبول کړي

کتاب خلاص سو په لوی فضل د سبحان
د ایضاح وضاحت وسو په ښه شان

د اتصنیف د ابوالفضل علامه دئ
په پښتو یې دین واضح کړی ښه روښان

په دری جلده کې پوره سوه ملغلره
داسې ښکاري لکه قند یاقوت مرجان

تقریبًا یخه لس سوه ئې صفحې دي
ښه کاغذ، ښه ئې تایټل ښه ئې بیان

مسائل د دین ئې ښه دی بیان کړي
فائده اخلي تری امیان هم ملایان

زمونږ پر دین مین وکړي چې هرڅه دي
که انصار دی د وطن که د افغان

که پر نورو هیوادو د هجرت ژوند کړي
جرمنی، تالینډ، هالینډ که دا ایران

هم پر نورو هیواد وکی د اغیارو
مسائل ئې یادوی زنان مردان

ربه ته ئې د صحت حفاظت وکړه
چې تا دین نور هم عبادونه کړي عیان

حقاني چې د حضرت کتاب لیکمه
ربه ته ئې کړې قبول په هر زمان

ابوالفضل الحق حقاني عفی عنه ... ۱۴۲۳-۹-۱۹ ھ





# څه د لیکوال (کاتب) په اړه

لیک
مولانا قاري نقیب احمد
برادر خورد حقاني

د دې ښکلي کتاب یعنې پښتو نور الایضاح چې په درې جلدونو کې د فقه حنفي یو مفصل او یو معتمد کتاب وړ څخه جوړ سو دا چاپ لیکلی! نوموړئ څوک دی! تعلیم ئې څه دی! او داسې نور محترمو لوستونکو! د دې کتاب کاتب او لیکونکی مولانا قاري فضل الحق حقاني دئ.

**ابتدائی تعلیم** مولانا قاري فضل الحق حقاني اولیات ځپل کور کې پر ځپل والد صاحب حضرة مولانا الحاج نثار احمد عریف صاحب باندې ویلی دي، چې دوخت یو تکړه او مشهوره عالم دی او د علم سره سره د ځپل قوم مشر هم بلل کیږي، د ابتدائی تعلیم وروسته ئې د با قاعده طالبی او مسافری په صورت کی د کوټې ښار په مختلفو مدرسو کی زده کړې کړیده، لکه د مولانا عبد الغفور صاحب مدرسه مظهر العلوم شالدره، د مولانا نور محمد صاحب مدرسه دار العلوم الاسلامیه، او د دې څخه علاوه معقولات او هم د منقولاتو یو لویه برخه ئې د استاذ کل علامة العصر والدهر جامع الکمالات ابوالفضل مولانا محمد عبید الله الایوبي القندهاري السلیمانخیلي سره وئیلی ده،

**انتهائی تعلیم** حقاني صاحب دوره حدیث د پاکستان د یولوی مؤرخ، محدث او تکړه او حق ګویه عالم حضرت مولانا شیخ القرآن والحدیث حسن جان المدني مدظله سره کړېده چې د غه وخت یعنې ۱۴۱۴ھ ۱۹۹۴ء کې په مدرسه امداد العلوم الاسلامیه صدر بازار پشاور کې د حدیثو درس ورکاوه، او په ټوله دوره حدیث کې ئې د دوهم نمبر اعزاز هم تر لاسه کړ او همدارنګه ئې د وفاق المدارس العربیه په امتحان کې ښه نمبرونه حاصل کړه، او په همدغه کال کی د علوم اسلامیه وو څخه فارغ سو:

**د قرات او تجوید زده کړه** حقاني صاحب ابتدائي تجوید په کوټه کی د علم تجوید په معروفه او مشهوره مدرسه، جامعه عربیه مرکزیه تجوید القرآن سرکی روډ کوټه کی شروع کړ چې د دوه کاله ویلو وروسته په امتیازي نمبرو سره کامیاب

## علم قراءت

د علم قراءت د حاصلولو لپاره ئې بیا د پنجاب ایالت د لاهور و ښار ته اراده د سفر وکړه، لاهور د پاکستان د جوړېدو وروسته د خوشیانو مرکز وو او هم د اوس هم مرکز دی لکه علم قراءت، او علم خطاطۍ، په لاهور کې د علم تجوید او قراءت یو مشهور او مرکزی مدرسه، جامعه مدنیه کې ئې د علم قراءات سبعه د مشهور او زیس مندرین کتاب "الشاطبیه" د وئیلو لپاره داخله واخسته، چې په دغه وخت کې د علم قراءت یو محقق او مدقق استاذ حضرت مولانا قاری محمد رمضان صاحب مدظله العالی استاد وو. او هم په داغه کال کې دَ تعطیلاتو په شپو کې د قراءت ثلثه المتممة للعشر د مشهور کتاب "الدرة المضیئة" څخه هم فارغ سو، چې دا ئې بیا دوخت د مشهور مصنف حضرت مولانا قاری محمد ادریس العاصم صاحب څخه په مدرسه تجوید القرآن العالیه شیرانواله گیټ لاهور کې ووئیل، چې دا سی نو د سبعه او عشره دواړو څخه فارغ سُو.

## محافلو کې گډون

حقانی صاحب د قراءت په مختلفو محافلو کې هم گډون کړی دی که هغه په صوبائی یا علاقائی سطحه باندی او که دَ ټول پاکستان په سطحه باندی وه، او د بلوچستان د نمائنده په شکل ئې خدمت کړی دی، او په بلوچستان کی څرنگه چې د علم قراءت و طرفته رغبت او تشویق نه وو حتیٰ چې دا علم یو متروك العمل گرځیدلی وو، او نه هم په مقامی سطحه باندی د قراوو په مابین کی ناسته ولاړه وَه او نه څه تعلق

## د جمعیة القراء بنیاد

نو حضرت حقانی صاحب چې څه وخت دا حال وَلیدی، نو ئې یو ورځ د خپلو ملگرو یو اجلاس راوغوښتی او هغوی ئې په دی پوه کړه چې هم دا مونږ او تاسی به رابطه سا تو او د قرآن مجید دَ تجوید او قراءت و طرفته به خلگ رابولو او دا فن به په مدارسو او مکاتبو او مساجدو کی عامه وو د درس او تدریس په شکل، د محفلونو په شکل او د تصنیف او تالیف په شکل، هغه وو چې په ۱۴۱۲ھ ۱۹۹۲ء کی باقاعده د جمعیت القراء بنیاد کښېښودل سُو او گډون کوونکو په اتفاق دی په حیث د ناظم اعلیٰ وټاکی، چې الحمد لله دی تنظیم داسی په خلوص سره خپل خِدماتو ته ادامه وَرکړه چې تر اوسه ئې د مقامی بی شماره محفلونو ما سوا دوه واره سالانه د ټول پاکستان په سطحه باندی محفلونه کړیدي.





## د خطاطۍ زده کړه

حقانی لکه چې ستاسو په لاسونو کی دده پلاس لیکل سوی کتا بونه دی د خطاطۍ سره ئې د کچنوالی سره ډیره مینه درلوده، په کوټه کی ئې د خط نستعلیق زده کړه د خطاط راز محمد راز څخه چې د خپل وخت یو تکړه کاتب وو کړیده او بیا د لاهور په سفر کی د خط نسخ تعلیم او اصلاح د رئیس الخطاطین حضرت انور حسین نفیس رقم چې په شاه نفیس سره شهرت کړی دَه، چې دیوناموتو او نریوال شاعر او خطاط علاوه یو لوی صوفی هم وو چې ډیر علماء یې پر لاس بیعت وَه، د خطاطۍ په یوه سیالۍ کی حقانی په ټول بلوچستان کی دوهم نمبر ترلاسه کړ او اعزازی ډیرسند ورکړه سوی دی.

## شاعری

حقانی صاحب ته که الله تعالیٰ روان قلم، تقریر، تحریر، کتابت، خطابت، قراءت او علومو سره نازولی دی، هغه د شعر او شاعری په میدان کی هم ښه پوره قدرت لری، ښه روان شعر لیکی، خو بده مرغه څرچې لیکی هغه د ځان سره هیڅ کله هم نه ساتی، دده په وینا چې د شعر او شاعری په میدان کی ډیرو آسان نزغلوَلی دی، او زما ضرورت نشته، په هغه فن او علم کی کارکول پکار دی، د کوم عِلم او فن چې رجال کم او یا محط وی، دده ډیر شعرونه په مختلفو ورځپا نړو او مجلو کی خپاره سوی لکه دکوټې او پېښور هیواد ورځپا نه، وداسی په اولنی اشعارو کی به ئې د ځان تخلص "مظلومیار" نوشته کوی، خو دده په وینا تخلص باید د نامه جزو وی نو څرنگه چې دده په نامه کی د "حق" لفظ شته ځکه د ځان سره "حقانی" کاږی.

## تراجم او حواشی

قاری حقانی ډیر کتابونه د مختلفو ژبو څخه په پښتو ژباړلی دی، په ځانگړی توگه بیا د قرآن مجید د تجوید کتابونه لکه "جمال القرآن، فوائد مکیه، مقدمة الجزریه، القول السدید، هدایة المستفید، تسهیل التجوید، خلاصة التجوید، مفتاح التجوید، تحبیر التجوید، معارف التجوید، تیسیر التجوید" او د فقه په مسائلو کی "الفقه المیسر (اسانه فقه)، د بهشتی زیور مسئلی، په عقائدو کی "تعلیم العقائد" او داسی نور.

## لیکوالی

حقانی که د شعر و شاعری میدان نه دی پری ایښی همدا رنگه ډیر مضمونونه ئې په ورځپاڼو او مجلو کی د وخت په مختلفو موضوعاتو کی چاپ سوی دي، د مثل په توگه "د قرآن مجید تجوید او د هغه لیک دود، رسم الخط دکوټې په یوه مجله کی په څو

قسطونو باندې مشتمله چاپ سوې دې"

**پښتو کی ترجمه**

قاري حقاني صاحب که څه هم د قامي لحاظه په قوم بروهي، مینګل، امیرزئی دی، چې پوره سلسله ئې څه داسې ده، فضل الحق حقانی ابن الحاج مولانا نثار احمد عریف، قوم بروهي، مینګل، امیرزئی، پندوخزئی، دی، چې درې پیړۍ د مخه د نوشکی، زاړو او عمرشاه، د مضافاتو څخه افغانستان ته تللی دی، او هلته د هلمند ولایت په مضافاتو کی اوسیدلی دي، نو ځرنګه چې د یوې خوا په پښتو کی د داسې کتابو ضرورت وو نو ځکه حقاني صاحب اکثره لیکنی لوړ تیاری په پښتو کی کړی دي۔

**درس او تدریس**

د خپلو زده کړو واختتام ته د رسیدو سمدستی د مدرسه عربیه مرکزیه تجوید القرآن سرکی روډ کوئټی په بلنه په کال ۱۹۹۵ء ۱۴۱۵ھ کی د مدرس او استاذ په حیث ونیا کل سو او د درس او تدریس او تصنیف او تالیف سره حقانی صاحب د مختلفو مساجدو د مقتدیانو په بلنه په حیث د امام او خطیب هم خدمت کړی دی، لکه جامع مسجد الله والا جناح روډ کوټه، جامع مسجد ابوبکر الصدیق خوږکی روډ (پاکستان چلډرنز اکیډمی) جامع مسجد سراج نیوجان محمد روډ کوټه او جامع مسجد مدینه سټیلائټ ټاون بلاک ۴ سبی روډ کوټه، او په هر مسجد کی هم د سهار له خوا قبل الوقت او هم ماز دیګر ترمابنامه په سوونو طالبانو د علم تجوید او علم قراءت زده کړه کړیده، چې الحمد لله هم ترڅو او سه پوری دا سلسله جاري ده۔

**دوره تجوید**

قاري صاحب د خپلو کاله څخه راپه دی خوا د مدرسو د رخصتی په وخت کی : طالب علمانو لپاره دوره تجوید ایښی دی چې د طالبانو د اصلاح یو لوی سبب ګرځي او د قرآن مجید د صحیح ویلو احساسات را پیدا کوی

**کلنی جنتری**

حقاني په ټول پاکستان او افغانستان کی ترټولو اداری د مخه یو صحیح، با ثبته او په زړه پورې تاریخه مشتمله جنتری جوړوی چې په زرګونو معلوماتو مشتمل وي، الله تعالی دی د ده دا کوششونه قبول او د نورو خدمت کولو توفیق ورکړي، امین۔

مولانا قاري نقیب احمد قومی ایوارډ یافته امام و خطیب
جامع مسجد الله والا کوئټه





# د پښتو نور الایضاح دریم (۳) توك د مضمونو فهرست

# د پښتو نور الایضاح دریم ټوک د مضمونو فهرست







# د پښتو نور الایضاح دریم ټوک د مضمونو فهرست

# دپښتو نورالایضاح دریم ټوک دمضمونو فهرست







# دپښتو نورالایضاح دریم ټوک دمضمونو فهرست

# دپښتو نور الایضاح دریم توک دمضمونو فهرست

